النحو فی الکلام کالملح فی الطعام

# تنویر النحو

پښتو شرح

# هدایت النحو

د کتاب موضوعات

مکمل متن، وسره د اعراب، ترجمه، تشریح

په آخر د کتاب کے امتحانی سوالات او جوابات

افادات: حضرت مولانا حافظ شوکت علی حقانی
استاذ دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

ترتیب: حافظ [illegible] الله / حافظ صدیق الله

مکتبه رشیدیه
جی ټی روډ سردار پلازه اکوړه خټک ضلع نوشهره
03449084693

**د کتاب نوم** تنویرالنحو پښتو شرح د هدایت النحو
**افادات** مولانا حافظ شوکت علي حقاني مدرس دارالعلوم حقانیه
**ترتیب** حافظ کلیم الله ـ حافظ صدیق الله
**ضخامت** ۳۵۲
**سټینګ** بختورشاه آفریدي
**زیرې نګراني** مولانا سید محمد حقاني
د طباعت تاریخ ذی قعده ۱۴۳۵ هـ / ستمبر ۲۰۱۴

ناشر
مکتبه رشیدیه
جي ټي روډ سردار پلازه اکوړه خټک ضلع نوشهره
۰۳۴۴ ۹۰۸۴۲۹۳

د کتاب ترلاسه کولو ځایونه

(۱) جلال آباد (۴) پروان (۷) کابل (۱) پښاور
(۲) خوست (۵) کندوز (۸) قندهار (۲) اکوړه خټک
(۳) غزني (۶) بغلان (۹) لوګر (۳) کوټه

# فهرست مضامین

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# درخواست

دالله تعالی په فضل و کرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحیح نه علاوه د چهاپ کولو او جلد سازۍ په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار اخستلی شوی دے. خو بیا هم انسان کمزوری دے که د دې احتیاط نه باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړی ان شآء الله په راتلونکي ایډیشن کښې به ئې صحیح کړو

(منجانب ناشـــــر)

# ترون

زه دا خپل معمولی غوندی کوشش ددارالعلوم حقانیې بانی او مهتمم شیخ الحدیث
حضرت مولانا **عبدالحق** صاحب رحمه الله

او

خپل گران استاذ حضرت مولانا حافظ **شوکت علی** حقانی صاحب مدظله
ته کوم چه د هغوی د شپی او ورځي کوششونو او دعاگانو په برکت سره بنده پدی
میدان کښې د قدم کیښودلو قابل شو

طالب علم صدیق الله
بن
حضرت مولانا سید محمد حقانی صاحب مدظله
متعلم دارالعلوم حقانیه

# عرض مرتب

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ رَّسُوْلِ اللّٰهِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَ اَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

اَمَّا بَعْد: د الله تعالی فضل و کرم ده، چه د هغه په توفیق سره بنده ددې قابل شو چه د خپل گران او مشفق استاذ حضرت مولانا حافظ شوکت علي حقاني صاحب مدظله افادات د علوم شرعیه طالبانو ته پیش کړی د علمی حلقو او خاص توگه د حافظ صاحب مدظله د شاگردانو د طرف نه د ډیر زیات انتظار وو او اصرار کیدلو. او هدایة النحو ته چه کوم مقبولیت الله تعالی ورکړی هغه د نمر په شان ښکاره ده.او ددې د درس لپاره هم الله یو ډیر علمي،تحقیقي او ډیر زړه راښکونکي استاذ خص کړی

د پوهولو ملکه هم الله دوی ته پوره ورکړی ده،د بنده دا فکر ووچه د حافظ صاحب دادرس به ډیر احتیاط سره منتقل شی چه د غلطیونه هم پاک وی او د خپل وس مطابق د تولو تصنیفی آدابو سره زر تر زره طالبانو او علماء به خدمت کښی پیش کړی شی. نو ډیر به بهتره وی لیکن پدی کار کښی د روسته والنی یو څو وجه وی،چه یو هغی کښی اوله وجه داوه چه زمونږه ناتجربه کاری وه. دویمه وجه د تصنیفی ماحول او د سهولیاتو د کمی وجه هم وه او دریمه د قابلو ملگرو کمی چه د علمی او تحریری صلاحیتونو نه ملاصل دی

او د کار په درمیان کښی بنده بیماره هم شو. ددی ټولو وجوهو په وجه اگرچه پدی عظیم علمی کار کښی ډیر زیات روسته والی وشو. لیکن د الله تعالی نه دا امید ده چه دا مجموعه به د طالبانو او علماء لپاره فائده مند وی

پدی کتاب کښی د لاندنی امورو خیال ساتلی شوی ده

(۱) مکمل متن راوړلي شوی ده

(۲) په متن باندی اعراب لگولي شوی ده

(۳) ترجمه په ډیر ښائسته انداز سره ذکر شوی ده

(۴) د هر بحث مکمل تفصیل شوی ده

(۵) په آخر د کتاب کښی امتحانی سوالات او جوابات دا مسوده اگر چه د حافظ صاحب د نظر نه تیره شوی نه ده

لیکن بیا هم مونږ د خپل ناقص علم او مونږه د غلطی لری کولو مکمل وس کړی ده،

ناپوهی مکمل اعتراف کوو. پدی کتاب کښی که یو صحب علم ته څه قسمه تحریری غلطی په نظر راشی، نو هغی لره د حافظ صاحب مدظله په ځاني مرتبینوطرف ته د منسوب کړي. او ټولو کتونکو ته درخواست ده چه ددی غلطو نشاندهی کولو سره مونږ خبر کړی چه هغه سره به مونږه ستاسو ډیر زیات شکر گزار او احسن مند یو

کلیم الله بن حضرت مولاناحافظ شوکت علی استاذ دارالعلوم حقانیه مدظله

حافظ صدیق الله

بن

حضرت مولانا سید محمد حقانی صاحب مدظله

# بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡم

# دعلم النحو تعريف

د هر فن شروع کولو نه مخکښې د هغې فن لغوی او اصطلاحی تعریف، مقصد او په اسلامي علومو کښې د دې مقام او دې نه بس د مصنف تعرف پيژندل ضروري وي

**د نحوی لغوی معنی** قصد کول

**اصطلاحی معنی** اَلنَّحُوُ عِلۡمٌ بِأُصُوۡلٍ يُعۡرَفُ بِهَا اَحۡوَالُ اَوَاخِرِ الۡكَلِمِ الثَّلٰثِ مِنۡ حَيۡثُ الۡإِعۡرَابِ وَالۡبِنَاءِ وَكَيۡفِيَّةُ تَرۡكِيۡبِ بَعۡضِهَا مَعَ بَعۡضٍ.

**غرض غايت مقصد** صِيَانَةُ الذِّهۡنِ عَنِ الۡخَطَأِ اللَّفۡظِيِّ فِيۡ كَلَامِ الۡعَرَبِ.

## (مقام و مرتبه د علم نحو)

علوم په دوه قسم دی (۱) مقصود عاليه (۲) مقصود غير عاليه

علم نحو د غير مقصود نه ده خکه چه دا د علوم عاليه چه تفسير او حديث ده. د لباره آله ده په خپله مقصود نه ده. ليکن مقصود لپره موقوف عليه ده. د وجه نه صاحب مفتاح رحمه الله فرمنی چه د علم نحو حاصلول فرض کفيه ده

**(د حضرت عمر رضي الله عنه قول)** تَعَلَّمُوا النَّحۡوَ كَمَا تَعَلَّمُوۡنَ السُّنَنَ وَالۡفَرَائِضَ.

**ترجمه** تاسو علم نحو زده کړي خرنګه چه سنن او فرائض زده کوی

**(د ايوب سجستاني رحمه الله قول)** تَعَلَّمُوا النَّحۡوَ فَإِنَّهُ جَمَالٌ لِلۡوَضِيۡعِ وَتَرۡكُهُ هُجۡنَةٌ لِلشَّرِيۡفِ.

**ترجمه** تاسو علم نحو زده کړی خکه چه دا د ادنی سړی لپره بعث جمال ده

**(د امام کسائي رحمه الله قول)** اَلنَّحۡوُ قِيَاسٌ يُتَّبَعُ وَبِهٖ كُلُّ عِلۡمٍ يُنۡتَفَعُ.

**ترجمه:** علم نحو قابل اتباع قياس ده او په هر علم کښې د دريعې سر فائده اخستلی کيږی

د دي عظمت او ضرورت ظاهرولو لپاره د علماء کرامو عجيب او غريب فرمودات دی مثلاً (۱) اَلنَّحۡوُ فِي الۡكَلَامِ كَالۡمِلۡحِ فِي الطَّعَامِ (۲) اَلنَّحۡوُ لِلۡعُلُوۡمِ كَالنَّحۡوِ لِلۡعُلُوۡمِ (۳) اَلنَّحۡوُ فِي الۡكَلَامِ كَالضَّوۡءِ فِي الظَّلَامِ

# (د مصنف تعارف)

د مصنف نوم .محمداو کنیت ئې ابوحیان،د پلار نوم یوسف

## سلسله نسب

ابوحیان محمد بن یوسف بن علی بن حیان الاندلسی

**ولادت**.د اندلس په ښار غرناطه کښې شوال ۶۵۴ھ کښې پیدا شوی،په ابتدائی عمر کښې حفظ مکمل کړو په علم تجوید و قرات وحدیث کښې مهارت کامله حاصل کړی وو ،علامه سیوطی په علم نحو کښې تصنیف کړي چه د هغې نوم جمع الجوامع دي فرمائی چه پدي کتاب کښې ما څه شی لیکلی هغه مي د ابوحیان د تصانیفونه مي لیکلی،د ابوحیان هم عصر صلاح الدین صفوی رحمه الله فرمائی كَانَ اَمِيْرُالْمُؤْمِنِيْنَ فِي النَّحْوِ.

## اساتذه کرام

ابومحمد عبدالحق نه فن تجوید زده کړی وو

ابوجعفرغرنطی او حافظ ابوعلی حسین بن عبدالعزیز نه د قرات مشق کړي وو .

عبدالحلیم فرمائی چه د ابوحیان ۱۴۵۰استاذان وو

علم الفقه علم الدین عراقی نه حاصل کړي وو

علم منطق او علم کلام د ابوجعفر بن زبیر نه حاصل کړي وو

علم نحونی ابوالحسن ابوجعفر بن زبیر ابوجعفر لیلی او ابن صائغ نه حاصل کړو

## شاګردان

ابن عقیل او ابن هشام دا مشهور شاګردان دی

## تصانیف

تقریباً ۶۵کتابونه په عربی او فارسی کښې لیکلی دی مشهور دادی، تفسیر بحر المحیط،(۲) شرح التسهیل (۳) منبع السالك شرح العیه ابن مالك (۴) هداية النحو

وفات تاریخ وفات کښې اختلاف دی یو قول مطابق په ۷۴۳ھ کښې وفات شوی او دویم قول مطابق په ۷۴۵ھ کښې وفات شوی

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## په بِسْمِ اللّٰه کښې تشريح

**ترجمه**: شروع کوم په نامه دخدای چې ښيونکي اومهربانه دی

**تشريح**: داکتاب په علم النحوکې ليکلی شوي دی نومُعترض اعتراض کوي چې مونږته خودنحوضرورت دي اومصنف رحمة الله عليه بسم الله ذکرکړ دنوجواب دادی چې ددي ډيري وجهي دي (۱) چې د کتاب الله اقتداوشي يعني دقرآن مجيد (۲) چې عمل وشي په حديث شريف باندي قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كُلُّ امرذي بالٍ لم يبدأ بسم الله فهو ابتر (۳) چې موافقت راشي دسلف صالحينو دکتابونو سره (۴) چې دفعه شي وسوسي دشيطانانو (۵) دپاره دويلي کيدلو دشيطانانو (۶) دپاره دکثرت دشافعينو يعني دډيروالي دشفاعت کونکي چې حديث نبوي دي چې څوك په نيك امرکي بسم الله اُوايي نو دبسم الله ديوحرف په مقابله کې الله تعالی يوه فرشته پيداکي اوهغه فرشته ده دپاره ترقيامته بلکه دقيامت نه بعدهم د مغفرت دعاګانې کوي اوپه بسم الله کي نولس حرفونه دي اوددي په مقابله کي نولس فرشتي پيداکيږي (۷) چې فرق اوشي دکافرانو سره چې هغه په خپلوکتابونو کښې بِاسم الات والعُزی ليکي اودبُوتانونومونه دی (۸) چې موافقت راشي دخطوطو پيغمبرانو سره (۹) چې موافقت راشي خط د سليمانؑ سره بنام بلقيس (۱۰) هرکله چې الله جل شانه لوح اوقلم پيداکه نووېې فرمائل چې اُکتُب نوپس قلم شروع په نوم دالله سره اوکړه يعني په بسم الله سره

**د بسم الله ترکيب** باجاره اسم مضاف لفظ دالله موصوف الرحمٰن صفت اول الرحيم صفت ثاني موصوف سره ددواړو صفتونو نه مضاف اليه شو دپاره دمضاف مضاف سره دمضاف اليه نه مجرورشو دپاره دجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمعلق شوپه ابتدأمقدرپوری ابتداء فعل انا ضمير فاعل فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله اسميه فعليه خبريه شوه

جارمجرورته په کلام عرب کې ظرف وايې اوظرف په دوه قسمه دي يوظرف حقيقي دي بل ظرف مجازي دظرف حقيقي نه مراد ظرف زمان اوظرف مکان دي اودمجازي نه مراد ظرف لغوه اوظرف مستقرمراددي

**ظرف لغو** هغه دي چې متعلق يې په کلام کې ذکروي اولغوه ورته ځکه وايي چې دادالغانه ماخوذ

دي په معنی لغو کیدل او دا مستقل رکن دي جمع نه شي واقع کیدي بلکه واقع کیږي متعلق د کلام ته

**ظرف مستقر** هغه دي چي متعلق یې په کلام کښې مذکور نه وي او مستقر ورته ځکه وایي چي دا ماخوذ د استقراء نه دي په معنی داحتباج او دامحتاجه وي په کلام کي متعلق ته او ددي متعلق به غالبو وختونو کي دلفظ استقر واقع کیږي بس په بسم الله کي ظرف مستقر دي ځکه چي متعلق یې مستتر دي او س په دې کې دبصریانو او کوفیانو اختلاف دي په ظرف لغو کي ځکه چي متعلق یې مذکور في الکلام دي برابره خبره ده که اسم وي او که فعل وي ۱۲،

**مذهب دبصریانو** دوئ وایي چي دغه متعلق د ظرف مستقر به فعل وي او دغه فعل به دافعال عامو نه وي افعال عامه دا دي

(افعال عموم نزد ارباب عقول کون است ثبوت است وجود است حصول)

**دلیل دبصریانو** دلیل دبصریانو دادي چي اصل په عمل کي فعل دي چي کله مونږه تقدیر او که نو پکار ده فعل واخلو ځکه چي رعایت د اصل اولی دی یعني بهتر دي او اصل فعل دي - قانون د نحو هر متعلق به عامل وي په متعلق کي

**مذهب دکوفیانو** دوئ وایي چي متعلق د ظرف مستقر به اسم وي. دلیل ځکه چي ظرف مستقر به اکثرو وختونو کي خبر د مبتداء واقع کیږي او اصل په خبر کي افراد دي او افراد نه حاصلیږي مگر په تقدیر د اسم سره دلته پري معترض **اعتراض** کوي چي افراد په اسم سره ځنګه حاصلیږي **جواب** دا په اسم سره ځکه حاصلیږي چي اسم مفرد وي او فعل مفرد وی نه بلکه جمله وي او افراد هم دیونه دي نو پس متعلق به اسم وي د بصریانو په نزد تقدیر د تسمیې به داسي شي چي ابتدأ بسم الله الرحمن الرحیم - **اعتراض** - ابتدا خو د افعال عامه نه دي

**جواب** داځکه حي دلته خپله قرینه د بوکار په شروع کي واقع کیدل، موجوده ده چي اَبتدأ ده یا الشرع نو اوس معترض بل **اعتراض** کوي چي تاخو شروع په نوم دالله او نکړو بلکه اَبتدأ مخکي ذکر که نو داخبره د بالکل صحیح ده ځکه چي تقدیم دما حقه تاخیر اغی او دامفید دي دحصر او اختصار دباره نو پس تقدیر به داسي شي چي بسم الله الرحمن الرحیم ابتدا یا اشرع - او د کوفیانو په مذهب به تقدیر د عبارت داسي شي چي ابتداء ثابتٌ بسم الله ...... نو ترکیب به اخر کي به داسي وي چي جار سره د مجرور نه ظرف مستقر متعلق شو به ثابتٌ بوری ثابت صیغه د اسم فاعل شو ه اسم فاعل سره فاعل او متعلق نه جمله اسمیه

# کیفیت دبسم الله

لفظ بـاد لپـاره داسـتعانت ده معترض **اعتـراض** کـوي چـي باخـود استعانت شـو خوداسم پکي څه کوري

**جواب** دادي چي فرق راشي په مابين دباقسميه اوبااستعانيه کي که اوويل شي چي بالله الرحمٰن الرحيم نوخلق بـه وايـي چـي ملاصـاحبه ناخوقسـم اوخورنوداسـم پـه وجـه احترازراغی دقسم نه نود اسم تفصيل به ورستوراشي بيامعترض راپاخيد **اعتراض کوی چي** لفظ د الله ولی مقدم دی نوجواب دادي چي اول خو الله په معنی خان پوهه کره

**الله په لغت** کي معبودبرحق ته وايي.

**په اصطلاح کي** عَلَمٌ لِذاتِ الواجبِ الوجودِ المستجمعِ لجميعِ الصفاتِ الكماليةِ المنزهِ عنِ النقصانِ والزوالِ الله علم دی ديوذات چي واجب الوجوددي لفظ دالله اسم جامددي اوبعض وايي چي مشتق دي کوم چي په مشتق قائل دي په دوی کي بيااختلاف دي بعض وايي چي وله دي اوبعضی وايي چي اله دي غرض داچي په دي مثل قوله دي اوتحقيق بي په تفسيربيضادي کي دي

**جواب** – الله موصوف دي اوموصوف مقدم وي په صفاتوباندي بله وجه الله ذاتي نوم دي اوذات مرتبه اوچته وي په صفاتوباندي نوځکه مقدم دي

**کیفیت درحمٰن اورحیم**: رحمٰن په وزن دفعلان اورحيم په وزن دفعيل دي اودواړه صيغي دصفت مشبه دي رحمٰن اورحيم مشتق منهٔ اوماده يوشان ده درحمت نه ماخوذدي اولغوي معنی يي رقت القلب ده (دزړه نرم والی) معترض **اعتراض** کوي چي داله خوزړه نشته **جواب** معنی تري لازمي مراد ده يعني احسان اوتفضل بل اعتراض واردشو **اعتراض** چي دادواړه خويوشان صيغي دي نورحيم يي ولي مقدم نه کړو په رحمٰن. **جواب** (۱) لفظ دالله اولفظ درحمٰن دا يوبل سره قريب دي حواله قرآني ﴿قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ﴾ (۲) بله وجه ځکه چي الله مختص دی په الله پوری دغسي رحمٰن هم مختص دي په الله پوری اورحيم مختص نه دی په الله پوری (۳) دريمه وجه په رحمٰن کښ نعميم دی اوپه رحيم کي تخصيص دي يعني درحمٰن معنی عامه ده اودرحيم معنی خاصه ده ورحمٰن مهربانه دي په دنيا کي اورحيم خاص دی په اخرت کي نودنيامقدم ده په آخرت باندي نوځکه مقدم دی (۴) څلورم وجه په رحمٰن کي حروف خمسه دي اوپه رحيم کي حروف اربعه دي اوکثرت دلفظ دلالت کوي په کثرت دمعنی باندي – يوه معقوله ده: كثرة المباني تدل على كثرة المعاني.

# دالحمد لفظي اومعنوي تشریح

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ:

**ترجمه** تمه تعریفونه دهغه ذات لپاره دي چه کوم ذات د تمام جهانونو پالونکي دی

**تشریح** مصنف دتسمیئ نه بعد الحمدلله ذکرکړه ددي وجهې نه چي موافقت راشي دکتاب الله اوسلفوسره اوعمل اوشي په حدیث باندي چي روایت دي کل امرذی بال لم یبدأ بحمدالله فهواقطع اواجزم نو **اعتراض** دادي چي دابنداداره دوه حدیثونو آیا اُس به حمدمخکي راځي چي د حدیث روایت دی **جواب** دادي ابتداء به دري قسمه دي ابتداء حقیقي ابتداء اضافي ابتداء عرفي

**ابتداء حقیقي** هغه ده چي مقدم وي په ټولو اشیاؤباندي یعني په مقصودي اوغیرمقصودي دواړو باندي

**ابتداء اضافي** هغه ده چي مخکي وي خواه که دټولونه مخکي وي او که بعضونه

**ابتداء عُرفي** چي هغه چه مقدم وی په مقصودي مسائلو باندي. پس چي تعریفونه دي ازده کړل نو الحمد ابتداء اضافي دده نه حقیقي اوبله وجه داده چي بسم الله دلالت کوي په دریو اسماؤ باندي او الحمد دلالت کوي په اسم دالله باندي یا په دوه باندي نوپس حدیث دبسم الله محمول شو په حمدباندي که څوک دا **اعتراض** اوکي چي داسي به دویلي وو چي الحمدلله الرحمن الرحیم؟

**جواب** داکارخوصحیح نه دي ځکه چي مخالفت راځي دکتاب الله سره اوعامي طریقي دسلفوسره

**کیفیت دالحمد:** پدي کي دوه جملې دي یوال اوبله حمد دي ال دتعریف دپاره دي لیکن راغلی دجنس دپاره دي یااستغراقي یاعهدخارجي بعض دلام استغراق قائل دي دلیل بیانوي چي په حقیقت کي ټول محامدین دالله تعالی دپاره دي اوپه دي لام استغراقي دلالت کیدي شي اوبعض وایي چي داجنسي دي دلیل یي دادي چي دجنس دپاره هم داجمله دجمیع محامددالله دمملوك کیدلودلالت کوي ولی چي په الله کي لام دتخصیص دپاره دي نومطلب دادي چي جنس دحمددالله تعالی په واسطه مخصوص دي حاصل یی داشوچي په دواړوصورتونوکي حمددهرفردثبوت دالله دپاره دي اوپه الحمدکي دري معمیمات دي اویوتخصیص دي تعمیم دحمدتعمیم دحامداوتعمیم دزماني نوپس هر حمد دُهرحامدنه په هرزمانه دحمدکي داخاص دي په الله پوری تعمیم دحمددال یعني دلام تعریف نه معلومیږی که استغراقي وي اوکه جنسي دواړه مفیددحمددپاره دي تعمیم دحامدیعني دتعریف کونکي تعمیم دامعلومیږی دعدم ذکرد حامدنه اوعدم ذکردحامدنه مرادهرحامددي خان له مصنف نه دي بلکه چي څوك حمدلولی

او تعميم د زماني معلوميږي د عنوان د جملې نه چې جمله اسميه ده او ددې فائده دا ده چې دا دلالت په دوام او استمرار باندې كوي يعني مرادتري تول وختونه دي او تخصيص پكې د لله د لام نه مستفد كيږي يعني لام جره خاص كړى شوى دى : به الله د ذات پورې يعني تخصيص دپاره كچرته څوك **اعتراض** اوكړي چې الله اسم ذات دي او الحمد وصف دي او وصف مؤخروي د ذات نه نو پكار ده چې لفظ الله مخكې وي په الحمد باندې **جواب** دادې دامقام دحمد دي او الله مقتضى دي حمد ته چې حمد مخكې ذكرشي بل **جواب** دادي چې دلته مقصود وصف بيانول دي او د ذات ذكر تعلق د وصف دوجې نه دې او چې كوم شي مقصود وي دهغه تقديم په غير مقصود واجب وي نوځكه دحمد تقديم په لفظ الله ضروري دي بل **اعتراض** وارد شو چې د لفظ الله به خاي د صفتي نوم راوړلى شي نو **جواب** دادې چې لفظ الله اسم ذات دي او اسم ذات د اسم صفت نه اشرف او افضل دي نه ذكر كې د غير اشرف نه

**معنوي تشريح دالحمد** حمد په لغت كښې ستودن، تعريف كول، ته ويلى شي

**په اصطلاح كې** اَلثَّنَاءُ بِاللِّسَانِ عَلَى الْجَمِيْلِ الْاِخْتِيَارِيِّ عَلَى قَصْدِ التَّعْظِيْمِ سَوَاءٌ كَانَ فِي مُقَابَلَةِ نِعْمَةٍ اَوْلَا: پس د تعريف نه حمد لره دوه جُزونه شو

(۱) **مورد د حمد** يعني د چا په ذريعې سره بيانيږي فقط لسان دي يعني په ژبه سره بيانيږي

(۲) **متعلق د حمد** چې په مقابله د نعمت كې وي يا نوي لكه په تعريف كې في مقابلة نعمة اولى دي نو پس مورد د حمد خاص دي فقط لسان او متعلق د حمد عام دي كه په بدله د احسان وي او كه غير احسان وي او حمد په مقابله كې مدح ده او هم تعريف بالسان دي خو شرط دادي چې افعال به يې په اختيار كې نه وي يعني غير اختياري به وي او حمد په دې مقاماتو كې نه استعماليږي او مدح د اختياري او غير اختياري دواړو دپاره استعماليږي مثال د مدح لكه مَدَحْتُ اللُّؤْلُؤَ عَلٰى صَفَاءِ هَا ما تعريف اوكړو د صفايي د ملغلري او د مدح نه بعد شكر دې فِعْلٌ يُّنْبِئُ عَنْ تَعْظِيْمِ الْمُنْعِمِ بِسَبَبِ الْاِنْعَامِ سَوَاءٌ كَانَ ذِكْرًا بِاللِّسَانِ اَوْ اِعْتِقَادًا بِالْجَنَانِ اَوْ عَمَلًا بِالْاَرْكَانِ

نو پس د شكر مورد ګو يا په دريو طريقو سره ادا كيږي يو په ژبه سره بل په زړه سره او بل په ظاهري اندامونو سره او متعلق د شكر سبب د انعاماتو

**نتيجه** حمد خاص دی په دې اعتبار سره چې مورد يې خاص دي يعني صرف لسان او متعلق يې عام دې په دې اعتبار سره چې كه نعمت وي او كه نه وي مدح او په حمد كې فرق دادي چې حمد صرف په افعال اختياري كې بيانيږي او مدح په افعال اختياري

او غیر اختیاري دواړو دپاره بیانیږي او شکر عام دي ځکه چي مورد یې عام دي یعني په دریو طریقو سره اداکیږي او متعلق یې خاص دي ځکه چي سبب د انعام

## بحث درب العالمین

**ربّ العٰلمین**: رب صیغه د اسم مصدر ده په معنی د اسم فاعل ده یا صیغه د صفت مشبه ده لفظ درب ماخوذ دي د تربیت نه او د تربیت معنی داده چي یو شي لره کمال ته رسوي تدریجاً تدریجاً نو درب معنی شوه «پرورش کننده» رب مضف دي اضافت یې العالمین ته شوي دي او علمین یې مضاف الیه دي معترض بیا سر او چت کړو او **اعتراض** کوي چي استاذه عالمین جمع دعالم ده او ماسوا ئ دالله نه چي څه دي ټول عالم دي «مایعلم به شئ» نو بکار ده چي عالم یې ذکر کړی وي

**جواب** دا صحیح ده چي عالم دلالت کوي په ټولو مخلوقاتو باندي مګر د جمعي صیغه یې ځکه راوړه چي دلالت اوکړي په انواع د عالم باندي یعني په قسمونو د عالم باندي لکه قسم د دریاب او قسم د نباتاتو او جمادات او حیوانات او جنات وغیره بل **اعتراض** وارد شو چي داخو صیغه د جمعي مذکر سالمي ده او دا مستعمل کیږي په ذوی العقولو کي نو جواب دادي چي مصنف نیو ترجیح ورکړه ذوي العقولو ته ځکه چي ذوی العقول اشرف دي په غیر ذوي العقول باندي مثلاً خلق «والدین» لفظ استعمالوي نو داخو د جمع مزکر سالمه یا تثنیه ده مګر دلته پلار او مور ته تغلیب ورکړی شوی دي په مور باندي نو برابره خبره ده چي مصنف تغلیب ورکړی دي ذوي العقولو ته په غیر ذوي العقول باندي بلکه خبره داده چي درب اضافت العالمین ته شوي دي د دپاره نحوي ضابط ده چي موصوف معرفه وي نو صفت به یې هم معرفه وي او که موصوف نکره وي صفت به یې هم نکره وي او مضاف چي کله نکره وي او اضافت یې معرفې ته وشي نو مضاف هم معرفه کیږي پس اضافت په دوه قسمه دي یو معنوي او بل لفظي او کوم مضاف چي مفید د تعریف د پاره وي نو دا اضافت معنوي وي او مضاف وي د عامل نه په مضاف الیه معمول کي او په اضافت لفظي کي مضاف عامل وي په مضاف الیه معمول کي نو چي کله په اضافت لفظي کي مضاف نکره وي نو مضاف الیه نه معرفه کیږي نو رب دلته عامل نه دی په العالمین معمول کي نو دي ته اضافت معنوي ویلی شي او رب العلمین معنوي دي

**ترکیب** الحمد مبتدا لام حرف جر لفظ الله مجرور موصوف رب مضاف العٰلمین مضاف الیه، مضاف سره د مضاف الیه نه دا صفت کیږي د لفظ الله موصوف لپاره. موصوف سره

دصفت نه دا مجرور کیږي دلام جاره، جار سره دمجرور نه دا ظرف مستقر تعلق نسي ثابت مقدره پورې، ثابتٌ صیغه دا سم فاعل ضمیر دهُو په کښي مستتر ده هغه ئې فاعل اسم فاعل سره دفاعل نه داخبر شو دالحمد مبتدا لپاره، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه.

**وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ: توجمه** او ښه انجام ثابت ده د متقیانو لپاره

**تشریح** داجمله معترضه ده ځکه چې عاقبت انجام نه و یلی شي او انجام د شرهم وي اودخیرهم وي نو دلته مضاف مقدر دي چې مستقر دي نو تقدیر د عبرت به داسې شي چې خیر العاقبت للمتقین یاحسن العاقبت یعني نُزول دخیر کثیر صرف د متقیانو دپاره مستعمل شو. او متقین جمع دمتقی ده اومتقی مشتق من التقوی دی او تقوی به لغت کې ځان بیچ کیدو ته وایې نو دمتقی نه معنی دپرهیزگار ثابته شوه یعني دي ځان ساتي اوبچ کوي دفحاشی او حرامونه، اجتناب عن الحرام، اوپه تقوی سره نجات او فلاح حاصلیږي ځکه چې عمده به اعمالو کې تقوی ده او حصول التقوی یو ترغیب دي دپاره د طالبانو ځکه چې علم په تقوی سره حاصلیږي. نو ځکه مصنفؒ دخه انجام دپاره خاص لفظ دللمتقین ذکر کړه

**ترکیب: واو اعتراضیه العاقبة مبتدا لام جاره متقین مجرور** جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ثابتة مقدره پورې، ثابتةٌ صیغه داسم فاعل پدې کښې ضمیر مستتر ده چې هیٰ ده هغه فاعل اسم فاعل سره د فاعل نه او سره دمتعلق نه دا خبر شو د العاقبة مبتدا لپاره، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

## بحث دالصلوة اورسول

**وَالصَّلٰوةُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ:**

**توجمه** او نزول رحمت دوی په رسول د هغه باندي

**تشریح** داپه اصل کې صَلوةٌ وو دواو متحرك اوماقبل فتحی په وجه واوپه الف بدل شو نو صلوة شو. اودالف کتابت په واوسره مشهور دي اوپه ولو کي دواوطرف ته مائله کیږي البته په بعضو اوقاتو کې واو ساقط کیږي لکه صلاتي اوپه قرآن کې هم داسې شته چې واویکې نشته لکه عن صَلَاتِهِمْ صلاة په لغت کې رحمت نه وېلی شي اوپه خطبه کې مراد رحمت کامل دي یعني نُزول دخیر کثیر دي وي په رسول باندي او دا ثابت دی دپاره د پیغمبرٌ نقلاً او عقلاً.

**نقلاً:** په روایت د قرآن پاك سره (يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا)

او حدیث شریف سره هم ثبت دي چې روایت دي چې خُصُوْنِي بِكَرَّأَمَاتٍ مِنْهَا اِذَا ذُكِرْتُ اِلاَّ فَاذْكُرْنِي مَعَهُ معترض بیا **اعتراض** ته یاسیده چې په آیت کې د صلوة سره سلام هم ذکردي نو **جواب** دادي چې کوم دوه لفظونه یوځایې ذکرشي نو دا لازمه نه ده چې په عمل کې دهم یوځایې وي ضابطه مقارنت فی العقل دا مستلزم دي دمقارنت فی العمل باد **اجواب** دي چې په دي آیت کې ﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ زکواة ذکردي نو دي خو امعنی نه ده حي تاسو دمانځه سره زکواة ورکوي نو پس ثابته دا شوه چې مقارنت فی العقل دا مستلزم دي دمعارنت فی العمل لره

**عقلاً:** عقل دي خبری تقاضا کوی چې په پیغمبرٌ د صلواة اوویلی شي او تقاضا ځکه کوي چې الله زمونږه مُنعِم او مُحسن دي نو دي په بدله کې مونږه دهغه تعریف او شکریه په حمد او شکر سره ادا کوو دعقل تقاضاده نو دغه سې د پیغمبرٌ دباره شکریه په صلواة او سلام سره اداکیږي بل **اعتراض** دادي چې په حدیث سره ثابته ده چې صلوة خاص دي په پیغمبر پوری نو مصنف ورسره اله ولی ذکر که

**جواب** داخو صحیح خبره ده خو دالام ال په ضمن د پیغمبرٌ کې دي یعني مخکې تري رسول لفظ مستعمل دي کچري دانوی ذکرنو بیا به ناجائزوو **عقلی جواب** ځکه چې دالله د احساناتو او انعاماتو بدله په حمد سره کیږي نو دغه شان د پیغمبرٌ د احساناتو بدله په صلواة سره کیږي او هم دغه شان د پیغمبرٌ سره په خدمت دین کې صحابه کرام مشترک دي او بیا تابعي .تبع تابعیي او علمائ کرام او طلباء کرام هم دي نو ځکه مصنف اله ذکرکو او بله خبره داده چې دبعضو په نزد په صلواة کې د نسبتونو په لحاظ څلور معنی دي

(۱) - چې نسبت یې د الله طرف ته وشي خواه که کلام الهی وي او که کلام انسي وي نو معنی به تري فقط رحمت مرادوي

(۲) - چې نسبت یې دعبد طرف ته اوشي نو معنی د دعابه بری مرادوی عباد جمع د عبد ده

(۳) - چې نسبت یې دملائکو طرف ته اوشي نو معنی د استغفار تری نه مراد ده

(۴) - چې نسبت یې دوحوش او طیور طرف ته اوشي نو معنی تری د تسبیح او تهلیل مراد ده

رسوله: رسول په وزن دفعُوْلٌ دي او په معنی لیګلی شوی یعنی استاذی

**په اصطلاح کې** رَسُوْلٌ اِنْسَانٌ بَعَثَهُ اللّٰهُ تَعَالٰی اِلَی الْخَلْقِ لِتَبْلِيْغِ الْاَحْكَامِ اِنْ شَرِيْعَةٍ مَعَهُ كِتَابٌ مُجَدَّدٌ اَوْ شَرِيْعَةٌ جَدِيْدٌ

**هغه بی تعریف** نبی انسان بَعَثَهُ اللّٰهُ تَعَالٰی اِلَی الْخَلْقِ مَعَهُ كِتَابٌ مُجَدَّدٌ اَوْ لَا پس رسول خاص شو او نبي عام دي یعنی د رسول دپاره نوي کتاب او شریعت شرط شو نو اعتراض دادي چې د رسولانو

تعداد ۳۱۳ دي اوټول آسماني کتابونه ۱۰۴ دي جواب دادي زمونږه مراد دادي که دانوي کتاب داسمان نه راغلی وي اوکه دمخکي پيغمبرنه ورته پاتې شوي وي نويس دادده دپاره نوي کتاب اوشريعت اوگرزيده اوداهم ممکنه ده چي په يوه زمانه کي په يوکتاب اوشريعت باندي مختلف پيغمبران هم سيرسوي وي والله اعلم اوداهم ممکنه ده چي په يوررسول باندي متعدد کتب اوصحيفي نازل شوي دی اوداهم ممکنه ده حي يوکتاب مکررنازل شوي وي لکه سورة فاتحه يوه پيره په مکه کي اوبوه پيره په مدينه کي نازل شوي دي

**ترکيب**: **واو** حرف عاطفه **الصلوة** مبتدا **على** حرف جر **رسول** مضاف **ه**ضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبدل منه شو

# بحث دمحمد، اله ، اصحابه ، اواجمعين

**مُحَمَّدٍ وَّآلِهِ وَأَصْحَابِهِ أَجْمَعِيْنَ**:

**ترجمه** او نزول رحمت دوی په رسول د الله باندي چه نوم ئی محمد دی په ال او اصحابو د دهٔ باندي

**تشريح** **مُحَمَّد** داصيغه داسم مفعول ده دباب تفعيل نه حَمَّدَ يُحَمِّدُ تَحْمِيْدًا - اوياصيغه دمبالغی مبالغه فی المحمود يت ده په معنی ديرتعريفونه ئی کری شوي دي نود ابرابره خبره ده چي دپيغمبرؐ تعريفات الله پخپله کری دي يعني دټولو انبياؤ نه يي تعريفونه ډيرزيات کري شوي دي اويونوم يي احمد دي چي دابه ورته پلار نيکه وي نو احمد صيغه داسم تفضيل ده اودامبالغه دفی الحمديت ده په معنی زيات تعريف کونکي په نيت دنوروخلقونو پس ثابته شوه دنو مونونه چي الله دپيغمبرؐ تعريف ئی کري دي او پيغمبرؐ دالله تعالی تعريف کونکي دي اودامحمد مصنف درسوله نه بعدځکه ذکر کرو چي احترازاشي دنوررسولانونه بلکه داخطبه خاص ده په محمد پورې او په صحابو دغه پوری او په ال دغه پوری نويس داسې به شي چي رسوله محمد په رسول دغه چي نوم يي محمد دي

**وَآلِهِ**: دمحمدؐ په ال باندي صلواة نقلاً ثابت دي نقلی دليل يوه پيره صحابو دپيغمبرؐ نه تپوس اوکړو چي مونږه په تا باندي درود وايُو خوستا په ال څنګه درود وايُو نو پيغمبرورته وفرمائيل داسې وايې چي

اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم انك حميد مجيد

اونقلی دليل دصلواة په بحث کي مذکوردي

**دلفظ ال لفظي تشریح** په دې کې دوه مذهبه دي یو د سیبویه او بصریینو او بل د کوفیینو دي د سیبویه په نزد باندې د ابه اصل کې اهل وو او دلیل یې دادی چې أهیل یې تصغیر دي پس دوي په اهل کې اعلال او که یعني هنی یه الف بدله کړه نو آل تری جوړ سو . او کوفیان وایي چې دا په اصل کې اول وو نو بس دا قانون دی چې واو متحرک ماقبل نی فتحه وي نو د غه واو به په الف باندې بدلیږي نو آل شو او دلیل یې دا نو دی چې ددې مصغر أویل دی او به کوفیانو کې یا کسائي وایي چې ماد یو فصیح اعرابي نه آل اویل 'اهل' وریدلي دي او اصمعي لغوي نه هم دا منقول دي

**دلفظ ال معنوي تشریح** دآل او د اهل په منځ کې فرق دادی چې په آل کې تخصیص دي او په اهل کې تعمیم دي اول تعمیم او تخصیص دادي چې د ال اضافت ذوی العقول و طرف ته کیږي او دالله حق زمان مکان معنی او د حروفو طرف ته نه مضاف کیږي لکه آل الله او الی الزمان آل العلم وغیره نشي ویلی کیدی بخلاف د اهل نه یعني أهل الله اهل القریه اهل الزمان وغیره به تولو کې مستعمل کیږي دویم فرق آل اضافت په ذوی العقولو کی د ذکورو طرف ته کیږي بخلاف د اهل نه چې د اهل اضافت د ذکور و او اناثو تولو طرف ته صحیح دي دریم فرق لفظ دآل په ذوي العقولو کې او په ذوي العقولو کې به ذکورو او په ذکورو کې به اشرافو کې مستعملیږي لکه آل فرعون، په اشرافو کې شرط دادي که د دنیا عزت وي که آخرت وي بخلاف د اهل نه چې اهل عام دي څلورم فرق چې د آل اضافت ضمیر طرف ته راجع کیږي بخلاف د اهل نه چې دوی اضافت د ضمیر طرف ته نه راجع کیږي

**دا ل معنوي تشریح** آل په لغت کې کنیه ته ویلی شي او آل په دوه قسمه دي یو آل نسبي بل آل حسبي آل نسبي د پیغمبرؐ ازواج مطهرات آل حسبي .کل تقی نقی فهوالي.

**أصْحَابِهِ**: لفظ اصحاب جمع د صحبٌ ده او صحبٌ جمع د صاحب ده چې دوست ته ویلی شي او د اصحاب جمع اصاحیب ده او صحابي هغه بنده ته ویلی کیږي چې هغه د ایمان په حالت کې د پیغمبر زیارت کړی وي او بیا د ایمان په حالت کې یې خاتمه شوي وي او صحابه انسان او جن کیدي شي نه ملائکه

**اجمعین**: لفظ د اجمعین د تاکید د پاره د اله او اصحابه دي او دایې په دې وجه ذکر کړو چې بعضې دلی صرف په صحابو درود وایي نه په آل نو مصنف لفظ د اجمعین د تولو د پاره ذکر کړو او د اجمع د منتهی الجموع ده یعني دا جمع ده په معنی د جمع سره

**ترکیب:** **محمد** بدل . مبدل منه سره دبدل نه دا معطوف علیه شو . **واو** حرف عاطفه **ال** مضاف **و**ضمير مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دمعطوف اول شو **واو** حرف عاطفه **اصحاب** مضاف **و** مضاف اليه . مضاف سره دمضاف اليه نه دا معطوف ثاني شو . معطوف سره دمعطوفينو نه دا مؤكد شو **اجمعين** تاكيد ، مؤكد سره دتاكيدنه دا مجرور شو لپاره دعلی جاره . جار سره دمجرور نه دا ظرف مستقر تعلق نيسي نازلةً پوري، نازلةً صيغه داسم فاعل ضمير پكښې مستتر چې هی ده دا فعل او سره دمتعلق نه داخبر شو د الصلوة مبتدا لپاره . مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

## بحث دِاَمَّابَعْدُ

**اَمَّابَعْدُ: ترجمه** پس د حمد او صلوة نه

**تشريح** اَمَّابَعدُ اجمالاً دوه لفظه مصنف ذكركړل به دي معنى هرچې وروستو دغه جُملو ثلاثونه دي نوتقدير دعبارت به داسې شي مهمايكن من شئ بعدالجُمل ثلاثه: ثم معنی مصنف په جُملو ثلاثو بندي خيل كتاب لره ترغيب وركړی دی چې دجُملو ثلاثونه وروسته چې څه شي موجودوي نوځه كتاب به هم موجودوی اوطلب به تري فائده حاصلوي په اماكې مختلف اقوال دي يوقول دخليل دی هغه وائي چې امايه اصل كې مهما وه نوهمزه سره بدله شوه نوماماشونوبيا دقلب مكاني دوجه نه ميم مؤخرشو اوهمزه مقدم سوه اودميم په ميم كې ادغام اوشونوپس اَمّاشو دسيبويه داقول دي چې اماَاصل دی نوپس دسيبويه نه قول باندي اعتراض دي خكه چې اماحرف شرط دي او مهما اسم دي اوداسم نه حرف نه شي جوړيدي نوځاو سو دسيبويه په قول باندي

**بَعْدُ:** دبعدُ دپاره دری ،۳، حالته دي اولفظ دبعدُ په دوه و حالتونوكي معرب دي اويه يوحالت كي مبني په ضمی سره دی يو به مضاف اليه دبعدمذكور فی الكلام وي او يا به محذوف وي اوهركله چه محذوف وي نوبيابه يامحذوف منوي وي اويابه محذوف نسياً منساوي معترض **اعتراض** كوي چې منوي څه ته وايي اونسياًمنسيا څه شي دي **جواب** منوي هغه ته وايي چې دمتكلمَ په نيت كي وي اونسياً منسيا هغه دي چې نه ذكروي اونه په نيت دمتكلم كي وي .هركله چه تاداخبره زده كره نوكچرته مضاف اليه دبعد مذكور او محذوف نسياً منسياوي نولفظ دبعدُبه معرب وي اوپه دغه يوصورت چې مضاف اليه يې محذوف منوي (په نيت دمتكلم كي ، وي نوبعدُبه مبنی وي په ضمی سره اودغه مضاف اليه دبعدُبه محذوف منوي وی هغه جملی ثلاثه وی ته نوپس تقدير دعبادت به داسې مَهْمَايَكن

متن الشرح بعد التسمية والحمد والصلواة:

(دامابعد) نه ورسته مصنفؒ یو خو څیزونه ذکرکوي، چې هغه اووه (۷) خبرې دي

(۱) تعین دفن د تضیف کوي چې دا متن دي که حاشیه او که شرح ده. (فهذا مختصر مضبوط)

(۲) تعین د علم مصنف فیه کوي چې: دا کتاب په کوم علم کې تصنیف کړی شوي دي. (في النحو)

(۳) دصفات مدحي ځوکوي چه طالبانو ته خوښ کړي ........ (مصنف چې کوم صفتونه کړي)

(۴) ذکر داسم د دي کتاب کوي چې دکتاب نوم څه دي (هداية النحو)

(۵) دوجهې دتسمیې چې د دغه نه څه مراد دي .......... (هدایت دالله طالبانو ته اوکړي)

(۶) داجمالي خلاصې دکتاب چې اجمالً په دي کې څه دي على مقدمة وثلاثة اقسام وخاتمة

(۷) دفعه دعُجب اوتکبر کوي دمصنف چې مصنف خو په هر خبې کې خان ته نسبتونه کړي

**ترکیب:** اما بعد په اصل کښې **مهمایکن شئ من الاشیاء ثابتابعد التسمية والحمدلة والتصلية: مهما** اسم شرط **یکن** فعل از افعال ناقصه **شئ** موصوف **من** حرف جر **الاشیاء** مجرور، جار سره دمجرور نه دا ظرف مستقر تعلق نیسي **ثابتً** یوري، **ثابت** صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې مستتر چې هو ده هغه فاعل او سره دمتعلق نه دا صفت کیږي لپاره دشئ موصوف، موصوف سره دصفت نه دا اسم د یکن فعل لپاره، **ثابتً** صیغه د اسم فاعل ضمیر پکښې مستتر ده چې هُو ده دا ئې فاعل **بعد** مضاف **البسملة** معطوف علیه **واو** حرف عاطفه **الحمدلة** معطوف اول **واو** حرف عاطفه **التصلية** معطوف ثاني، معطوف سره د معطوفینو نه دا مضاف الیه شو لپاره د مضاف، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مفعول فیه شو لپاره د ثابتاً، ثابتاً صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې مستتر چې هو ده دائې فاعل او سره د مفعول فیه نه دا شبه جمله خبر واقع شو لپاره د یکن. یکن فعل از افعال ناقصه سره د اسم او سره د خبر نه دا جمله فعل شرط شوه

# فَهٰذَا مُخْتَصَرٌ . . . ترتيب الكافيه تشريح

• فَهٰذَا مُخْتَصَرٌ مَضْبُوطٌ فِي النَّحْوِ جَمَعْتُ فِيْهِ مُهِمَّاتُ النَّحْوِ عَلٰى تَرْتِيْبِ الْكَافِيَةِ مُبَوَّبًا وَمُفَصَّلًا

**ترجمه:** دا یو مختصر کتاب ده او جوړ شوی ده په نحو کښې او ما پدې کښې جمع کړی دي اهمي مسئلې د علم نحو په ترتیب د کافیه سره او مسائل د دې کتاب تقسیم شوی دي په بابونو او فصلونو سره

**تشریح:** اما بعد: فهذا مختصر مضبوط في النحو جمعت فيه مهمات النحو على ترتيب الكافيه

**فَهٰذَا**: هذا اسم اشاره ده اودي سره اشاره مفردمذکرمحسوس بالبصر ته کيږي چې واحد وي، مذکروي

خکاريدونکي وي نودلته به هذا سره اشاره کتاب ته اوشوه اوبه کتاب کې دري (۳) احتماله دي يو الفاظ بل معنی اوبل نقوش نومعترض **اعتراض** کوي چې اسم اشاره کتاب ته ده اوبه کتاب کې خودغه دري څيزونه دي او اسم اشاره دغه ټولو ته نه کيږي

**الفـاظ**: جمع ده دلفظ او اسم اشاره مفردته کيږي اوبله وجه داده چې الفاظ محسوس بالبصرنه دي. څکه چې الفاظ پيدا کيږي اوختميږي نوپس الفاظوته اسم اشاره نه کيږي

**معنی** په هذا سره اشاره معانيوته هم نه کيږي څکه چې معنی مفردنه دي اوبله خبره داده دامحسوس بالبصرنه دي څکه چې معنی پوشيده وي

**نقوش** داخوبه نظرځکـ ری خوداجمع ده اوبله وجه داده چې دامقصودي نه دي يعني غيرمقصودي دي او اسم اشاره مصنف غيرمقصودته نه کوي نوپس نقوشوته هم اشاره نه کيږي نواستعمال دلفظ دهذا صحيح نه دي په دريو احتمالاتو کې

**جواب** په هذا سره اشاره مونږه ذهن دمصنف ته کوويعني داسي ماحَضَرَبه ذهن دمصنف کې چې پشان دمحسوس بالبصر گرزيدلی وی دوجهی دکمال دحضورنه **اعتراض** دادي چې مصنف په ذهن کې خودي ليکن مونږنه په نظرنه راځي **جواب** دادي چې يومخصوص حقيقي دي اوبل محسوس حُکمی دي

**محسوس حقيقی**: هغه ته وئيل شي چې په حقيقت کښې محسوس بالبصروي يعني په سترګو سره خکاري

**محسوس حکمی**: هغه دي چې په سترګو سره نه خکاري خودوجهی دکمال دضبط نه يعني مشار اليه دمصنف ذهن دي اوبه هغې ذهن کې د الفاظو معانيو اونقوشو دکمال ضبط دوجهی نه اودکمال حُضوردوجهی نه اودکمال انضباط دوجهی نه محسوس حُکمی ثابت شو. نوپس هذا اسم اشاري سره مشار اليه ماحَضَربه ذهن دمصنف کې چې پشان گرزيدلی دي دمحسوس بالبصراودوجهی دکمال دحُضورنه اوڅوک **اعتراض** اوکړي چې دمصنف په ذهن کې خوداټوله مجموعه ضبط ده او اسم اشاره خومفردنه مذکرته کيږي **جواب** مونږته محسوس بالبصر صرف دمصنف ذهن دي چې مفردي اومذکردي اومحسوس حکمی دی خواه که دلته ډک وي

**مُختصر**: داخبردي دهذا اومختصرپه معنی (قليل المبانی کثيرالمعانی) يعني هغه

کتاب چې الفاظ او حروف يکې لږوي او معنې ئې زياتې وي حاصل يې دا دي چې متن بې به مختصر فقروکښې مستعمل وي او مقصد يې ډېروي

**مضبوط**: مضبوط د مُختصر صفت دي او په معنې: محفوظ عن الحشو والتطويل، يعني هغه الفاظ يامعاني چې هغه محفوظ وي د حشو نه (حشو هغه مقصود نه وايې چې هغه خلل انداز او بې فائدې وي)، او د تطويل نه (تطويل هغه نه اثر کلام ته وايې چې هغه په مقصود کې خلل انداز نه وي)

**في النحو**: يعني دا کتاب ثابت دی په نحو کې او دا ظرف مستقر دي يعني نحو يې ظرفيت دی او په دې پسې يو جمله بله راځي چې جمعت فيه مهمّات النحو يعني نحو ثابته ده په دې کتاب کې نو په دې دواړو کې ظاهري تقابل دي في النحو چې په ديکې يو ضمير مستتر دي چې في النحو او نوضمير مجرور حذف شو او فاعل ظرف دې قائم مقام شو نو عبارت داسې دي چې في دې کتاب کې النحو نحو ثابته شوه او في النحو د مختصر صفت

**جمعتُ فيه مهمّات النحو**: جمعت صيغه د واحد متکلم ماضي معلوم ده او دا هم د مختصر صفت بعد الصفت دی

**مهمّات**: مهمات جمع د مُهِمّة ده په معنې د اهمې خبرې يعني مقصود دي مسئلې د نحو بله معنې داسې راځي چې مهمّة د مبهم نه ماخوذ دي او مبهم په معنې د قصد نه ماخوذ دي او وهم په معنې مشکلات دي ليکن دلته تري مراد مشکل دي او مهمات جمع مؤنث سالمه ده **اعتراض** دا دي چې مصنف مهمات په ضمير مهمّاته ويلې وي نو **جواب** دا دي چې دا د اختصار د زيادت د وجهې نه او اسم ظاهر اول په ضمير د ضمير دا زيادت راولي

**على ترتيب الكافية**: ترتيب په لغت کې ساختن شې د يو شي جوړول په اصطلاح کې وضع کل شئ في مرتبته کينول د يو شي يا ذکر کول د يو شي په مناسب ځايې د هغه شي کې پس دريم صفت شو چې دا کتاب په ترتيب د کافيه دي

**اعتراض** وارديږي چې ترتيب د کافيې د بر مختلف دي ددې نه نو مصنف څنګه د ترتيب لفظ استعمال کړو **جواب** د ترتيب نه مراد دانه دي چې هداية النحو بالکل د کافيې په ترتيب ده بلکه کافيه په داسې ترتيب باندې واقع ده چې د انسان طبيعت د هغې مسلم تقاضا کوي او د نحو عظيم الشان او معتبر کتاب دي او خلق ورته په درون نظر ګوري نو مصنف خکه خپل کتاب د کافيې په ترتيب سره ذکر کړو. او دا هم ممکنه ده چې د کافيې بعضې مسئلې ددې سره مُختص وي خکه چې دا هم د علم

نحو کتاب دي او کافیه هم د نحو کتاب دي لکه ترتیب د کافیې چې دي هغه پدي شان دي چې اول بحث یکي دفعل دي بیا داسم او حرف او بیا دا سم مرفوعات منصوبات مجرورات وغیره او دغه شان ترتیب د هدایة النحو دي

**ترکیب**: فاء جزائیه **هذا** مبتدا **مختصر** موصوف **مضبوط** صیغه داسم مفعول **فی** جاره **النحو** مجرور ، جار سره د مجرور نه دا ظرف مستقر تعلق نیسي په مضبوط پوري مضبوط صیغه داسم مفعول ضمیر په کښې مستتر ده دا نائب فاعل او سره د متعلق نه د صفت اول شو ، **جمعت** فعل ضمیر ذوالحال **فی** جاره **ه** ضمیر مجرور ، جار سره د مجرور نه ظرف لغو تعلق نیسي جمعت پوري ، **مهمات** مضاف **النحو** مضاف الیه ، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مفعول به شو د جمعتُ **علی** جار **ترتیب** مضاف **الکافیه** مضاف الیه ، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور شو دعلی جار ، جار سره د مجرور نه تعلق نیسي جمعت پوري **مبوب** صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې مستتر حی هُو ده دا فاعل ، صیغه داسم فاعل او سره د فاعل نه دا شبه جمله معطوف علیه شوه **و** او حرف عاطفه **مفصلاً** معطوف ، معطوف سره د معطوف علیه نه دا حال شو د جمعتُ د ضمیر نه ، حال سره د ذوالحال نه دا فاعل شو لپاره د جمعتُ

**بِعِبَارَةٍ وَاضِحَةٍ مَعَ اِيْرَادِ الْاَمْثِلَةِ فِيْ جَمِيْعِ مَسَائِلِهٖ مِنْ غَيْرِ تَعَرُّضٍ لِلْاَدِلَّةِ وَالْعِلَلِ**:

**ترجمه** عبارت واضحه سره او په راوړلو د مثالونو کښې په ټولو مسائلو کښې د ذکر کړې دي بغیر د راوړلو د دلیلونو او علتونو نه

**تشریح**: په دیکښې دوه احتماله دي یو: چه دواړه صیغې داسم فاعل واخستی شي په کسرې د واو او صاد سره او دا دواړه لفظونه منصوب دي بناء پر حالیت یعنې داحال واقع شوي دي د فسله د منصوباتونه دي او س طریقه داده چې دواړه منصوب بر حالیت شي نو دا به ذوالحال غواړي که صیغې اسم فاعل وي نو دا به حال د ضمیر د جمعتُ نه واقع شوي وي نو معنی به یې داسې شي چې ما جمع کړي دي مهمات د نحو په ترتیب د کافیې سره په داسې حال کې چې زه باب باب کونکي او فصل فصل کونکي و یم دوه احتمال دادي که داصیغې په فتحې د واو او د صاد سره واخستې شي نو بیا به صیغې داسم مفعول شي او دا به حال د فیه نه واقع شي او معنی به یې داسې شي چې ما جمع کړي دي مقصود دي مسئلې د نحو په ترتیب د کافیې په باب باب او فصل فصل کې مبوب د تبویب نه ماخوذ دي په معنی باب باب او مفصلاً د تفصیل نه ماخوذ دي په معنی د فصل فصل پس د دواړو احتمالونو معنی به داسې او ګرزي چې دا مختصر په ابوابو او فصلونو مشتمل دي

**بعبارةٍ واضحةٍ**: العبارت په لغت کې د خوبونو معنی بیانولو ته وایي او چونکه کوم

الفاظ چې په معنی دلالت کوي هغه الفاظو ته عبارت څکه وایي چې دغه معنی نفوس انسان کې مضمری وي واضحة دوضاحت نه ماخوذ دي په معنی رڼر اکیدل نومطلب داشو چې په داسې عبارت سره م جمع کړه چې معنی یې صفااو واضحه وي اوبلهٔ خبره داده چې مصنف دېووهم دلری کولو دپاره بعبارة واضحه ذکرکړوهغه وهم دادې چې کله مصنف ترتیب الکافیه اوونیلی نوداوهم پیدا شوچې ددې مختصرعبارت هم دکافیې پشان دې نوداواضحٌ په وجه وهم لرې شوچې ددې مختصرعبارت دکافې دعبارت پشان نه بلکه واضح دې.

**مَعَ ایرادُالامثلۃِ**: مع دمفعول فیه واقع کېدلو دوجهې نه همیشه منصوب وي په اعتبردمتعلق چې واضحة دې اوبی دعبارةً صفت دې ایراد مصدر دې په معنی راوړل دده اضافت مفعول طرف ته دې امثله دمثال جمع ده اومثال هغه ته ونیلی شي چې هغه دقاعدې دواضح کېدودپاره ذکرشي

**فـي جميـع مسـائلهـا** في دلام اختصاص په معنی دې مسائل دمسئلی جمع ده په اصطلاح په شرع کې مسئله دیوامرنسبت دالله یادحضورﷺ مجتهدینو دایې طرف ته کول داهل فنونو په اصطلاح کې اثبات محمول للموضوع بالدلیل یابلا دلیل بیانولو ته مسئله وایي – اوپه مسائلها کې داهاضمیردمؤنث دې اودلته مختصرته راجع دې اودراجع اومرجع دیوبل سره مطابقت ضروری دې اومختصرخو مذکردې نوداهاضمیردمؤنث څنګه مختصرمذکرته راجع دې

**جواب** داپه اعتباردرسالهٔ سره دې څکه چې دې کتاب ته رساله هم ونیلی شي دویم **جواب** دادې چې داپه اعتباردکافیه سره دې اګرکه په کافیهٔ کې تادمبالغې ده لیکن تادتانیث دمعنی نه دمبالغې په صورت کې نه خارجیږي نوداها ضمیر د مختصر طرف ته راجع نه ده بلکه دکافیې طرف ته راجع ده چونکه دمختصرمسائل بعینه دکافیې مسائل دی نوګویاد مختصر د مسائلو مثال دکافیې دمسائلومثال راوړل دي

**مِنْ غَيرِتَعَرُّضٍ لِلأَدِلَّةِ وَالْعِلَلِ**: تعرض اواعتراض دواړه په معنی اقدام علی شي (دیوشي مخې ته راتلل) نومعنی به تولـه داسې شي چې بغیرد پیش قدمي ددلائلو اودعلتونونه ادله ددلیل جمع ده په لغت کې (راه نماننده) ته ویلی شي په اصطلاح کې دلیل هغه شي دې چې دهغې په پېژندلوسره دبل شي پېژندل لازم راشي

علل جمع دعلة ده لغوي معنی یې (موثر) ده

په اصطلاح کي هغه شي دي چي په هغه باندي دبل شي وجود موقوف وي بعضي شرحين وايي چي دليل او علت يو شي دي او په خطبه کي دالفاظو مترادفه جمع کول مذموم نه دي نو پس دمصنف وبناده چي په دي مختصر کي په مسئلو د دليلونو او علتونو پيش قدمي ما او نکړه اګرچي په بعضو مسئلو کي بي بيان کړی دي

**ترکيب:** با- جاره **عبارة** موصوف **واضحة** صفه د اسم د فعل ضمير پکښی مستتر ده داني فعل **مع** مضاف **ايراد** مضاف اليه مضاف **الامثلة** مضاف اليه **فی** جاره **جميع** مضاف مسائل مضاف اليه مضاف **ها**، ضمير مضاف اليه مضاف سره دمضاف اليه نه دا ب مضاف اليه شو د جمع مضاف لپاره مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور شو د في جاره . جار سره د مجرور نه داظرف لغو تعلق نيسي ايراد مصدر پوري **من** جاره **غير** مضاف **تعرض** صفه دمصدر ده **لام** حرف جاره **الادلة** معطوف عليه **واو** حرف عطف **العلل** معطوف . معطوف سره دمعطوف عليه نه دا مجرور شو دعلي جاره. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو تعلق نيسي تر نرض مصدر پوري **واو** حرف عاطفه **سميت** فعل ضمير پکښي مستتر چي أنا دي فاعل . **ه** ضمير مفعول به با، حرف جاره **هداية** مصدر مضاف **النحو** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور شو دبا، جاره لپاره جار سره د مجرور نه دا تعلق نيسي تر سميتُ فعل پوري رجاء مصدر مضاف **ان** ناصبة **يهدي** فعل **الله** ذوالحال **تعالی** فعل د فعل . فعل سره د فاعل نه دا حال شو لپاره د ذوالحال . حال سره دو ذوالحال نه دا فاعل شو لپاره يهدي با، جاره ه ضمير مجرور . جار سره د مجرور نه دا متعلق شو يهدي پوري، **الطالبين** مفعول به. يهدي فعل فاعل مفعول او سره د متعلق نه دا جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدر سره مضاف اليه شوه لپاره د رجاء مضاف. رجاء مصدر مضاف سره د مضاف اليه نه دا مفعول له شو لپاره د سميت . سميت فعل فاعل مفعول به مفعول له او سره د متعلق نه دا جمله خبريه شوه **واو** عاطفه فعل فاعل ه ضمير مفعول به **على** جاره معطوف عليه **واو** عاطفه **ثلاثة** عدد مبهم مميز مضاف **اقسام** تمميز مضاف اليه . مميز مضاف سره دتمميز مضاف اليه نه دا معطوف اول شو . **وخاتمة** معطوف ثاني معطوف سره د معطوفينو نه دا مجرور شو دعلي جاره. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو تعلق نيسي رتبت پوري

لِئَلَّا يَتَشَوَّشَ ذِهْنَ الْمُبْتَدِيْ عَنْ فَهْمِ الْمَسَائِلِ وَسَمَّيْتُهُ بِهِدَايَةِ النَّحْوِ رَجَاءَ اَنْ يَّهْدِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِهِ الطَّالِبِيْنَ وَرَتَّبْتُهُ عَلٰى مُقَدِّمَةٍ وَّثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ

**ترجمه** د دي د پاره چه د مبتدي ذهن مسائلو پوهيدلو په وخت کښې تشويش او

پریشانی کښې مبتلا نه شي او ما د دې ی کتاب نوم هداية النحو کیخودلو پدې امید سره چه الله د ذریعې سره طالبانو ته هدایت ورکړي او م دا مرتب کړي په یوې مقدمې او په درې اقسامو (اسم، فعل، حرف)

**تشریح**: يشوش التشويش پريشان كولوته وايي

**الذهن**: په لغت کې فهم ته وايي په اصطلاح هغه قوت دې چې کوم دانسان په زړه کې موجود دې او په هغې کې دمعنی انطباع کېږي اودې ته مدرکه . دراکه اوقوت علميه هم ويلی شي

**المبتدي**: په لغت کې شروع کولو والا په اصطلاح کې چې هغه جزاول دباقي تمامو جزياتو تحصيل په اراده شروع کړي مبتدي په دوه قسمه دي طبعي ، اکتسابي

**طبعي مبتدي**: هغه سړی دي چې هغه مسائل په خپل طبيعت او پوهی سره حاصل کړي

**اکتسابي مبتدي**: هغه سړی دي چې هغه دنورونه زده کړي لکه مثلاً شاگرد د استاد نه - مصنف په عبارت کې د المبتدي نه مراد اکتسابي دي

**لئلايُشَوِّش**: پدې کې دوه احتماله دي يو دا چې معروف او ويلی شي او ذهن المبتدي ورله مفعول شي او منصوب شي يشوّش په کسرې دواو سره او فاعل به پکې ضمير شي چې ايراد داله طرف ته راجع دي نو مطلب دا شو چې دادله نه راوړل دي وجهی نه دي چې ايراد اداده ذهن دمبتدي لره په تشويش کې اچوي او پريشان کوي يې اوکچرته دادله او علل نه تعرض کړي وي او بيان کړي يې وي نو اکتسابي مبتدي به په مسائلو کې مشغول وو اودليلونو او عللتونو سره به ويلی نو دغريب طالب ذهن به پريشان شوي وو او دا هم ممکنه ده چې سبق يې بريښي وي دويم احتمال دا دي چې لئلايُشوّش کله چې مجهول او ويلی شي نو په دغه وخت کې به ذهن مبتدي د نائب فاعل کيدو په بناء مرفوع ويلی کيږي نو بس ترجمه به دا سې شي چې پريشان د نکړی شي ذهن دمبتدي اکتسابي

**المسائل**: پدې کښې الف لام عهد خارجي دي او یا د مضاف اليه دعوض نه دي او ددې نه مراد مسائل مختصره دي

**وَسَمَّيْتُهُ بِهِدَايَةِ النَّحْوِ رَجَاءَ أَنْ يَّهْدِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِهِ الطَّالِبِيْنَ** . ما مسمّیٰ کړی دي دې مختصر لره په هداية النحو سره په عبارت کې مصنف دخپل کتاب اسم بيانوي او بيا دهغی دپاره يو وجه ذکر کوي چې هغه رجاءَ أنْ يَّهدِي ..... ده او بيا اجمالي خلاصه بيانوي او بيا دفع دنوهم اوتکرار او دلوهي دنسبتونو دمصنف چې هرځای کې خانته اشاری کړی دي چې دامې کړی داماکړی وغيره

**سَمَّيْتُهُ**: واحد متكلم تسميه په معنی د نوم ايښودل سره او دادوه مفعولينوته متعدي بنفسه

کیږي اول ضمیر متصل اوبل هدایة النحو دي اولفظ دهدایت مضاف دي النحوته اودمضاف اومضاف الیه په مینځ کي لفظ دفي پوشیده اومقدردي یعني تقدیر یې داسې دي هدایة في لنحو، دي ته اضافت ظرفي وایي اولفظ دمبتدي یکي هم مقدّردي نوپس تقدیربه یې داسې شي بهدایت المبتدي في النحوچي مذا کتاب مسمّٰی کړی دی په لاری دمبتدي په نحوکي یعني مبتدي ته به دالاره ښایي (یعني راه نمودن)

**اعتراض** دادي چي ته وایې چي طالبانوته دخماکتاب هدایت اوکړی اوهدایت کولوالاالله دي اوپه ظاهره خوددي نه داسي معلومیږي چه هدایت داکتاب ورکوی **جواب** رجاءً ایهدي الله تعالی مونږ وایوچي هدایت دالله کاردي لیکن داکتاب مونږه سبب گرزولی نودانسبت دي کتاب چي او شونو داسبیّت گرزیدلی دي اوکه رجاء مفعول به وي پس دي ته وجه تسمیّ ویلی کیږي اوکه هدایت د سببیت دپاره دی یعني پدي سبب سره چي هدایت اوکړی الله تعالی طلب کونکو علم ته

**رتّبتُه**: اومامرتب کړی دي رتبت صیغه دواحدمتکلم ماضي ده دترتیب نه ماخوذ ده په معنی د هرشیز په خپل ځائي ایښودل. اوپه اصطلاح کي هغه ته وایي چي اشیایي کثیره داسی کیخودل چي په ټولوباندي د یو اسم اطلاق وي اودهغوتقدیم اوتاخیرسره یې تعلق وي. نوپس مامرتب کړی دي په یومقدّمه باندي اوپه دری اقسامواوپه خاتمی باندي

**مُقدمه** مصنف دکتاب د اجزاو طرف ته اشاره کړی ده یعني داکتاب په پنځه اجزاء وکښی تقسیم دي اول مقدمه. بیادری اقسام (اسم فعل حرف) اوبیاخاتمه ده

اوپه مقدمه کي دری فصله دي اول فصل، په تعریف، موضوع، غرض، اودکلمی په تقسیم مشتمل دي

اوپه دویم فصل کي دکلمي وضاحت شوي دي اوپه دریم فصل کي دکلام تشریح اووضاحت شویدي اوخاتمه په کتاب کي نشته اوخاتمه دکتاب آخری حصی ته وایي نوددي کتاب په آخره کي خو خاتمه نشته نوداد کاتبانونه غلطي شوي ده

**ترکیب** لام جاره ان مصدریه لا نافیه **یشوش** فعل ضمیر بکښی مستتر چې هُو ده دا فاعل ده **لفظ** مضاف **المبتدي** مضاف الیه مضاف سره د مضاف الیه نه دا مفعول به شو د یشوش. **عن** حرف جاره. **فهم** مضاف **المحصّل** مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دعن جار سره یکښی فاعل دا ظرف لغوی تعلق نیسی یشوش پوري. یشوش فعل ضمیر دهو یکښی فاعل اوسره

دمفعول په او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه په تاویل دسره مجرور شو دلام جاره جار سره دمجرور نه داظرف لغوی تعلق نیسی تعرض مصدر پوري. تعرض مصدر سره د دواړو متعلقینو نه چی متعلق اول هغه للادلة والعلل ده او متعلق ثانی لئلا یشوش المسایل دي دا مضاف الیه شو لپاره د غیر مضاف . مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور شو د من جاره ، جاره سر دمجرور نه دا تعلق نیسی ایراد مصدر پوري. ایراد مصدر مضاف سره د دواړو متعلقینو نه او سره دمضاف الیه چی الامثلة ده دا بیا مضاف الیه شو لپاره دمع مضاف . مع مضاف سره دمضاف الیه نه چی ایراد الامثلة الخ دي دا مفعول فیه دي لپاره دواضحة اسم فاعل. واضحه صیغه داسم فاعل او ضمیر پکښي مستتر دي هغه نایب فاعل او سره دمفعول فیه نه دا شبه جمله صفت شو لپاره دعبارة موصوف. موصوف سره دصفت نه دامجرور شو لپاره دبا جاره. جار سره دمجرور نه دا تعلق نیسي جمعت پوري. جمعت فعل فاعل مفعول به او سره دمتعلقینو نه دا جمله فعلیه خبریه صفت ثانی شو لپاره دمختصر موصوف موصوف سره دصفتنو نه دا جمله فعلیه خبریه خبرشو لپاره دمبتدا چی هذا ده، مبتدا سره دخبرنه دا جمله اسمیه جزا شوه دشرط ، شرط سره دجزا نه دا جمله فعلیه خبریه شرطیه شو

والحرف عاطفه سمیت فعل ضمیر پکښي مستتر دی چی انا ده نائب فاعل. ه ضمیر مفعول به. با، حرف جاره هدایة مصدر مضاف النحو مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دبا جاره . جار سره دمجرور نه دا تعلق نیسی سمیت فعل پوري جاء مصدر مضاف ان ناصبه یهدی فعل الله ذوالحال تعالی فعل فاعل . فعل سره دفاعل نه دا حال شو لپاره د ذوالحال . حال سره دو ذوالحال نه دا فاعل شو لپاره یهدی با جاره ة ضمیر مجرور . جار سره دمجرور نه دا متعلق شو یهدی پوري، الطالبین مفعول به. یهدي فعل فاعل مفعول او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر سره مضاف شوه لپاره د رجاء مضاف. رجاء مصدر مضاف سره دمضاف الیه نه دا مفعول له شو لپاره دسمیت . سمیت فعل فاعل مفعول به مفعول له. او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه وا و عاطفه رتبت فعل فاعل ه ضمیر مفعول به علی جاره مقدمة معطوف علیه واو عاطفه ثلاثة عدد مبهم ممیز مضاف . اقسام تمیز مضاف الیه. ممیز مضاف سره د ممیز مضاف الیه نه دا معطوف اول شو وخاتمة معطوف ثانی معطوف سره دمعطوفینو نه دا مجرور شو دعلی جاره. جار سره دمجرور نه داظرف لغو تعلق نیسی رتبت پوري

بتوفیق . كبنى تشريح

بتوفیق الملك العزیز العلام

**ترجمه** په توفیق د کائناتو د بادشاه سره چې هغه غالب او پوهه دی په هر شی باندي

**تشریح** توفیق د باب تفعیل نه دي په لغت کې (د ‌ست دادن کسی رابکاری، یعني چاته په کارکې لاس ور کول نو پس دا معنی تري ثابته شوه چې د چا سره په یو کار کې مدد کول په اصطلاح کښی جَعْلُ الاسبابِ لِلعَبْدِ مُوَافِقَ المَطْلُوبِ الخَيْرِ کرزول د اسبابو د عبد دي موافق د مطلوب خیر سره پس معنی دا شوه چې په توفیق د تمامو کائناتو د بادشاه چې غالب دي او پوهه دي په هر څه نو مصنف دا جمله د دوو وجوهاتو نه ذکر کړه یو داچې د تالیف او تصنیف د امحل او مقام ذُخطر اتونه دي یعني د دین خدمت دي نو په دوجه شیطاني وسوسی او مشکلات وي نو ځکه مصنفؒ د الله په مدد سره بتوفیق الملك ذکر کړو بله وجه داده چې د رتبت صیغه د واحد متکلم ده او دفعل نسبت یکې خپل نفس طرفته کیږي او خان طرف ته نسبت د عجز او کسر نفسی خلاف دي نو خلق به وایي چې مصنفؒ خوخان ته نسبتونه کړي دي او دي نه تکبر او تعجب معلومیږي نو ځکه مصنف دا جمله ذکر کړه چې دا تصنیف په توفیق دالله سره ماکړی دي

**ترکیب**: باء جاره توفیق مضاف الملك موصوف العزيز صفت اول العلام صفت ثاني، موصوف سره د صفتینو نه دا مضاف الیه شو لپاره د توفیق مضاف، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور شو لپاره د علی جاره. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو متعلق شو رتبت پوري رتبت فعل سره د فاعل نا مفعول به او سره د متعلقینو نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

**أَمَّا الْمُقَدِّمَةُ فَفِي الْمَبَادِي الَّتِي يَجِبُ تَقْدِيمُهَا وَلِتَوَقُّفِ الْمَسَائِلِ عَلَيْهَا وَفِيهَا أُصُولٌ ثَلَاثَةٌ:**

**ترجمه** پس هر چې مقدمه ده په ابتداء کښی واجب ده مخکې کول د هغی چې موقوف دي مسئلی په هغی باندي او په دې کې دری فصله دي

**المقدمة تشریح**: لفظ د مقدمی ماخوذ دی د مُقَدِّمَةُ الجیش نه او مقدمة الجیش دلښکر (جنګی لښکر) نه چې مخکې کوم جماعت انتظامه وي یعني دلښکر دپاره د خوراك سخك او درهائش وغیره پروګرام کوي او مخکې تري روان دي او مت سبت یې په منځ کې دادي چې مقدمة الجیش په ټول لښکر باندي مخکې وي نو دغه شان دامقدمه د کتاب په مسائلو باندي مخکې وي او پدې کې ډیر اختلافات دي لیکن جمهور پدې باندي قائله دی چې دا د مقدمة الجیش نه ماخوذ دي او بیا پکې ډیر اقسام دي یو مقدمة العلم دي یو مقدمة الکتاب دي او نور هم دي خو ته دا دوه یاد ساته مقدمة العلم هغه معنی مخصوصه وي چې مسائل د علم شروع بناء برنصیرت موقوف وي او هغه مبادي عشره دي چې تعریف د علم موضوع د علم او غرض د علم او غیره تفصیل

يې په منطق کې ګوره او مقدمة الکتاب د کلام هغه حصّه چې هغه د کتاب د مسائلو نه مخکې وي که مسائل پرې موقوف وي او که نوي او س دلته د مقدمې نه بعد لفظ د مبادي ذکر دی او مبادي امور ثلثه دي نو د امقدمة العلم ثابته شو ه دليل دا دي چې دغه امور ثلاثه موقوف عليه د مسائلو دپاره دي.

**مبادي** جمع مبدأ ده په معنی اَوَّلُ کُلِّ شيٍ. اول د هر شي نه وايي، او مقدّمة ايضاً.

د مصنف په قول باندې يو **اعتراض** دي چې په امامقدمة ففي المبادي کې دا فی د ظرفيت د پاره ده او د تعريف نه دا معلومه شو ه چې مقدمه او مبادي يو شي دی نو دلته ظرفيت د شي دخيل نفس دپاره لازم شو او دا محال او ناجائز دي . **الجواب** مقدمه عبارت د معانو مخصوصه دي او مبادي عبارت د الفاظو مخصوصه دي نو تقدير به ښې دا ښې شي امّا المعاني المخصوصة ففي الالفاظ المخصوصة نو ظرف الفاظ او معنی مظروف او ګرځيد و نو ظرفيت الشي لنفسه لازم نه شو او معاني مخصوصه امور ثلاثه دي تعريف موضوع غرض او الفاظ دغی دا مخصوص الفاظ دي نو معنی به دا ښي شي هر چې دي دغه امور ثلاثه دا کائن او ثابت دي په الفاظو کې او دغه امور ثلاثه موقوف عليه د مسائلو دپاره وي او د متاخرينو دا دستور دي چې په مقدمه کې ذکر کوي او بيا هر شارع في العلم لره لابُدي ده دا امور ثلاثه نه چې تعريف دي موضوع ده او غرض د علم پس تعريف د علم ذکر کول ضروري دي چې طلب دَ مجهول مطلق لازم نه شي او دا ناجائز دي . موضوع د علم څکه ضروري دي چې امتياز را شي د علم شروع فيه د غير مشروع فيه يعني د يو علم د بل علم نه جدا والی او امتياز په موضوع سره کېږي او چه امتياز را نه شي نو دا محال او حرام دي او غرض د علم څکه ضروري دي چې سعي کوشش په عبث کې لازمه نه شي يعني هر کله چې غرض د علم معلوم نو ي نو د مبتدي کوشش نو په عبث او بيکاري کې واقع شي او د عبث شي حاصلول ناجائز دي

**ترکيب:** اما حرف تفصيل **مقدمة** مبتدا ده متضمن ده معنی د شرط لره **فاء** جزائيه **في** حرف جر **المبادي** موصوف **التي** اسم موصول **يجب** فعل **تقديم** مضاف **ها** ضمير مضاف اليه، مضاف سره د مضاف اليه نه دا فاعل شو . **لام** جاره **توقف** مصدر مضاف **المسائل** مضاف اليه **علی** حرف جر **ها** ضمير مجرور جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو ه متعلق د توقف مصدر پوري، توقف مصدر مضاف او سره د مضاف اليه او سره د متعلق نه دا مجرور شو ، د لام جاره . جار سره د مجرور نه دا متعلق شو يجب فعل پوري. يجب فعل فاعل او سره د متعلق نه دا صله شو ه د موصول ، موصول سره د صله نه دا صفت شو د موصوف ، موصوف سره د صفت نه دا مجرور شو د في جاره، جار سره د مجرور نه دا ظرف

مستقر متعلق شو په ثابتةً پوري دا مجموعه خبر قائمقام جزا مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه جزائیه شوه واو عاطفه **فیها** جار مجرور ظرف مستقر متعلق په ثابتةً پوري خبر مقدم **فصول** موصوف **ثلاثة** صفت، موصوف سره د صفت نه دا مبتدا مؤخر شوه. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.

## تعریف د علم نحو

**فَصْلٌ: اَلنَّحْوُ عِلْمٌ بِأُصُوْلٍ يُعْرَفُ بِهَا اَحْوَالُ اَوَاخِرِ الْكَلِمِ الثَّلٰثِ مِنْ حَيْثُ الْإِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ وَكَيْفِيَّةُ تَرْكِيْبِ بَعْضِهَا مَعَ بَعْضٍ:**

**ترجمه**. نحو د یوسو قاعدو پیژندلو نوم دے د ذریعې سره پیژندلی شی احوال داواخرو د کلماتو ثلاثه د حیثیت د اعراب او بناء نه. او پیژندلی شی کیفیت د ترکیب د بعضو کلماتو د نورو بعضو سره

**تشریح**: دا د مقدمې اول فصل دې پدې کښې مصنف تعریف موضوع او غرض بیانوی

أس لفظ دفصلٌ چې کله دمابعد سره پیوست کړی شي نو بیابه معرب وي او پدیکې دوه احتمال دي که لفظ دفصلٌ مرفوع شي نو دا به بناء، برخبریت دمبتدا مقدر ي دپاره وي او خبر د مرفوعاتو نه دي نو دعبارت تقدیر به داسې شي چې هَذَا فَصْلٌ دویم احتمال دادی که منصوب شي نو دا به مفعول به .واقع شي دفعل مقدر دپاره نو تقدیر دعبارت به داسې شي خُذْ فَصْلاً خذ صیغه دامر حاضر ده

دفصل لغوي معنی قطع دی لکه عرب مثال پیش کوی فَصَلْتُ الثِّيَابَ يعنى قطعتُ الثياب او دافصل هم قاطع دي په مابین دماقبل او مابعد عبارت کې په اصطلاح کې (الْحَاجِزُ بَيْنَ الْحُكْمَيْنِ) هغه مانع او حاجز په مابین د دوه حکمونو کې

**تعریف دعلم النحو**: په لغت کې لفظ دنحو په ډیرو معنو سره مستعمل ده قصد او ارادی ته وائي لکه مثال نَحَوْتُ نَحْوَهُ يعني قَصَدْتُ (۲)، په معنی مثل سره هم راځي یعني دمثال په ځای (۳) جانب او طرف ته هم ویلې شي لکه (ذَهَبْتُ اِلَى نَحْوِ دَارِهِ) ماتلل او که د جانب دکور دهغه ته یعني طرف ته (۴) حفاظت او صیانت ته هم ویلی شي لکه نحوهم عن النار كما نحو كلامي عن الخطاء (مراد سرې نحویان دي)، (۵)، احتراز کولو ته هم ویلې شي یعني دیو ځای نه احتراز کول لکه اِنْحَرِفْتُ عَنْ ذَالِكَ الْمَكَانِ، بیا به روان شی دخپل ځای یعنې احتراز به او کې

دعلم النحو سره خلورمه معنی مناسبت لري

**اُصول**: دا جمع داصل ده په لغت کې (مَا يُبْنٰى عَلَيْهِ الشَّيْئُ يعني هر هغه شي چې بل څیز پرې بناء وي

په اصطلاح کې قواعد کليوته وبلی شي اُس ددغه قواعدو کليو فائده داده چې پيژندي شي پدي سره حالتونه دآخر دکليمو تلاثو (چې اسم دي فعل دي او حرف دي) پدي حيثيت سره چې معرب ده کـه مبني دا وکيفيت عطف دي پـه احـوال بانـدي يعـني کيفيـت اوحالـت اوهيئـت دترکيباتو دبعضونه په بعضو باندي نو پس علم نحو يو داسي علم دي چې حاصليږي دقواعد کليو نه خو داسي قواعد کليه چې په هغي سره پيژندي شي آخر دکلماتو ثلاثو پدي اعتبار سره چې معرب ده که مبني او کيفيت دترکيب پـه قواعدو او ضوابطو سره دبعضي کلماتو دبعضو سره لکه مثال ضَرَبَ زَيدٌ دعلم نحو پـه ذريعي دا معلوميږي چې زيد اسم دي او ورسته فاعل واقـع شـوي دي. او دغه شان دده حرکاتو احوال چې عامل واقع وي نو لفظ بـه وضـع وي خکه چې کُلُّ عَامِلٍ مرفوع او که فاعل ناصب وي نو لفظ منصوب وي خکه چې کُلُّ مَفعولٌ کُلُّ مَفْعُولٌ مَنْصُوبٌ او که عامل جاروي نو لفظ به مجرور وي خکه چې کُلّ مضاف اليه مجرورٌ

**فائده: اواخر الكلم:** پدي سره احتراز راغی دعلم لغت نه چې په هغي کي داول وسط او آخرنه بحث کيږي

**من حيث الاعراب والبناء:** پدي سره دعلم صرف نه احتراز راغی چې پدي کي دبناء بحث دي **کيفيت ترکيب الـخ** پـدي سـره احترازدبگر علومونـه راغـی لکـه فقـه منطق وغيـره يـو معترض **دااعتراض** کوي چې طالب کاکاتول کال نحوا وواپي او بيا دجملي ترکيب نشي کولی او حرکات دکلمو هم نشي جاري کولی

**جواب** دلته يعرف بهـا يعـی پيژندي شـي مگر پـه استحضار دقواعدو کليو سره چې په قواعدو کليو او په ضوابطو ادا کولوئی خان نوي پوهه کړی نوتش په عبارت لوستلو باندي نشي زده کولی اعتراض ساقط او مدفوع شو.

**ترکيب:** فصل خبر دمبتداء محذوفه چې هذا ده. هذا مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه النحو مبتدا اعلم موصوف باء جاره اصول موصوف يعرف فعل مجهول باء جاره هاء مجرور. جار سره دمجرور نه داظرف لغوه متعلق په يعرف پوري . احوال مضاف اواخر مضاف اليه الحكم موصوف الثلث صفت . موصوف سره دصفت نه دا مضاف اليه شو آواخر مضاف لپاره، آواخر مضاف سره دمضاف اليه نه دا بيا مضاف اليه شو احوال مضاف لپاره. مضاف سره دمضاف اليه نه دا نائب فاعل شو ديعرف من حرف جر حيث مضاف الاعراب معطوف عليه واو حرف عاطف البناء معطوف . معطوف سره

دمعطوف عليه نه دا مضاف اليه شو ، دحيث مضاف لپاره ، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور شو دمن جاره ، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغو تعلق نيسي يعرف پورې ، **واو عاطفه كيفية مضاف تركيب** مضاف اليه مضاف ، **بعض** مضاف اليه مضاف **ها** ضمير مضاف اليه ، بعض مضاف سره دها ضمير مضاف اليه نه دا مضاف اليه ده لپاره د تركيب **مع** مضاف **بعض** مضاف اليه ، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مفعول فيه ده لپاره د تركيب ، تركيب مصدر مضاف سره د بعضها مضاف اليه او سره دمع بعض مفعول فيه نه دا مضاف اليه ده لپاره د كيفية مضاف ، كيفية مضاف سره د تركيب بعضها مع بعض نه دا معطوف ثاني شو معطوف سره دمعطوفينو نه دا مضاف اليه شو دحيث مضاف ، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور د جار شو چې مِن ده ، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو يعرف پورې ، يعرف سره دنائب فاعل او سره دمتعلقينو نه دا جمله فعليه خبريه صفت شو داصول موصوف ، موصوف سره دصفت نه دا مجرور دباء جار ، جار سره دمجرور نه دا ظرف مستقر په اعتبار دمتعلق سره صفت شو د علمٌ ، علمٌ موصوف سره دصفت نه دا خبر شو دمبتدا ، مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه

## دعلم النحو غرض

**وَالْغَرَضُ مِنْهُ صِيَانَةُ الذِّهْنِ عَنِ الْخَطَاءِ اللَّفْظِيِّ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ:**

**ترجمه.** د علم نحو غرض ذهن لره په كلام عربي كښې د لفظي غلطۍ نه ساتل

**تشريح:** صيانت په لغت كې حفاظت ته ويلى شي او خطاء لفظي نه مراد اعرابات دي يعني په لفظ كې كله رفع وي نو رفعي ويل پكاروي او چې نصب وي نو نصبي ويل پكاروي او چې جروي نو جري ويل پكار دي دلته

**سوال** وارد كيږي چې مصنف خطاء الفظي ذكر كړى دى نو تلفظ خو دالفاظو په لسان سره كيږي او مصنف ذهن ذكر كړى دى او الفاظ ټول د ژبې نه ادا كيږي نو پكار ده چې داسې يې ويلي وي صيانت اللسان عن الخطاء الفظي نو بيا به صحيح وو ؟

**جواب** (١) دلته عبارت په حذف دمضاف سره دى او عبارت دتقديرېې داسې دى **صيانة مُدرك الذهن عن الخطاء اللفظي** او مبين په معنى دوضاحت كونكي سره دى او وضاحت كونكي دذهن دپاره لسان دى نو گويا لسان مبين دذهن دپاره دى نو ساتل دذهن دمبين دى په خطاء الفظي كې او خطاء لفظي په ژبه كې هم واقع كيږي (٢) دصيانت نسبت چې مصنف ذهن ته كړى دى نو كلام او الفاظ داپه حقيقت كې په ذهن كې پراته وي يعني په ذهن كې چې كلام او الفاظ صحيح وي نو په لسان سره هم صحيح ادا كيږي نو اول حفاظت او صيانت دذهن پكار دى اعتراض ساقط شو دفى كلام نه مراد دغه

دری اقسام دي ( اسم فعل حرف ) او چونکه دا کتاب په نحو کی دزبې دعربی دزده کولو دپاره دي
او دزده کړی بنیادي څیزونه دغه دری اقسام دي نو مصنف څکه فی کلام العرب ذکر کړو بله خبره دا ده
چې کله صیانت اضافت دفاعل طرف ته او شي نو په الذهن کي به الف لام عوض دمضاف الیه وي
او تقدیر به یې دا سې شي

بل **اعتراض** وارد شو چې نور کتابونو کي موضوع مقدم وي په غرض باندي او دلته مصنف
دموضوع نه مخکې غرض ذکر کړو **الجواب**: دا څکه چې دتعریف او غرض معنی قریباً یو شان دي
یعني په دواړو کي مناسبت شته نو اعتراض مدفوع شو

**ترکیب**: **ولو** عاطفه یا استنافیه **الغرض** موصوف **منه** جار مجرور ظرف مستقر متعلق په
الکائن پوري الکائن صیغه داسم فاعل ضمیر په کښی مستتر هغه ئي فاعل او سره دمتعلق نه دا
صفت جوړیږي دموصوف ، موصوف سره دصفت نه مبتدا ، **صیانة** مصدر مضاف **الذهن** مضاف الیه
**عن** حرف جر **الخطاء** مصدر موصوف **اللفظی** صفت اول **فی** حرف جر **کلام** مضاف **العرب** مضاف الیه.
مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دفی جاره ، جار سره دمجرور نه ظرف مستقر متعلق په کائنٌ
پوري . کائنٌ دا صفت ثانی شو . موصوف سره دصفتینو نه دا مجرور شو دعن جاره ، جار سره دمجرور
نه دا ظرف لغو تعلق نیسی په صیانت پوري . صیانت مصدر مضاف سره د الذهن مضاف الیه نه
او سره دمتعلق نه دا خبر کیږي دمبتدا ، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

## موضوع دعلم النحو او بحث دالکلمة

**موضوع: الکلمة والکلام:**

**ترجمه** موضوع د علم نحو کلمه او کلام

**تشریح** مصنف چې کله دتعریف او غرض نه فارغ شو نو دمقدمې داجزاء نه هغه دریم
جز ذکر کوي چې موضوع ده موضوع دعلم هغه شي دي چې داحوال ذاتیو نه پکې بحث کیږي
نو موضوع دعلم نحو کلمه او کلام ده

دلته **اعتراض** وارد کیږي چې دهر علم موضوع سره وي او دنحو موضوع یو ه کلمه ده
او یو کلام نو لازم شو تعدّد په الفاظو کي او داقانون دی چې تعدّد دموضوع مستلزم دي
تعدّد دعلوم و دپاره او دلته دوه موضوع گاني دي نو دا معلومیږي چې علم نحو دوه عُلومه دي

**جواب** تفصیلی ستاخبره صحیح ده چې تعدّد په موضوع دعلم نحو کي لازم شوي دي

خوتعدد په دوه قسمه دي (۱) تعدد باعتبار معنی او لفظ دواړه یعني تعدد سمعنوي اولفظي دي (۲) اوبل تعدد لفظي فقط نه معنوي مثالونه داولنی مثال لکه سالغ عاقل دا تعدد دالفاظو هم دي اومعنو هم دي نو دا معنوي لفظي شو مثال ددویم لکه قاعدٌ جالسٌ په دیکي تعدد دالفاظو شته لیکن معنی ددواړو یوه ده نو په الکلمة والکلام کي تعدد لفظي دي فقط دکلمی نه مراد لفظ موضوعه دي اوکلام هم داسی نو پس کلمه اوکلام اگرچي الفاظ دي لیکن دالفظ موضوعه دي اولفظ موضوعه مفرد دي

(۲) دویم جواب تعدد دموضوع مستلزم وي دتعدد دعلو مودباره خودهغه موضوع دپاره چي حیثیتونه یي ډیروي اوچي کله یي حیثیت بووي نوهغه تعدددموضوع دعلو مودپاره مستلزم نه وي

(۳) دریم جواب دلته واو په معنی مع دي یعني تقدیریي داسی الکلمة مع الکلام بل **اعتراض** کلمه یي په کلام ولي مقدمه کړو **جواب** داځکه چي کلمه دکلام جُزده لفظاً اومعنیٰ لفظاً داسی لکه زیدٌ قائمٌ په دی کښی لفظ دزید جُزدي دقائم نه چي کلام دي اومعناً داسی لکه زیدٌقائمٌ معنی په مجموعي طورداسي ده (زید) حیوان ناطقٌ مع هذ االتشخص وذات من له القیام اوزید معنی فقط حیوان ناطق هذ االتشخص نو داد مخکینی معنی جُزدي نو ددي نه ثابته شوه چي کلمه دکلام جُزده او جُزیه کل مقدم وي.

بل **جواب** په تعریف دکلام کي دی کلمه مقدمه او معتبره ده نو گویا کلمه موقوف علیه شوه دپاره دکلام او موقوف علیه مقدم وي په کلام موقوف باندي نو مصنف کلمه ځکه مقدمه کړه په موضوع او تفصیل د دواړو کوی نو اول بیان دالکلمةُ دي

**بیان دالکلمة:** په الکلمة کي دری اجزاء دي یو حرف تعریف یعني (ال) بل ماده (کلم) اودریم جزدتاء دي ددی نه پس به په الکلمة کي دری بحثه کیږي

## بحث دَالف لام

**اول بحث:** دَال دي الف لام په لغت کي مطلق کلمه ال سه ویلی شي او دمطلق کلمه ال مطلب دادي که هر ځای وي یعني همزه مفتوحه چي پهٔ ساکن داخله وی نو دي ته مطلق کلمه ال وایی

**په اصطلاح کي** کَلِمَةٌ تُلاَثِیَّةٌ کَلِمَةٌ لُغَوِیْ یعني داسی کلمه ده چي مزین کولی شي بلی کلمی لره یعني بلی کلمی لره ښائست ورکوي

**تقسیم دالف لام** الف لام په دوه قسمه ده یو الف لام اسمی ده بل ال حرفی دی اوأس دالکلمة دال شناخت کوچي دااسمي دي اوکه حرفی نو اول تفصیل دالف لام اسمي.

**الف لام اسمي** داهغه الف لام دي چي کوم داخلیږی په اسم فاعل او اسم مفعول باندي اتفاقاً او داخلیږی په صفت مشبه باندي اختلافاً نفصیل بي عنقریب دی لکه القائمُ، القاعدُ، الضاربُ وغیره داصیغی داسم فاعل دي او الف لام اسمي دي مثال داسم مفعول لکه المضروب، المقتول وغیره داصیغی اسم مفعول دی او داهم الف لام اسمي دي اودي ته اسمی ځکه وایي چي داالف لام موصولی دي اوموصول اسم دي نوځکه ورته موصولی وایی نه صیغی دصفت مشبه کښی چي کله الف لام داخل شي لکه الحَسَنْ، نوپه دي کي اختلاف دي بعضي وایي چي داالف لام اسمي دي دلیل دا بش کوي چي صفت مشبه داسم فاعل مشابه ده نو داځکه اسمی دي او بعضي وایي چي داحرفی دي دلیل یي دادي چي ددي په معنی کي فرق دي دصفت مشبه په معنی کي ثبوت اولزوم دي او داسم فاعل په معنی کي حُدوث دي نو گویادا حرفی دي ددي دپاره یو ضابطه داده چي کوم ال داخل شي په اسم فاعل اواسم مفعول نو دا به اسمی وي او چي داسم فاعل او اسم مفعول نه علاوه چي په هرڅه الف لام وي نو دا به حرفی وي لکه النحو، الکتاب، الکلمة وغیره وغیره

**الف لام حرفي:** الف لام حرفي په دوه قسمه دي یو زائد او بل غیرزائد

**الف لام زائد:** هغه الف لام دي چي په سقُوط ددي سره په معنی کي خلل نه راځي

**الف لام غیرزائد:** هغه الف لام دي چي په سقوط ددي سره په معنی کي خلل اونقصان واقع کیږي پس اول بحث دالف لام زائد دالف لام زائد مثال لکه کمافی قوله شاعر

وَلَقَدْ اَمُرُّ عَلَى اللَّئِيمِ يَسُبُّنِي فَمَضَيْتُ ثَمَّةَ قُلْتُ لَا يَعْنِيْنِي

**ترجمه دشعر** زه تیرد م په یو بدبخته سړی باندي او داسی بدبخته چي ماته بي کنځل کول پس بیا تیرشوم او داسی م اُووي چي دا مانه یادیبي پس به مذکورشعر کي لفظ داللئیم کي ال زائده دي پدي تقدیرباندي چي لئیم یي موصوف دي او یَسُبُّنِی داجمله فعلیه صفت دلئیم دي او جمله صفت دنکری دپاره واقع کیږي اودلته صفت دلئیمُ دپاره دي نو په لئیم کي چي کله ال زائدوي نو دابه نکره وي دویم احتمال دادي چي کله یَسُبُّنِی حال واقع شي اولئیم یي ذوالحال شي نو بیابه په لیئم کي ال غیرزائده وي او په دي حالت کي به معرفه وي

ددي نه بعد الف لام زائده په دوه قسمه دي (۱) الف لام زائده لازمی (۲) الف لام زائده غیرلازمی

(۱) **الف لام زائده لازمي** داهغه الف لام ده چي په ده باندي عالميت احاطه كړي وي معنی داده چي دغه الف لام سره دخپل مدخول نه مجموعه د چا دپاره عالميت گرزيدلی وي لکه الله.

(۲) **الف لام زائده غيرلازمي** داهغه الف لام ده چي په ده باندي عالميت احاطه نه وي كړي يعني سره دخپل مدخول نه دچا دپاره عالميت نه وي گرزيدلی لکه (الناس) بيا هر واحد دي دواړو په دوه دوه قسمه دي اول دالف لام زائده لازمي دوه اقسام دي يو الف لام زائده لازمي عوضي اوبل الف لام زائده لازمي غير عوضي دي

(۱) **الف لام زائده لازمي عوضي** مثال لکه لفظ دالله پدي كي الف لام زائد خكه دي كچري داتري لري كړي نو الهٌ به شي او الهٌ هم په معنی معبود برحق ته وبلی شي او لازمي خكه دي چي سره دخپل مدخول نه عالم دپاره ديو ذات گرزيدلی دي چي معبود برحق دي او عوضي خكه دي چي داالف لام په عوض دهمزي كي راغلي دي يعني الله په اصل كي الهٌ وو همزه حذف شوه او دهغي په عوض كي مو ال اولگولو نو الُ جور شو بيا دوه حرفه متجانسين جمع شول نو ادغام مو پكي اوكړو نو الله تري جوړ شو

(۲) **الـف لام زائـده لازمـي غيرعوضـي** لکـه الـنجمُ. الصَّعقُ. الثُّريـا. دادريـواړه دستورونو مونه دي پدي كي الف لام زائد خكه دي كچري داتري لری كړی نو به معنی كي څه خلل او نقصان نه راځي يعني النجم هم ستوري دي خو معرفه ده دلام تعريف په وجه او نجمٌ هم ستوري ده خو نكره ده دتنوين تنكير په وجه لازمي خكه دي چي داالف لام سره دخپل مدخول نه علم گرزيدلی يعني مجموعه علم دي او سنوری هم علم دي او غير عوضي خكه دي چي داالف لام دچا په عوض كي نه دي راغلي دغه شان الف زائد غير لازمي لره هم دوه اقسام دي يو الف لام زائده غيرلازمي عوضي اوبل الف لام زائده غيرلازمي غير عوضي

**الف لام زائده غيرلازمي عوضي** لکه الناس پديكي الف لام خكه دي چي په سقوط ددي سره به معنی كي خلل نه راځي يعني النّاس هم خلقو ته وايي او ناس هم خلقو ته وايي غيرلازمي خكه دي چي په مدخول دالف لام باندي عالميت احاطه نه ده كړی خكه چي لفظ دالنّاس تولی ته ويلی شي يعني دااسم جنس دي او تعميم دي پكي نه تخصيص عوضي خكه دي حي داپه عوض دهمزي كي راغلي دي لکه الناس په اصـل كي أُناسٌ وو همزه موحذف كړه پـه ځـای مـو ال راوړو نو الناس تري جوړ شو عوضي خكه دي چي په عوض يعني به ځاى دهمزي راغلي دي

(۴) **الف لام زائده غيرلازمي غيرعوضي** لکه مثال يو شعر دي

فَبَالغُلَامَانِ الثَّانِ فَرَّ لِيَاكُمْنَا الرَّنَ تَكْسِنَا الثَّغْرُ

لفظ دالغلامان كې الف لام زائد څکه دي چې په سقوط د دې سره په معنی کې خلل نه واقع کیږي څکه که غلامان او ویلی شي نو بیا هم تري مراد غلامان دي غیر لازمی څکه دي چې احاطه پرې عالمیت نه ده کړی بلکه هر غلام تري مراد دي یعني مخصوص نه دي بلکه عموم دي او غیر عوضی څکه دي

د الف لام زائد څلور اقسام بیان شو د دې نه بعد د الف لام غیر زائد تقسیم دي ده لره څلور اقسام دي (۱) الف لام جنسي (۲) الف لام استغراقي (۳) الف لام عهد خارجي (۴) الف لام عهد ذهني پس د دې څلورونه به یو یو مع تعریف او مع مثال ذکر کیږي . ذهن ورته متوجه کړه او پوهه شه

(۱) **الف لام جنسي** : داهغه الف لام دي چې په دې سره اشاره کولی شي ماهیت او حقیقت د یو شي نه قطع نظر د افرادو نه یعني چې په چا داخل شي نو دهغه ماهیت او حقیقت به تري مراد وي بغیر د افرادو نه لکه ،اَلرَّجُلُ خَیْرٌمِّنَ الْمَرْأَةِ، ترجمه جنس د رجل بنه دي د جنس دمرء نه او که څوك داسي او واني چې افراد د رجل بهتر دي د افراد دمرء نه نو دا غلط ده بلکه ماهیت د رجل او ماهیت دمرء یعني جنس رجل (المذكرمن بني آدم) او جنس المرأة (المؤنث من بني آدم) او که افراد تر ینه مراد شي نو بیا خو اَزْوَاجِ مطهّرات مثلاً حضرت عائشهؓ حضرت خدیجهؓ او حضرت فاطمهؓ وغیره بهتر دي د رجالو نه نو پس په رجل او مرء کې الف لام جنسي دي څکه چې مدخول د الف لام رجل او مرء دي نو په دي کې اشاره ماهیاتو او اجناسو ته او شوه نه افرادو ته

(۲) **الف لام استغراقي** داهغه الف لام دي چې په باندي اشاره کولی شي ماهیت د یو شي ته سره د لحاظ د افرادو نه یعني چې دا په چا داخل شي نو دهغه مدخول ماهیت به تري مراد وي خو سره د افرادو نه لکه آیات قرآنیه اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِیْ خُسْرٍ کې په ان الانسان کې الف لام استغراقي دي نو په دې سره ماهیت او جنس سره د افرادو نه ذکر شو یعني بیشکه هر انسان او علامت د الف لام استغراقي دا دي چې لفظ دکُلٌ هم دده په ځاي استعمالیږي یعني که داسي او ویلی شي چې کُل انسان لفی خسر نو دا هم صحیح دي او په الف لام استغراقي باندي دلیل لفظ د الا حرف استثناء دي

او حرف استثناء د ګنړو افرادو نه کیږي او داخلیږي په جمع او په کُل باندي لکه مذکور شو

(۳) **الف لام عهدخارجي** داهغه الف لام دي چې په هغه باندي اشاره کولی شي

ماهیت دیوشي ته په ضمن دیوفرد معین کي یعني هغه فرد معین چي معلوم اومعین وي په ذهن دمتکلم اومخاطب دواړوکي لکه ایات د قرآن فَعَصٰى فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ کي نافرماني اوکړه فرعون دهغه رسول معین نه چي موسیٰ دي چي داصرف متکلم ( الله ) ته اومخاطب (پیغمبر) ته معلوم دي یعني دَدواړوپه ذهن کي معین دي نوپه الرسول کي الف لام عهدخارجي دي اوداچي په چاداخل شي هغه ته معهودفی الخارج وایي چي دلته الرسول دي نوپه دي سره اشاره شوي ده ماهیت رسول ته اودغه ماهیت درسول په ضمن دیوفرد کي مراددي نودفعصٰى معنی به داسي شي نافرماني اوکړه فرعون دهغه معهوداومعین رسول چي موسیٰ دي

(۴) **الف لام عهدذهني** داهغه الف لام دي چي په دي باندي اشاره کولی شي ماهیت دیوشئ ته په ضمن دیوفرد کي چي هغه فردمعین اومعلوم وي په ذهن دمتکلم کي فقط نه مخاطب لکه آیت قرآني اِنِّيْ اَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ بیشکه زه یریږم چي اوبه خوري ده لره شرمخ په الذئبُ کي الف لام عهدذهني دي چي الذئبُ نه مرادیوحادثه ده یعني عام ذئب تري مرادنه ووچي دغه حادثه صرف دیعقوبؑ په ذهن کي معینه وه فقط نه د مخاطبینوکښي عام شرمخ تري مرادوي نومعاذالله بیاخوبه پیغمبر (یعقوبؑ) کاذب وي خکه چي شرمخان خوبي رونړه صاحبان ووچي یوسفؑ بي کوهي ته غورزولی وونودغه حادثه تري مراده ده چي صرف دمتکلم یعني دیعقوبؑ په ذهن کي معلومه وه نه ده مخاطبینورونړو

**نوټ**: الكلمةُ کي الف لام جنسي ده اوبعضي په عهدخارجي باندي قائل دي انشاء الله وضاحت به ئي راشي چي کوم جنسي ده اوکوم عهدخارجي دي

## (اجمالی شکل دالف لام)

**مطلق الف لام** دالف لام داقساموا جمالی شکل




**ټول نهه اقسام شول**

## (بحث دكَلِمْ)

دِ الف لام دبحث نه بعد دالکلمة دويم بحث شروع شوچې (ك لام اوميم) كَلِمْ دي په كلمْ کې دوه بحث دي يو په اعتبار داشتقاق اوعدم اشتقاق اوبل په اعتبار دجمعيت انفراديت اوجنسيت دي (انفراديت يعني باعتبار افراد اوجنسيت يعني بعتبار جنس)

(۱) **اول بحث په اعتبار داشتقاق اوعدم اشتقاق** دكَلِمْ په مشتق والی اوغیرمشتق والی کې دوه مذهبه دي يو دبعضو بل دجمهور مذهب دبعضو معضی وايي چې دا يو داسی لفظ دي چې نه

مشتق دي او نه دچا نه مشتق شوي دي بلکه دالفظ موضوعه برآسه دي (يعني وضع شوي صرف په خپل سر دي) او دليل يې دادي که لفظ دکلمْ مشتق شي نو مشتق خامخا مشتق منه غواړي او دي مشتق منه نشته . او که مشتق شي نو دمشتق او مشتق منه په مینځ کښې مناسبت پکار دي لفظاً او معناً لکه څنګه چې ضَرَبَ مشتق دي دضَرْبًا نو پدي کې لفظي مناسبت دادي چې ضرب دضَرَبَ صحيح حروف دي او دغه حروف په ضَرْبًا کې هم موجود دي او معنوي مناسبت ئې دادي چې لکه معنی په ضربا کې پرته ده هغه معنی په ضَرَبَ کې موجوده ده او ددې دمناسبت تعريف دادی إِنْ تجْمَعِين لفظين تناسُباً في لفظٍ ومعنى نو پس لفظ دکَلمْ مشتق نه دي او که مشتق منه ورله پیدا کړو نو بيابه مناسبت غواړي نو لفظي خو به وي خو معنوي مناسبت به ورله د کوم ځايې نه راوړو نو حاصل دا چې دوبي په نزد اسم جامد دي.

**مذهب دجمهورنحاة** جمهور وايي چې دا مشتق دی دلیل تفصیلي دادي چې لفظ دکَلمْ په کسرې دلام سره دا مشتق دي دکَلمْ نه په سکون دلام سره او لفظاً مناسبت خو بې دادي چې څنګه دضَرَبَ او ضرباً لفظي مناسبت دي هم دغه شان پدې کې هم دري حرف اصلي دي (ك ل م) او معنوي مناسبت يې دادي چې دکَلمْ لغوي معنی جرح ده يعني زخم کول او بعضې کلمات داسې دي چې هغه په خپل تاثیر کې تکليف اودرد سوي نفوسوته لکه څنګه چې متکلم يو خبره مخاطب ته بيان کوي او په مخاطب ډيره بده اولګي نو دهغه په زړه کې دردشي دخبرې دتاثير دوجهې نه نو ګوياد غه درد د زخم پشان محسوسيږي

لکه يو شاعر فرمايي

جَرَاحَاتُ السِّنَانِ لَهَا الْتِيَامٌ ولايَلْتَامُ مَاجَرَحَ الِّسَانِ

(علي کرم الله وجه) غالباً ترجمه دزخمونو دنيزې دبياره پيوند کيدل شته او نه جوړيږي هغه زخم چې په ژبه اوشي . يو شاعر په پښتو کې اړولی دي

**شعر**

پرهر د سنږی بنه دی چې به جوړ شی به مرهم | پرهر د ژبې بد دی چې وي عمر سره —

(۲) **دويم بحث په اعتبار دجمعيت او جنسيت سره** لفظ دکَلمْ بدون تايعني بغير دتايې وحدت نو بذ بکې دوه مذهبه دي يو دجمهور نحاة دي او بل بعضې دي جمهور ددې په جنسيت قائل دي او بعضې يې په جمعيّت قائل دي نو معترض **اعتراض** کوي چې صاحبه جمعيت او جنسيت څه ته وايي

**جنسیت** دي ته وايي چې اطلاق يې تريونه واخله په قليل اوكثيرتولوباندي كيږي

**جمعيت** دي ته وايي چې اطلاق يې تردريونه واخله اوډېروالي يې څه حدنشته يعني كم ازكم تردريونه په پورته پسې چې څومره تلبي شي نوزه پسې پس جمهوروايي چې لفظ دكَلِمٌ جنس دي

**دجمهوروو دليل** په قرآني آيت سره پيشكي (اِلَيۡهِ يَصۡعَدُ الۡكَلِمُ الطَّيِّبُ) په ديكي طيب صفت دي دكَلِمٌ اوكلم يې موصوف دي اوداقانون اوضابطه ده چې دموصوف اوصفت په مينځ كې مطابقت ضروري وي كه موصوف جمع وي نوصفت به يې هم جمع وي اوكه موصوف مذكروي نوصفت به يې هم مذكروي اوداغه شان په اتانيث كې اوبه معريف اوتنكيركې نوكه لفظ دكلم جمع وي نوبيابكرده چې دالطيب په ځاى جمع الطيبات ذكركري سي اويادي الطيبة ذكركري شي دالطيبة به معنى دجماعة دى: نوپس دآيت نه ثابته شوه چې صفت دكَلِمٌ صفت دي اودامفرددي نولفظ دكلِمٌ هم جنس دي ځكه چې دجنس اطلاق په يوفردباندي هم كيږي اوبه ډيروباندي هم كيږي

**دجمهوروودويم دليل** لفظ دكَلِمٌ واقع كيږي تميزدعدد نزي كول داوسط لپاره اوعدداوسط هغه ته ويلى شي چې اطلاق يې ديولسونه تريوكم سلوپوري كيږي اوتميزدعدداوسط مفردوي اومنصوب وي لكه آيت إِنِّي رَأَيۡتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوۡكَبًا په ديكه مااولبده يولس ستوري نوداغه شان لفظ دكلِمٌ تميزواقع كيږي دأَحَدَ عَشَرَ يعني دعدداوسط دپاره لكه قرأتُ أَحَدَ عَشَرَ كَلِماً پس احدعشرمميزاوكلماً يې تميزواقع شوي دي ځكه چې تميزدعدداوسط دي اوكه لفظ دكلِمٌ جمع وي نوبيابه تميزنه واقع كيدودعدداوسط دپاره نومعلومه شوه چې لفظ دكلم جنس دي اوجمع نه دی

**دليل دبعضو** دوي وايي چې داجمع ځكه ده چې عُرف اوپه استعمال كې لفظ دكلِمٌ كم ازكم په دريوالفاظوباندي كيږي نومعلوميږي دعرف اودا ستعمال نه چې داجمع ده يعني چې متكلم كلام پيشكوي نودهغه به خامخادري كلمي يازياتي وي نودابعضوپه نزدجمع ده

**دويم دليل دبعضو** دوي دجمهورودا ولنى دليل جواب داكوي چې په آيت كې الكلم الطيب نه مخكې لفظ دبَعۡضُ مقدردي يعني تقديردآيت داسې دي اليه يصعدبعض كلم الطيب يعني خى دالله طرف ته بعضى كلمى صالحى نوبديكي طيب صفت واقع شودبعضُ نه دكلم نه، اوبعضُ بې موصوف دي نودبعضُ په وجه دطيب جمع راوړلوته ضرورت نشته په خپل ځاى جمع پاتي شو

**جوابات دجمهورونُحاتو** دبعضوداولنى دليل جواب دادي لفظ دكلم وضع كري دي

واضعينو د يو كلمې دپاره البته په استعمال او په عُرف كې مستعمل په دريو يا زياتو كيږي ليكن اعتبار وضعې لره دې نه استعمال لره ځكه چې وضع اصل دې او اعتبار داصل اولى وي يعني داوضع دې جنسى معنى لره چې

اطلاق يې په فردهم كيږي او په قليل او كثير هم نو معلومه شوه چې لفظ دكلمٌ جنس دې

**دَ دويم دليل جواب** جمهور خپل دليل بياثابته وي چې لفظ دبعضٌ په آيت كې مقدر نه دې ځكه چې تاويل او تقدير په آيتونو كې خلاف اولى دي پدې شرط سره چې كله دآيت ظاهرى معنى صحيح وي نو دلته دعبارت په پخپله ظاهرى معنى باندې حمل كيدې شي ځكه چې دجنس اطلاق په يو فرد هم كيږي او په قليل او كثير هم كيږي نو بعضٌ بې فائدې دې او كه سرې په دقيق نظر سره او گوري نو بعضُ سره گويا په آيت كښې خلل واقع كيږي ځكه چې طيّبى كلمې تولې دالله طرف ته خيزي په خلاف دبعضو نه نو پس كلمٌ به بې موصوف او طيب به يې صفت واقع شي نو معلومه شوه او ثابته شوه او سالمه شوه چې لفظ كلمٌ جمع نه دې بلكه جنس دې

## بحث د(ة) دالكلمة نه

**دريم بحث په الكلمة كې دتاءدې** تا په دېرو معنو سره مستعمل ده (۱) كله دتانيث دپاره راځي لكه امراةٌ طلحةٌ (۲) كله دوحدت دپاره راځي لكه نعجةٌ كې ت – دوحدت ده (۳) او كله دمُبالغې دپاره راځي لكه علامةٌ (۴) كله دوحدانيت معنى اسميت ته دنقل كولو دپاره راځي لكه كافيةٌ او شافيةٌ داصيغې دصفت (اسم فاعل) وې چې كله پرې ة داخله شوه نو دوصفيت معنى په اسميت كې بدله شوه يعني أُس دا اسم دې (۵) او كله دتذكير دپاره راځي خو په هغه وخت كې چې كله دعدداقل تميز مذكر واقع شي لكه ثلاثةٌ رجالٍ خمسةٌ رجلٍ وغيره

**عدداقل** چې اطلاق يې ددرې نه ترنهو پورې كيږي

**عدداكثر** دسلونه يې په زياتو اطلاق كيږي

**فائده** دلته ة دتذكير حرف په عدداقل كې مُستعمليږي

پس په الكلمة كې تو وحدت دپاره ده او علامت دتانيث لفظى هم دې او الف لام پكې جنسى دې نو دلته

**سوال** وارديږي چې الف لام جنسى دكلمې په كثرت او عموم باندې دلالت كوي او ة دكلمې په وحدت باندې دلالت كوي نو چې په الكلمةُ كې عموم او خصوص واقع شي نو په دې

دواړو کې مُنافات اوتضاد دي

**الجواب** جواب دادي چې وحدت په درې قسمه دي (۱) وحدت شخصي (۲) وحدت نوعي (۳) وحدت جنسي پس پدې دريواړو کې وحدت شخصي دعموم اوكثرت منافي دي فقط اودلته وحدت نوعي یاجنسي مراد دي اودنوعي او دجنسي دالف لام سره هيڅ قسمه منافات اوتضاد نشته اوچې په الكلمة كې الف لام جنسي شي نوماهيت دكلمي ته به اشاره كيږي اوكه الف لام دالكلمة عهدخارجي شي نوبيابه دالكلمة معنى داشي چې هغه كلمه چې هغه جاري وي په ژبودنحويانوباندي نو هغه لفظ چې معنى يې مفرده اووضع شوي وي دپاره دمعنى مفردي

**نوټ** په الكلمة كې الف لام جنسي ځكه دي چې تعريف دماهيت دشي كيږي نه دافرادواوكه غير جنسي شي نوبيابه دالف لام دمدخول نه مرادافرادشي كلاً يابعضاًنوتعريف به دافرادوته اوشي اودانا جائزه دي ځكه چې دتعريف نه مقصود دمُعرفي بالفتحی استحضاروي اودي افراد غيرمتناهي وي بخلاف دماهيت چې متناهي وي اوځوک وايي چې داعهد خارجي دي نوداسوه منطقي مسئله ده ۲ **قاعده** ده دويم وايي چې تعريف دافرادوجائزدي ځكه چې ددي افرادغيرمتناهي نه دي بلكه به دريوافسامو منحصره دي چې اسم دي فعل دي اوحرف دی اونيزدالكلمة نه مرادهم هغه كلمه ده چې دنحا توپه ژبوجاري وي

**فائده** الف لام عهدخارجي كې څه اشكال نشته.

**تركيب**: ولو حرف عاطفه، موضوع مضاف ، ضمير مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتدا شوه الكلمة معطوف عليه، ولو حرف عاطفه الكلام معطوف، معطوف سره دمعطوف عليه نه دا خبر شو دمبتدا، مبتدا سره دخبرنه دا جمله اسميه خبريه

# بحث دلفظ او وضع

**اَلْكَلِمَةُ لَفْظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى مُفْرَدٍ:**

**ترجمه**: كلمه هغه لفظ دي چه معنى مفرد لپاره وضع كړى شوى وى

**تشريح**: دلفظ دتفصيل اجمالي ترتيب اول به دلفظ لغوي معنى بيانيږي اوبيابه اصطلاحي اوددې څه اعتراضات اودهغې جوابات لفظ په لغت كې رمي ته ويلي شي اورمي په معنى دويشتلو اوغورزولو سره راځي برابره خبره ده كه دغه لفظ غورزول دفَم نه وي اوكه غير فَمْ نه وي درمي منَ الفَم مثال لكه عرب وايي اَكَلْتُ التمرة وَلَفَظْتُ النّواةَ دلته لفظت به معنى دَرَمَيْتُ سره

دي يعني ما او خوره كجهوره او اوم غورزولو او كي (زري نو د خلی نه غورزیږي نو دادرمي من الفم مثال شو او د غير فم مثال لكه لفظت الرحي الدقيق . او غورزول مخچني اوره نو بس لفظ يلفظ لفظاً به معنی درمی سره دي

**اصطلاحي تعريف** مَا يَتَلَفَّظُ بِهِ الاِنسَان: به کوم شی باندي چه انسان تلفظ كوي يعني ملفوظ الانسان ته ويلی شي چي کوم شي دانسان د ژبي نه خارجيږي او په به کي بامعنی د سبيت سره ده او با په معنی دعلی سره ده نو تقدير د عبارت به داسي شي مايتلفظ بِاللسان، عليه الانسان او لفظ دما پكي به الاشتراك دي نو ټول تعريف به داسي شي مايتلفظ باللسان عليه الانسان حقيقتً كان او حكمًا مفرداً كان او مركبًا موضوعاً كان او مهملاً اولاً كن او ثانياً نو بس برابره خبره ده چي پدي سره د ټولو اعتراضاتو جوابات او ګرزيدل فرض څوك اعتراض كوي

**اول اعتراض** چي ستاسو د تعريف نه ضمائر مستتره خارج شول لكه اضرب چي أنتَ ضميريكي مستتردي نو په اضرب څو تلفظ او شوځو په انت تلفظ او نه شو او ضمائرهم الفاظ دي بكار ده چي تلفظ پرا وشي نو ددي **جواب** دادي چي اضرب تلفظ حقيقتاً راغلی دي او ددي سره سره انت هم د خلی نه خارج شو خو حُكمًا يعني انت خو به خله كي نه پاتي كيږي

**دويم اعتراض** كه دا اعتراض څوك كوي چي ستا د تعريف اول نه دا معلوميږي چي صرف به لفظ باندي انسان تلفظ كوي نو ددي څو مفرد لفظ مراددي او بول مركبات ستاسو نه خارج شول

**جواب** دادي كه مفردوي او كه مركب وي يعني كه انسان يو لفظ خارجوي او كه بوره كلام خارجوي

**دريم اعتراض** كه څوك دا اعتراض كوي چي ستاد لفظ نه مراد بامعنی لفظ مراد دي چي دمعنی دپاره وضع شوي وي نو بي معنی الفاظ ستاسو نه ټول خارج شول او دا هم د ژبي نه اداكيږي لكه لفظ د زيد مونزه بالعكس كرو (ديز) نو دا څو معنى نه لري

**جواب** برابره خبره ده كه معنی نه لري څو لفظ دي يعني د انسان د ژبي نه اداكيږي

**څلورم اعتراض** مايتلفظ به الانسان غير صحيح دى څكه چي دا تعريف الفاظ مختص كوي به انسانانو پوري او كلمات الهيه (قرآن) او كلمات ملائكه او كلمات جنيه تري خارج شول يعني صرف ملفوظ د انسان دي او قرآن و احاديث وغيره خارج شول او كلمات ملائكه ذادي چي د حسينونو مدحي به باره كي جبرائيل يو شعر فرمائلى دي

**شعر**

إنَّ فِي الجَنَّةِ نَهْرًا مِنْ لَبَنٍ ۔۔۔ لِعَلِيٍّ وَحُسَيْنٍ وَحَسَنْ

او کلمات جنیه دادي چې یو سړي د پیریانو سره بد کړی وونو هغه سړي ( چې نوم یې حرب وو ) پیریانو مړ کړ او به صحرا کې یې دفن که د ښره موده بعد یې و ارثان ګرزیدل خو بیایې پیدا نه کړو آخر یو پیری ورته غیبي شعر اووي

**شعر**

قَبْرُ حَرْبٍ بِمَكَانٍ قَفْرٍ وَلَيْسَ قُرْبَ قَبْرِ حَرْبٍ قَبْرٌ

دا د پیریانو خبري دي .ترجمه قبر د حرب په خوشي صحرا کې دي (خالي مکان) اونشته قریب د قبر د حرب سره بل قبر .نو پس الفاظ جنیه او ملائکه خرج شول د ملفوظ دانسان نه

**الجواب** زمونږ مراد دادي چې تلفظ د انسان اولاُوی او که ثانیاً یعني په دویم ځل پرې انسان تلفظ او کړو لیکن بیا هم ملفوظ د انسان او ګرزیدل دا تول جوابات به تعریف کې مذکور دي پدې وجه مونږه تعریف د لفظ د معترضانو دوجهی نه په نه د برد عبارت سره اُکد او طویل که

**وُضِعَ** : وضع صیغه د فعل مضی مجهول ده ( مصدر یې وضعأدي ) په معنی د نهادن یعني کیښودل یا جَعْلُ الشئ بِحَيْث آخر ګرزول با کیښودل د یو شي په بل شي باندي

**اصطلاحي تعریف** تَعْيِينُ الشئ بِالشئ بِحَيْثُ متى أُطلِقَ أُحِسّ الشئ الاول فُهِمَ مِنْهُ الشئ الثاني :

**توجمه** خاص کول د یو شي به بل شي سره پدې حیثت سره چې اطلاق یا احساس د یو شي وي چې دهغی نه د بل شي علم فهم ته راشي بس دا تعریف په کوم الفاظو صادق راځي هغوته لفظ موضوعه ویلی شي او چې په کوم الفاظ صادق نه راځي هغوته لفظ مهمل وایي نو په لفظ وضع سره احتراز راغی د مهملاتو نه او د الفاظ بالطبع نه ( اُحْ . اُحْ ) په ټخی دلالت کوي نه په معنی او دغه شان لفظ د زید په لفظ او وضع دواړو صادق راځي او چې کله او بدل شي نو پس بیایې څه معنی نوي نو دا صرف په لفظ صادق راځي یعني وضع شوي نه دي مهمل دي او دغه شان ترې دوال اربعه ترې هم خارج شول ځکه چې دا صرف په وضع صادق راځي لیکن الفاظ نه دي خو دا صرف د الفاظ نه خارج دي بلکه صادق په وضع دي نو دي وجهی نه په لفظ کې عموم دی او به وضع کې تخصیص دی .

**سوال** په تعریف کې دوه شیان ذکر شول یو شي اول او بل شي ثاني او س د لته دوه احتماله دي

**اول احتمال** که د شئ اول معنی لفظ شي او ثاني نه مراد معنی شي نو معنی به یې داشي چې خاص کیدل د لفظ دي په معنی پدې شان سره چې لفظ ذکر شي نو اطلاق د لفظ او شي نو دهغی نه به خاص لفظ د معنی خاصي ذهن ته راځي

**دویم احتمال** چې دشي اول نه مراد معنی شي او دشي ثاني نه مراد لفظ شي نو معنی به يې داسې شي چې خاص کیدل دمعنی دي په لفظ بوري نو په دواړو احتمالینو کې تخصیص دي

**په اول احتمال سوال** هر کله چه تعریف دلفظ راشي خاص کیدل دلفظ دي په معنی پورې نو دا صحیح نه دي ځکه چې بعضې داسې الفاظ وي معنی يې مختلفې وي لکه عَیْنٌ په مختلفو معنو کې مستعمل دي مثلاً ـ سترګې ته ویلې شي عینك نه ویلې شي او چینو ته ویلې شي او دنور (سورج ـ شمس) سترګې ته ویلې شي او سپینو زرو ته او سرو زرو ته ویل شي او دزنګون غونډو کي ته ویلې شي وغیره وغیره وغیره نو داسې قسم الفاظ مشترکه تري خارج شول ځکه چې خاص کیدل دلفظ دي معنی لره او په بعضې الفاظو کې عموم دي

**په دویم احتمال سوال** هر کله چه تعریف بالعکس واخلو نو بیا به خاص والي دمعنی راشي لفظ لره او دا هم صحیح نه دي ځکه چې بعضې الفاظ مترادف وي یعني الفاظ ډیر وي او معنی يې یوه وي لکه قعود او جلوس به یوه معنی مستعمل دي نو دا قسمه الفاظ تري هم خارج شول او لفظ مشترکه مذکور تري هم خارج شول یا خود او وایه به دا مهمل دي نو بیا صحیح دی

**الجواب** په تعریف کې تخصیص په معنی دجَعل سره دي یعني جَعل الشئ بالشئ . مُعترضه په سوال دي راله غوګونه او خوړل او جواب يې دجوب نه څیره نه دي

**بله مسئله داده** چې لفظ دمعنی أُطلق راځي دشرطیت دباره یعني کله چې شي اول ذکر شي نو دویم شي به تري خامخا فهم ته راځي او کثیر من الالفاظ داسې دي چې اطلاق يې کیږي لیکن معنی تري فهم ته نه راځي مثلاً حروف تهجي یا حروف جاره لکه منْ واخله چې اطلاق يې کیږي لیکن مکمل معنی تري ذهن ته نه راځي او دغه شان بعضې الفاظ دقرآن پاك هم داسې دي او احادیث هم دي نو **جواب** دادي چې داطلاق نه مراد اطلاق کامل یا صحیح مراد دي لکه منْ معنی مکمله ترهغې نه ورکوي چې ترڅو پورې انضمام دبلې کلمې نه وي راغلی او قرآني الفاظ او داحادیثو بعض الفاظ چې دي نو دلته داطلاق نه مراد اطلاق مع العلم دي او اطلاق کامل دي یعني ددې معنی به هله کامله او صحیح وي چې بوسړي دلفظ اول په معنی پوهیږي نو دثاني شي فهم نه راتلل خودبخود راځي لکه مثال چې درب معنی چاله نه ورځي نو دعالمین معنی به ورله هم نه ورځي او چې کله درب معنی پرورش کننده راشي نو دثاني شي چې العٰلمین دي معنی به هم په ذهن کې راشي

**او اُصل** : دالفظ يې په تعریف کې ځکه راوړو چې معرف شامل شي دوال اربعه ته چه

خطوط نسوق اشارات اوعقود دی

**خطوط**: کرخې راخکودل دحساب کتاب دپاره

**نسوق**: نخې ودرول دحساب کتاب اومعلوماتو دپاره

**اشارات**: په لاس سترګه وغیره سره چاته اشاره کول ځان ته دمتوجه کولو دپاره

**عقود**: د ګوتو حساب کتاب لکه تجارتیان چې په خپل مابین کې دمال اوپیسو حساب کتاب په ګوتو سره کوي . پس داخوالفاظ نه دي خوچې کله یې احساس اوشي نوشي ثاني لره تري فهم حاصل شي

**لِمَعْنًی**: معنی په لغت کې مقصود اومراد ته ویلی شي په اصطلاح کې مَایُقْصَدُ بِالشَّیِٔ چې هغه مقصود او ګرزي دیوشي نه یعني چې داقصد کړی شي دبل شي نه لکه لفظ دزید دي اوددي معنی حیوان ناطق مع التشخص ده نوګویادامعنی قصد کړی شوه دزیدنه . معنی صیغه داسم مفعول ده داپه اصل کې مَعْنُوْيٌ وو اوپه یابدل شونومَعْنُيٌ تري جوړشو اودیاته ماقبل ضمه وه هغه موپه کسری بدله کړه نومَعْنِيٌ شواودحرف یا ضمه مودثقل دوجهې نه حذف کړه نومَعْنِيْ شواوبیاد التقادساکیننو دوجهې نه مودماقبل کسره په فتحې باندي بدله کړه برایې تخفیف نومَعْنًاتري جوړشو . مَعْنُوْيٌ ـ مَعْنُيٌ ـ مَعْنِيٌ ـ مَعْنِيْ ـ معنًا برایې تخفیف

**مُفْرَدٍ**: بدیکې دری احتماله دي (۱) مفردٌ (مرفوع) ، (۲) مفردٍ (مجرور) ، (۳) مفرداً (منصوب)

**اول احتمال** چې لفظ مفرد کله مرفوع شي نوپه دي تقدیرباندي به لفظ موصوف شي داخبردمبتدا واقع سي حي الکلمةُ دي نومبتداسره دخبرنه جمله اسمیه سوه لکه مذکورترکیب چې دی

**دویم احتمال** په تقدیردجرباندي چې مفرد شي نودابه صفت واقع شي دمعنًاځکه چې دموصوف او صفت اعراب یوشان وي نومعنی به یې داشي چې کلمه یو لفظ ده چې وضع شوي ده دپاره دمعنی داسی معنی چې هغه مفرده وي

**دریم احتمال** دامنصوب دي بنابرحالیت پدیکې دوه احتماله دي یاخوحال واقع کیږي معنیٰ اویادهغه ضمیرچې په وضع کې مستتردي که حال دمعنی واقع شي نومعنی به داسی شي چې کلمه یو لفظ دي چې وضع کړی شوی دي دپاره دمعنی په حال دکون دمعنی کښ چې دغه معنی مفرده وي اوکه حال دضمیرمُستترنه واقع شي نوترجمه عبارت به داسی شي کلمه یولفظ ده چې وضع کړي شوي ده دپاره دمعنی په حال دکون دلفظ کې چې دغه لفظ مفردوي . دلفظ مفردتفصیل ـ لفظ مفردهغه لفظ ده چې جزدده دلالت نه

کوي په جزدمعنی باندي نودي لفظ ته مفردوايي اودي معنی ته معنی مفرده وايي

هرکله چي جزدلفظ دلالت نه کوي په جزدمعنی باندي نوپه دی کښی خلورصورته دي

(۱) عبد په بنده دلالت کوي اوالله په خپل ذات دلالت کوي خوداغیرمقصودي دي څکه چي عبدالله دَچاپاره علمیت یعني اسم گرزیدلی دی، یاخودلفظ جزنه وي اودمعنی جزهم نه وي لکه مثال همزه استفهامیه یعني دده جزهم نشته اودمعنی جزیي هم نشته

(۲) یاخوجزدلفظ وي خودمعنی جزنه وي لکه «الله» داجزدلفظ دي خوجزدمعنی یي نشته څکه چي دابسیط دي یعني صرف په ذات دالله باندي دلالت کوي

(۳) دریم صورت چي دلفظ جزهم وي اودمعنی جزهم وي خوبیاهم دلالت نه کوی لکه لفظ دزید دده دواړه جُزونه شته یعني جزدزید دلالت نه کوی په جزدمعنی چي معنی یي حیوان ناطق مع التشخص ده اودااخان دزید معنی نه ده

(۴) څلورم صورت جزدده دواړووي لیکن معنی یي غیرمقصودي وي لکه لفظ دعبدالله په حالت دعلمت کي یوعبددي چي جزدلفظ دي اوالله جزدلفظ دي نوجزدلفظ دلالت کوي خوغیرمقصودي وي یعني داصحیح نه دي څکه چي الله به خپل ذات دلالت کوی اوعبدالله یوخاص شخص دي پس داڅلورواړه احتمالات چي کله منتفي شي نولفظ مرکب تري جوړیږي نودلفظ مرکب معنی دا شوه چي جزدلفظ دلالت کوی په جزدمعنی باندي

**ترکیب: الکلمة** مبتدا **لفظ**موصوف **وضع** فعل ضمیر پکښی نائب فاعل **لام** جاره **معنیً** مجرور جار سره دمجرور دا ظرف لغوه تعلق نیسی وضع پوري وضع فعل سره دنائب فاعل نه دا جمله فعلیه خبریه صفت شوه **مفرد** دري احتماله لري اول احتمال چي کله مفرد ووائی نو بیا وخت کښی به معنیٰ موصوف او مفرد به صفت شی، دویم احتمال چي کله منصوب ووائی نو معنیٰ به ذوالحال شی او مفرداً به حال شی. چي کله مفردٌ ووائی نو دا به نائب فاعل واقع شی دوضع نه، به تولو صورتونو کښی به دا تولہ صفت جوړیږي دلفظ موصوف ، موصوف سره دصفت نه دا به خبر شی دمبتدا لپاره، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

## تقسیم دکلمې

وَهِيَ مُنْحَصِرَةٌ فِيْ ثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ اِسْمٌ وَفِعْلٌ وَحَرْفٌ لِاَنَّهَا اِمَّا اَنْ لَاتَدُلَّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا وَهُوَالْحَرْفُ اَوْتَدُلَّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا وَيَقْتَرِنُ مَعْنَاهَا بِاَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ وَهُوَالْفِعْلُ اَوْتَدُلَّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا وَلَمْ يَقْتَرِنْ مَعْنَاهَا بِهٖ وَهُوَالْاِسْمُ:

**ترجمه** او دا کلمه منحصره ده په دریو اقسامو کښې اسم فعل او حرف او وجه حصه ئې داده که کلمه په خپله معنی باندې په اعتبار د ذات سره دلالت نه کوي نو دا به حرف وي، او که دلالت کوي په خپله معنی یوې زمانې ته په اعتبار د ذات سره او معنی د دې پیوسته وي یو د دریو زمانو سره نو دا به فعل وي، او که په خپله معنی باندې دلالت کوي په اعتبار د ذات سره او یو د دریو زمانو نه باندې محتاج نه وي نو دا به اسم وي

**تشریح** مصنف چې کله د تعریف د کلمې نه فارغ شو نو اوس اقسام د کلمې ذکرکوي او بیاهر واحد له تعریفونه ذکرکوي

**سوال** وارد یږي چې هي ضمیر د مؤنث دي که دا د الکلمة طرف ته راجع شي نو دا صحیح نه ده ځکه چې الکلمة اسم دي الف لام پرې داخل دي او معنی بې داسې جوړیږي چې اسم کلمه په درې قسمه ده په دې سره لازمیږي تقسیم د اسم د خپل نفس او د غیر د پاره نو دا غیر صحیح دي او که هي د کلمې مفهوم ته راجع شي نو معنی خو به یې صحیح شي چې مفهوم د کلمې په درې قسمه دي لیکن مفهوم د کلمې مذکر ده او هي ضمیر مؤنث ده نو راجع او مرجع مطابقت نه دی صحیح

**جواب** ضمیر د هي راجع دي الکلمة ته په اعتبار د مفهوم سره یعني کلمه په اعتبار د مفهوم منحصره د انحصار بند ش، ده په دریو اقسامو کې دواړه اعتراضات دفعه شول.

**سوال** اسم فعل او حرف مساوي دي په اعتبار د اقسام د کلمې سره نو اسم به فعل او فعل به حرف ولې مقدم کړی شو

**جواب** د اتقدیم او تاخیر ترجیح بلامرجح نه دی بلکه د دې د پاره علت او سبب موجود دي هغه دا چې اسم مستقل دي او فعل او حرف مستقل نه دي او اسم مستقل ځکه دی چې دا اسم سره بغیر د انضمام د فعل او د حرف نه مرکب تام: جمله، جوړیږي لکه زید قائم او د فعل سره بغیر د انضمام د اسم نه جمله نه جوړیږي لکه ضرب تو له ورځ وایه هیڅ مطلب ترې نه حاصلیږي تر څو چې ورسره اسم نه وي پیوست شوي لکه ضرب زید نو ځکه اسم بوجه استقلال په فعل مقدم

کړي شو او فعل به حرف باندې ځکه مقدم دې چې فعل د اسم سره ملاؤشي نوجمله جوړېږي او حرف فقط د اسم سره یا فقط د فعل سره یه انضمام جمله سره نه سي جوړولی نو ځکه فعل په حرف مقدم دې خلاصه داده چې ترجیح د علت د مرجع سره ده هغه استقلال دې یعني اسم مستقل فی المعنی دې او فعل او حرف مستقل فی المعنی نه دي .

**لِأَنَّهَا**: کې أنّ حرف مشبه بالفعل دې او ها ضمیر اسم دې د انّ او لاتدل خبر دی د انّ اعتراض دادې چې خبر واجب الحمل دی به مبتدا هر کله چې لاتدل محمول شو به ها ضمیر نو دا صحیح نه دی ځکه چې ها ضمیر راجع دالکلمة طرف ولاتدل وصف دې، مصدر وصف وي، نو ګویا چې وصف محمول شو به ذات باندې دا نه جائز دي

**الجواب** عبارت مقدر دې داسې چې لانها (من شانها) ان لاتدل او تدل. تحقیق: کلمې شان دا دې چې دلالت نکوي بابه کوي به معنی مستقله باندې نو ګویا چې لاتدل خبر دی د مبتدا مقدر من شانها چې کوم وصف دی او دوصف به وصف باندې حمل کول جائز دې

**فِي نَفْسِهَا**: جار مجرور ظرف شو که ظرف لغو وي نو متعلق به د تدل سره وي او که ظرف مستقر شي نو متعلق به یې د کائن باحاصل مقدره سره وي **سوال**: دا دې که ظرف لغو شي نو د تدل به صله کې فی راغلی دې او پداسې صله کې فی راځي بلکې د دفی به ځای باراځي **جواب** دلته فی به معنی دبا سره دې یعني بنفسه .

**سوال** په تقسیم کې حرف مؤخر دې او به دلیل کې حرف مقدم دې څه وجه ده

**جواب** یوه وجه خو داده چې حرف به لغت کې طرف او کنډې ته وایي او مصنف لغوي معنی ملحوظه او ساتلې او حرف یې په تقسیم کې چې مؤخر بو طرف به ذکر کړو او په دویم ځای کې یې مخکې طرف ته ذکر کړو . ځکه چې طرف اول هم وي او ور سته هم وي بخلاف دمینځ نه دویمه وجه داده چې د حرف به تعریف کې یو جزدې : ان لاتدل علی معنی . او د اسم د فعل تعریف نه دوه دوه اجزاوي نو ګویا حرف بمنزله مفرد شو او فعل او اسم مرکب او مفرد مقدم وي به مرکب نو ځکه حرف به دلیل کې مقدم شو .

**سوال** به تقسیم کې مصنف اسم به فعل مقدم کړې دی نو به دلیل کې یې فعل ولې مقدم کړو

**جواب** دا ځکه چې د فعل معنی وجودی ده او د اسم معنی عدمی ده او وجود مقدم دې په عدم باندې

**معنی وجودي** فعل مستقل فی المعنی وي او وجود یکې د زمانو وي یعني اقتران بالزمان دي

**معنی عندهي** او اسم مستقل في المعنی وي ليکن وجود يکي دزمنونه وي يعني اقتران پکې دوخت نه وي

**ترکيب: ولو** عاطفه **هي** مبتدا **منحصرة** صيغه داسم فاعل ضمير پکښې مستتر چې هي دا فاعل **في** جاره **ثلثة** عدد مبهم مميز مضاف **اقسام** تميز مضاف اليه. عدد مبهم مميز مضاف سره دتميز مضاف اليه نه دا مجرور شو دفي جاره . جار سره دمجرور نه داظرف لغوه تعلق نيسي په منحصرة پوري. منحصرة صيغه داسم فاعل او سره فاعل نه او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه شو دمبتدا ، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه

**اسم وفعل وحرف** دا خبر دي لپاره دمبتدا محذوفه چې احدها ده . احد مضاف ها ضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتدا شوه. مبتداء سره دخبرنه دا جمله اسميه خبريه معطوفه عليها شو **ولو** عاطفه **فعل** دا خبر ده لپاره دمبتداء محذوفه چې ثانيها ده ثاني مضاف او ها، ضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتداء شوه. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه معطوف اول **ولو** عاطفه **حرف** خبر دمبتدا محذوفه لپاره چې ثالثها ده ثالث مضاف ها، ضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتدا شوه. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه معطوف ثاني، معطوف سره دمعطوفينو نه دا جمله اسميه خبريه معطوفة عليه. **لام** جاره **ان** حرف از حروف مشبه بالفعل **ها**، ضمير اسم **اما** ترديديه **ان** مصدريه **لا** نافيه **تدل** فعل ضمير پکښې مستتر دي چې هي ده فاعل **على** جاره **معنیً** موصوف **في** جاره **نفس** مجرور مضاف **ها**، ضمير مضاف اليه نه دا مجرور ده دفي جاره. جار سره دمجرور نه متعلق شو کائنةً پوري. کائنةً صيغه داسم فاعل ضمير پکښې مستتر چې هي ده فاعل او سره دمتعلق نه دا صفت کيږي دمعنیً موصوف. موصوف سرهٔ دصفت نه دا مجرور کيږي دعلى جاره . جر سره دمجرور نه داظرف لغوه تعلق نيسي لا تدل پوري. لا تدل فعل ضمير پکښې مستتر چې هي ده دا فاعل او سره دمتعلق نه دا به تاويل دمصدر سره خبر دي لپاره د أنّ ،**ان** سره دا سم دخبرنه دا مجرور کيږي دلام جاره. جار سره دمجرور نه دامتعلق شو منحصرةٌ پوري **ولو** عاطفه **هو** مبتدا **العرف** خبر. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه

**او** حرف عاطف **تدل** فعل ضمير پکښې فاعل **على** حرف جر **معنیً** موصوف **في** حرف جر **نفس** مجرور مضاف **ها**، ضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور کيږي دفي جاره. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو کائنٌ پوري. کائنٌ صيغه داسم فاعل سره دفاعل او سره دمتعلق نه دا صفت کيږي دموصوف . موصوف سره دصفت نه دا مجرور کيږي . دعلى جاره، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو تدل پوري تدل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه معطوفة عليه. **ولو** حرف

عاطف، **يقترن فعل معناها** مضاف مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا فاعل شو ديقترن باء جاره **احد** مجرور مضاف **الازمنة** موصوف **الثلاثة** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مضاف اليه شو د احد. احد مضاف سره د مضاف اليه نه دا مجرور كيږي دبا، جاره. جار سره دمجرو نه داظرف لغو تعلق بيسي يقترن پوري. يقترن فعل فاعل اوسره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه معطوف. معطوف سره دمعطوف عليه نه دا جمله فعليه خبريه عطف شو په تدل پوري **او** حرف عاطف **تدل** فعل فاعل **على** حرف جر **معنى** موصوف **فى** جار **نفسها** مضاف مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور كيږي دفى جاره. جار سره دمجرور نه په اعتبار دمتعلق سره دا صفت كيږي دموصوف، موصوف سره دصفت نه دا مجرور كيږي دعلى جاره. جار سره دمجرو نه دا تعلق نيسي تدل پوري. تدل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه معطوفة عليه

**ولو** حرف عاطف **لم** حرف جازم **يقترن** **فعل معناها** مضاف مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دافاعل شو ديقترن، **به** جار مجرور، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغو ه تعلق نيسي يقترن پوري، يقترن فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه معطوف. معطوف سره دمعطوف عليه نه جمله فعليه خبريه عطف دي په تدل باندي **ولو عاطفه هو مبتدا الاسم** خبر مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه

# تعريف د اسم

فَحَدُّ الاِسْمِ كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِیْ نَفْسِهَا غَیْرُمُقْتَرِنٍ بِأَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ أَعْنِیْ اَلْمَاضِیْ وَالْحَالَ وَالْاِسْتِقْبَالَ كَرَجُلٍ وَعِلْمٍ:

**ترجمه** د اسم تعريف اسم هغه كلمه ده چه په د اسي معنى باندي دلالت كوي چه كومه معنى: ده به ذات كښي موجوده وي او د دريو زمانو نه يوې زماني سره پيوست هم نه وي. د دريو زمنو نه زما مراد ماضي. حال. او استقبال دى لكه رجُل وعِلم

**تشريح سوال** ـ مصنف دا سوال واريد يږي چي دهر جز تعريف معلوم شونو دوباره ولي ذكر كړي شو

**جواب** اول اجمالأاو بس تفصيلاً ښانيږي اوتفصيل بعدالاجمال في الذهن وي يعني تكرر. نقررفي الذهن

**فحدالاسم**: دلته فافصيحيه ده او داتقاضاد شرط كوي او شرط بي مقدر (مقدم) ، دي هغه دادي تقدير د عبارت دادى اِذَاعَرَفْتَ فِیْ دَلِیْلِ الْحَصْرِ فَحَدُّالاِسْمِ :يااذابَيَّنَّادليل الحصر فحدالاسم الخ

حد حد په لغت كي منعې ته وايي او په اصطلاح د منطقيانو كي دا نوم د هغه تعريف دي چي مركب وي د ذاتياتو نه او په اصطلاح د اهل عربيت كي حد هغه تعريف دي چي جامع وي د خپلو افرادو د پاره او مانع وي د دخول د غيرنه نو پس دا هغه تعريف دي چي جامع مانع وي د منطقيانو په لحاظ هم صحيح دي چي د جنس او دفصل نه مركب دي نو كلمه (جنس) ، تدل على معنى فى نفسها (فصل اول) ، غيرمقترن باحد فصل ثاني او اهل عربيت (علمايي نحو) په لحاظ سره هم صحيح دي چي جامع دي افرادو د اسم ته او مانع دي د اغيارونه چي فعل دي او حرف نو په دي سره احترازراغي د فعل او حرف نه في نفسها في نفسها كي فى ظرفيت د پاره وضع ده او دلته غيرصحيح ده ځكه چي ظرف په دوه قسمه ده يو ظرف زمان ده او بل ظرف مكان او نفسها نه زمان دي او نه مكان دي

**سوال** في په معنى د باسره دي نو بيا اعتراض دي چي بابه يي ذكر كړي وه

**جواب** زمان او مكان ته ظرف حقيقي وايي او دا دي نه علاوه ظرف مجازي وي لكه ظرف تشبيهي او تشبيهي نو گويا دا في مشابه د ظرف دي لكه الماء في الكوز نو ځنگه چي ظرف محيط وي يعني احاطه كونكي دي نو گويا دامعنى دلته د: په نفس دكلمي كي نو حاصل دادى چي بعينه ظرف نه دي بلكه مشابه د ظرف دي

**غيرمقترن**: په غيرمقترن باندي **سوال** دي چي تعريف د اسم جامع بافراده او مانع باغيارونه

دي څکه چې اسم هغه کلمه ده چې مقترن نه وي په یو دازمنه ثلاثه پورې نو دي نه اسمایې افعال خارج شو څکه چې دا مقترن دي په زمانو پورې نو تعریف جامع بافراده نه دي

**سوال** تعریف د اسم مانع باغیاره نه دي څکه په افعال مقاربه او افعال مدح وذم نه داشامل شو حالا نکه چې دا مقترن نه دي په زماني پورې او دي نه منسلخه عن الزمان وایې نو تعریف مانع ددخول دغیرافراده نه دي.

**جواب** دد واړو سوالاتو جواب دادي چې مقترن به نه وي اصل وضع لره نه استعمال. اوغیراقتران اصل وضع لره معتبردي

**اصل وضع او استعمال** د کومې معنی دپاره چې اصلي معنی وضع شوې وي او ددي نه بعد چې دغه معنی په بله معنی کې مستعمل شي نو دیته استعمال وایې پس چې کوم کلمه په اصل وضع کې مقترن نه وي په زمانو ثلاثو پورې نو هغې ته به اسم وایې نو اعتبار اصل وضع لره دي او اسمایې افعال مقترن نه دي په اصل وضع کې او افعال مقاربه مدح ذم نه مقترن دي په اصل وضع کې خو بیاهم خارج نه دي د اسم نه بلکه داغیرمقترن په استعمال کې دي **بأحدالازمنة** پدي سره احترازراغی دفعل مضارع نه څکه چې هغې کې دوه زماني دي. یعني اقتران بې په دوه زمانو کې دي.

**جواب** داقید احترازی نه دی بلکه اتفاقي دي او دا اصل لمرتبه دتصریح دپاره دي یعني دیوې زماني سره به بې اقتران هم نوي

**نوټ** غیرمقترن په دریواړو اعرابا تو راتلی شي

(۱) جر: جربان مذکوردي (غیرمقترن) (۲) **غیرمقترن** که مرفوع اوبلی شي نو دامرفوع بنا، برخبریت شي او خبر به شي دپاره دمبتد امقدري چې هُوَ دي یعني تدل علی معنیً في نفسها (هُوَ) غیرمقترن (۳) که منصوب او وبلی شي نو بیابه بنابرحالیت حال واقع شي دمعنی نو تقدیر به داشي تدل (حال کونیة) غیرمقترن

**کرجل وعلم** دوه مثالونه ذکرشو یو د اسم ذات لپاره رجل المذکرمن بني آدم اوبل د اسم صفت دپاره

**ترکیب:** (ك) تفصیلیه حد مضاف الاسم مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مبتدا شوه کلمة موصوف تدل فعل فاعل علی حرف جر معنیً موصوف في حرف جر نفس مجرور مضاف ها ضمیر مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه دا مجرور شو دفي جاره جارسره دمجرور نه داظرف

مستقر شو متعلق نسبي په کائنة پوري. کائنة صيغه داسم فاعل ضمير پټ‌ښي مستتر چي هي ده هغه فاعل. اسم فعل سره د فاعل نه او سره د متعلق نه دا شبه جمله صفت اول شو لپاره د معني موصوف، غير مضاف مقترن صيغه داسم فاعل بـاء حرف جار احد مضاف الازمنة موصوف الثلاثة صفت. موصوف سره د صفت نه دا مضاف اليه شو لپاره دا حد مضاف. مضاف سره د مضاف ليه نه دا مجرور شو د بـاء جاره. جر سره د مجرور نه دا ظرف لغوه تعلق نيسي مقترن پوري مقترن صيغه داسم فاعل ضمير دهو پټ‌ښي فاعل او سره د متعلق نه دا شبه جمله مضاف اليه لپاره د غير مضاف، مضاف سره د مضاف اليه نه دا مبين شو اعني فعل فاعل الماضي معطوف عليه والحال معطوف اول والاستقبال معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفينو نه دا مفعول به شو د اعني لپاره، اعني فعل فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعليه بيان شو. مبين سره د بيان نه دا مضاف اليه شو، دا غير مضاف لپاره، مضاف سره د مضاف اليه نه دا صفت ثاني شو د معني موصوف لپاره. موصوف سره د صفتينو نه دا مجرور شو لپاره دعلي جاره. جر سره د مجرور نه دا متعلق شو تدل پوري. تدل فعل فاعل او سره د متعلق نه دا صفت شو لپاره د كلمة موصوف، موصوف سره د صفت نه دا خبر شو لپاره د مبتدا، مبتدا سره د خبر جمله اسميه خبريه كلا بمعني مثل، مثل مضاف، رجل معطوف عليه واو عاطفه علم معطوف، معطوف سره د معطوف عليه نه دا خبر شو د مبتدا محذوفه چي مثاله ده. مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسميه خبريه

## علامات د اسم

وَعَلَامَتُهٗ صِحَّةُ الْاِخْبَارِ عَنْهُ نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ وَالْاِضَافَةُ نَحْوُ غُلَامُ زَيْدٍ وَدُخُوْلُ اللَّامِ التَّعْرِيْفِ كَالرَّجُلِ وَالْجَرِّ وَالتَّنْوِيْنِ نَحْوُ بِزَيْدٍ وَالتَّثْنِيَةُ وَالْجَمْعُ وَالنَّعْتُ وَالتَّصْغِيْرُ وَالنِّدَاءُ فَاِنَّ كُلَّ هٰذِهٖ خَوَاصُ الْاِسْمِ:

**ترجمه** علامي د اسم دادي چه له دي اسم نه به خبر ورکول صحيح وي لکه زيد قائم او اضافت به وي لکه غُلَامُ زَيْدٍ او لام تعريف داخليدل لکه الرَّجُلُ. جر او تنوين داخليدل لکه بِزَيْدٍ او تثنيه او جمع به وي صفت. تصغير او نداء به وي پس دا ټول خواص د اسم دي

**تشريح** کله چي مصنف فارغ شو تعريف داسم نه نو اُس علامات دوضاحت دپاره ذکرکوي دپاره ددې چي اسم يوازې دتعريف نه نه پېژندلې کېږي يعني په تعريف او علامت کي فرق دي

**فرق** : (فرق په مابين دَ دواړو کې په تعريف سره دېوشي معرفت ذهني حاصليږي او په علامانو سره دېوشي معرفت خارجي حاصليږي . علامات دَاسم مصنف لس ذکر کړي دي (۱) مسند اليه واقع کيدل (۲) اضافت (۳) الف لام (۴) جر (۵) تنوين (۶) تثنيه مثنی (۷) جمع (۸) نعت يعني صفت (۹) تصغير (۱۰) حرف ندا

**صحة الاخبار عنه**: اولنی تفصيلی بحث قسم په صحته: خبرعنه کي مصنف بيانوي اخبار په معنی دخبر سره دي او په عنه کي ضمير اسم ته راجع دی معنی به داشي چې صحيح دي خبرورکول داسم ته او خبردمبتدا ورکوي اومبتدا مسند اله وي . نو مخبر عنه واقع کيدل داسم دي يعني مسند اليه واقع کيدل داسم دي په کلام کي نو مطلب داشو چه اسم به مسند اليه وي لکه زيد قائم کښي زيد مخبرعنه (مسند اليه) دي او قائم خبر (مسند) دي

**دمسند اليه کيدو وجه** وجه يي داده چې فعل مستقل فی المعنی دي اوفعل وضعيدو دي دپاره وضع کړی دي چې دی به مسند وي اوحرف غير مستقل فی المعنی دي . نو بس اسم مسند اليه وي

(۲) **والاضافة**: دويمه علامه داسم اضافت ده او اضافت دمضاف او مضاف اليه درمياني نسبت ته وايي . او س **سوال** وارديږي چې خاصه داسم حرف اضافت دی او مضاف او مضاف اليه تري خارج شول **جواب** دادي اسم به مضاف هم وي او مضاف اليه به هم وي خکه چې مصنف اضافت ذکر کړی او داضافت نه مضاف او مضاف اليه دواړه مستفاد شو .

**وجه يې څه ده** (ای وجه الاول) اضافت به دوه قسمه ده لفظي او معنوي . اضافت معنوي دوه فائدي لري يو تخصيص اوبل تعريف . او اضافت لفظي فقط مفيد دتخصيص دپاره وي اودا دپاره د فوائد فقط په اسماء کي موجود ديږي نه په افعالو او حروفو کي داخکه خاصه ده داسم ده .

**وجه** په واسطي دحروف جارو سره خکه چې اضافت دد واړو ترمينځه وي لکه غلام زيد دغلام اضافت نسبت زيد ته دجر په واسطه سره شوي ده

(۳) **لام التعريف** دريمه علامه داسم داده چې په کومه کلمه الف لام داخل شي نو هغه به اسم وي داخاصه داسم خکه ده چې الف لام دتعين دذات دپاره راځي او ذات اسم دی یالام تعريفي راخي دپاره دتعين دمعنی مستقلي او مطلب يي داوي چې دغه کلمه معنه او واضحه شي او دفعل او حرف معنی مستقلي نه ده نو لام التعريف خکه خاصه داسم ده .

**سوال** په اسماء خو الف لام دواړه داخليږي او مصنف صرف لام التعريف ذکر کړی دي څه وجه ده

**جواب**: دا اختلافي مسئله ده په دیکي دری مذاهب دي (۱) **سیبویه**: سیبویه داوایي چې حرف تعریفي فقط لام دي **دلیل**. دا لام ساکن دي او ابتدا بالسکون محال وي ناجائزوي نو همزه ورسره وصلي ده او وصلي خکه ده چې په وصل کې ساقطیږی لکه (کالرجل) یافاالکتاب. (۲) امام مُبرّد ده دامام سیبویه مخالفت کړی دي وايي چې د تعریف دپاره فقط همزه ده او لام زائده دي خکه چې همزه په دوه قسمه ده یوه همزه استفهامیه ده اوبله همزه تعریفیه ده نو په لام سره تمیز راغلی د همزه استفهامیې نه (۳) **امام خلیل** وايي چې د تعریف دپاره الف لام مجموعه ده یعني دواړه دي او وجه یې داده چې د دوي دیوبل سره شدت الاتصال ده که همزه حذف شي نو لام قائم مقام د همزی گرزی

**عقلي دلیل** تعریف په مثل د استفهام دي او د استفهام دپاره هَل استعمالیږي او په هَل کې دوه حرفه دي نو پکار ده چې د تعریف دپاره دوه حرفه وي صحتانه مذهب د سیبویه دي نو مصنف خکه لام التعریف ذکر کړو.

**سوال** میم هم د تعریف دپاره دي خکه په حدیث شریف کې راخي چې یو صحابي پوښتنه اوکړه د پیغمبرﷺ نه أمِنَ امبِرّامصِیَامِفِی امسَّفَرْ نو حضورﷺ ورته اوفرمائیل چې لَیْسَ مِن امبِرّامصِیَامِفِی امسَّفَرْ دي احادیثو نه معلومه شوه چې میم هم تعریفي ده

**جواب** په عربو کې ژبه یوه وه خو دقبائلو جدا جدا اصطلاحات وو نو دغه حدیث چې کوم صحابي نقل کړی دي دهغو په اصطلاح میم تعریفي دي او میم مستقله خاصه د اسم نه ده بلکه دادلام التعریف په بدل کې راغلی ده نو مصنف خکه لام التعریف ذکر کړو چې شامل او متناول شي میم ته هم. خلاصه لام التعریف مُعتبردي

(۴) **والجر**: واو عطف دي او د تنوین اقسام معطوف دي په لام التعریف د عبارت تقدیر به داسې شي چې دُخُول الجر **سوال** دادي چې دخول د کلمې په اول کې وي نو تقدیر د دخول غیرصحیح دي **جواب** دخول او لُحوق دواړه بوشان الفاظ دي چې کله په ابتدا کې زیاتوالی واقع شي نو تعبیریې په لُحوق سره کیږي

**علامه داسم ولي ده** علامه د اسم خکه ده چې داجرأثر د حرف دی او حروف جاره خواص د اسم دي فقط او که چرته په فعل باندي حرف جر راشي نو بیا نري تاویل اسم ته کولی سي چې مخالفت رانشي د اسم نه.

# د تنوين اقسام

(۵) **والتنوين:** واوعطف دې اوتنوين معطوف اوحکم سې دخول او اعتراض مذکور. معنى بې داشي چې تنوين لحوق دي داسم په آخرپوري تنوين په لغت کي منون مزين کول په اصطلاح کي تنوين نون ساکن دي چې ملحق دي دکلمی په آخرکي او تابع وي دکلمی دآخرى حرکت. (لا لتاکيدالکلمة)

**تنوين خاصه داسم ولی ده** تنوين په پنځه قسمه دي . (۱) **تنوين تمکّن** داهغه تنوين دي چې په آخرد منصوب کښې راځي يعني په آخر اسم متمکن کي راځي. (۲) **تنوين تنکير** دادنکرې په آخرکي راځي يعني په اسمايي مُنکروداخليږي فقط لکه رجل وغيره (۳) **تنوين عوضي** داپه عوض دمضاف اليه کي راځي لکه يومَ إذ په اصل کي کان کذا اوبه حذف سره تري جوړشو (۴) **تنوين مقابله** داهغه تنوين دي چې په مقابله دجمع مذکرسالم دصيغو دآخرى نون په جمع مونث سالم کي په آخرکي ملحق کيږي لکه دمسلمون نه دمسلمات سوين دمقابلى دي (۵) **تنوين ترنم** داهغه تنوين دي چې ملحق کيږي په آخرد ابياتوکي اوداد امتداد الصّوت دپاره راځي دخوش آوازي دپاره راځي لکه يوشعر.

أَقِلِّي اللَّوْمَ عَاذِلَ وَالْعِتَابَنْ ...... وَقُولِي إِنْ أَصَبْتُ لَقَدْ أَصَابَنْ

دلته په شعرکي أصابَنْ په اصل کي صيغه دفعل ماضی ده ليکن نون ساکن بکي دترنم دپاره راغلی دي پس اولنی څلور اقسام مختص دي په اسم پوري اوپنځم قسم اسم ، فعل ، حرف ټولولره شامل دي خوبياهم اکثريه اسم پوري ملحق کيږي اواکثرلره حکم دکُل دي نوتنوين خاصه داسم تنکير ده دتنوين اقسام يوشاعرپه خيالاتوکي بيان کړي دي.

**شعر**

تنوين پنج قسم شد ای يارمن بگير ، اول تمکن است وعوض ، ثالث اش تنکير
د يگر مقا بله وترنم برا د ر م ، اين پنج ياد کن که شدي شاه بی نظير

(۶) **والتثنية:** دتثنيي نه ترواند اپوری واوعطف دي په علامة باندي اووالتنوين عطف دي په دخول باندي شيږمه علامه داسم مثنی کيدل دي

(۷) **والجمع:** اووومه علامه داسم جمع ده ددي دواړوعلاموجه داده چې دوي دلالت په تعدد باندي کوي اوتعدد اوتکثردپاره فقط اسم دي

**اعتراض** په افعالوکي هم تثنيه اوجمع وي لکه يضربان يضربون وغيره

**جواب** افعالوکي تثنيه والي اوجمع والي په اعتبار د اسم سره دي ځکه چي په افعالوکي ضمائر مستتره وي نو په وجه د دغو ضمائرو په افعالوکي تثنيه جمع راځي او ضمائر راجع وي اسماؤته نو دا خاصي د اسم دي

(۸) **والنعت:** دا د اسم اتمه علامه ده النعت هغه لفظ ته وايي چي دلالت کوي په داسي معني باندي چي زائده وي په اصلي معني باندي يا په نورو الفاظوکي النعت صفت ته وايي لکه زَيْدٌ عَالِمٌ په يکي عالم النعت يعني صفت دي او دلالت کوي په معنی زائده باندي ولي چي د زيد خپله معنی اصلي حيوان ناطق دي او عالم يو زائده معنی ده يعني صفت دي او فعل او حرف زائده معنی نه قبلوي داځکه خاصه د اسم ده

(۹) **والتصغير:** نهمه علامه مصغر کيدل د اسم دي .فعل او حرف تصغير د حقارت نه شي جوړيدي فقط اسم د حقارت د پاره دي يعني اسم مصغر کيدی شي او فعل او حرف مصغر کيدي نه شي

(۱۰) **والنداء:** لسمه علامه د اسم ندا يعني منادي کيدل دي .نداء فقط منادي ته کيږي او منادي اسماء کيدی شي او افعال او حروف نشي کيدی که يو فعل منادي کړی شي نو دا به د کماله خالي نه وي هغه داچي په دغه فعل کي به ضمير منادي کړی شوي وي لکه مثال يا اِضْرِبْ اي أُوهه، يا حرف ندا او په اِضرب کي ضمير دانْتَ مستتر دي او دا صيغه د امر ده نو پس دغه اَنْتَ يعني مخاطب منادي شو

**فَانَ كُلَّ هٰذِهٖ خَوَاصُّ الاسم:** پس هرکله چي دا لس واړه علامي او خواص د اسم دي نو دعلامي معنی خو داده چي مَالَايَنْعَكِسُ عَلَى الشئ چي نه جدا کيږي ديوشي او خواص جمع د خاصي ده او خاصه ديته وايي چي مَايُوْجَدُ فِيْهِ وَلَايُوْجَدُ فِي غَيْرِهٖ چي موجوده وي فقط په اسم کي او نه موجوديږي په غير دده کي نو

**سوال** دادي چي څه اسماء داسي دي چي علامات د اسم او خواص د اسم يکي نه وي لکه ضمائر په ضمائرو الف لام او تنوين نه داخليږي او دغه شان اسماء اشارات او اسماء موصولات چي تنوين پري نه داخليږي

**جواب** خاصه په دوه قسمه ده يوه خاصه شامله ده او بله خاصه غير شامله ده د شاملي مثال لکه کتابت بالقوة يعني داتولو افرادوته شامله ده يعني په هرانسان کي دا قوت موجود دي او د غير شاملي مثال لکه کتابت بالفعل دا خاصه د انسان ده خو غير شامله ده

یعني چې څوك قابل دلیلکلووي نوهغولره شامله ده نودا سم بعض خواص شامله دي لکه مسنداليه اومضاف اوباقي خواص غیرشامله دي . په خو ص الاسم سره مصنف بوه دفعه د عتراض کړی ده هغه داچې مصنف اول علامات ذکرکړه نوبیابه دااعتراض کیدوچي په نوروکتابونوکې مثلاً کافیه شرح جامي وغیره کې یې خواص داسم ذکرکړی دي نوځکه یې دلته ذکرنه کړه

**ترکیب:** واو عاطفه علامته مضاف مضاف اليه نو دا شو مبتدا صحة مضاف الاخبار مصدر عنه جار مجرور دا متعلق شو مصدر سوري. مصدر سره دمتعلق نه دا ممثل شو نحو مضاف زيد مبتدا قائمٌ خبر. مبتدا سره دخبرنه دا جمله اسمیه خبریه مضاف اليه سو لپاره دنحو مضاف . مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثال لپاره دممثل . ممثل سره دمثال نه دا معطوف عليه شو . واو عاطفه الاضافة ممثل نحومضاف غلام مضاف اليه مضاف. زيد ني مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دابيا مضاف اليه شو لپاره دغلام مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دابيا مضاف اليه شو لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثال سو لپاره دممثل . ممثل سره دمثال نه دامعطوف اول شو . واو عاطفه دخول مضاف لام مضاف اليه مضاف التعريف مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دابيا مضاف اليه شو دا لام مضاف لپاره . مضاف سره دمضاف لمه نه دابيا مضاف اليه شو د دخول مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا ممثل شو

كلا په معنى دمثل سره دا مضاف شو . الرجل مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثل شو دممثل . ممثل سره دمثال نه دامعطوف ثاني شو . واو عاطفه الجر معطوف عليه واو حرف عاطف التنوين معطوف . معطوف سره دمعطوف عليه نه د' ممثل شو نحو مضاف باء جاره زيد مجرور جار سره دمجرور نه دا مضاف اليه شو دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثال شو دممثل. ممثل سره دمثال نه دا معطوف ثالث شو واو عاطفه التثنيه معطوف رابع واو عاطفه الجمع معطوف خامس واو عاطفه النعت معطوف سادس واو عاطفه التصغير معطوف سابع واو عاطفه النداء معطوف ثامن . معطوف سره دمعطوفاتو نه دا مضاف اليه شو دصحة مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو دمبتدا مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه. فاء په جواب دشرط محذوفه كښي واقع ده تقدير دعبارت دا رنګه ده اذا علمت ان المعدودات علامات الاسم فقد علمت ان جميع هذه المفردات خواص الاسم دا تولـه جمله شرط واقع كيږي ان حرف از حروف مشبه بالفعل كل مضاف هذه اسم اشاره المعدودات مشار اليه . اسم اشاره سره دمشار اليه نه دا اسم د ان شو خواص الاسم

مضاف مضاف اليه دا خبر شو د ان ، ان سره داسم او سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه مفعول به دد دعلمت لپاره علمت فعل فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعليه جزا شوه لپاره د شرط . شرط سره دجزا نه دا جمله فعليه شرطيه شوه

وَمَعْنَى الْاَخْبَارِ عَنْهُ اَنْ يَّكُوْنَ مَحْكُوْمًا عَلَيْهِ لِكَوْنِهٖ فَاعِلًا اَوْمَفْعُوْلًا اَوْمُبْتَدَاً.

**ترجمه**. د اخبار عنه معنى داده چه دا به محكوماً عليه وى خكه چه دا به يا فاعل يا مفعول يا مبتدا وى

**تشريح** د اسم په اقسامو كي اولني قسم واضحه نه وونو مصنف خكه د الاخبار عنه تشريح دلته ذكر كوي . دالاخبار عنه معنى داده چي اسم به محكوم عليه واقع كيږي يعني په ده به حكم كيږي او خبر او طلب به ورته كيږي به نورو الفاظو كي به مسند اليه واقع كيږي يعني اسناد به ورته كيږي او محكوم عليه  مسند اليه . او مخبر عنه الفاظ مترادفه دي . دمخبر عنه وجه داده چي اسم به يا فاعل وي او يا به مفعول مالم يسم فاعله وي لكه ضُرِبَ زَيْدٌ او يا به مبتدا وي لكه زيدٌ قائمٌ

**تركيب: واو عاطفه معنى** مضاف **الاخبار** مصدر **عنه** جار مجرور ، جار سره د مجرور نه داظرف لغو ه متعلق شو الاخبار مصدر پوري ، مصدر سره د متعلق نه دا مضاف اليه شو د معنى مضاف ، مضاف سره د مضاف اليه نه دا مبتدا شوه ، **ان** ناصبه مصدريه **يكون** فعل ناقص ضمير پكښې مستتر چه هو ده هغه ني اسم **محكوما** صيغه د اسم مفعول ضمير پكښې مستتر چي هو ده هغه نى نائب فاعل **عليه** جار مجرور داظرف لغو ه متعلق شو محكوماً پوري ، **لام** جاره **كون** مصدري ه ضمير اسم د كون **فاعلا** معطوف عليه **او** حرف عاطف **مفعولاً** معطوف اول **او** حرف عاطف **مبتدأ** معطوف ثاني ، معطوف سره د معطوفينو نه دا خبر شو د كون لپاره ، كون سره د اسم او سره د خبر نه دا مجرور شو دلام جاره ، جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو ه تعلق نيسى محكوماً پوري ، محكوماً صيغه د اسم مفعول ضمير پكښې مستتر ده چي هو ده هغه نائب فاعل او سره د دواړو متعلقينو نه دا خبر د يكون شو ، يكون سره د اسم او سره د خبر نه دا جمله اسميه خبريه به تاويل د مصدر سره دا خبر شو لپاره د مبتدا ، مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه

## د اسم وجه تسميه

(وَيُسَمّٰى اِسْمًا لِسُمُوِّهٖ عَلٰى قَسِيْمَيْهِ)

وَيُسَمّٰى اِسْمًا لِسُمُوِّهٖ عَلٰى قَسِيْمَيْهِ لَا لِكَوْنِهٖ وَسْمًا عَلَى الْمَعْنٰى:

**ترجمه** او د دې نوم اسم کيخودلی شو دد وجه نه چه دا بلند د په خپل قسيمينو باندي نه ددې وجه نه چه د اعلامه ده په خپله مسمّی باندې

**تشريح** داسم لفظي تشريح پديکي دوه مذهبه دي يو بصريين او بل کوفين،(۱)، **بصريين** وايي چي دا په اصل کي سمُوٌ وه، ناقص واوي، اعلال پکي داسې دي چي په واو باندې ضمه ثقيله وه نو حذف شوه نو ميم هم ساکن دې او واو هم ساکن شو پس التقاء الساکنين متجانسين محال دي نو واو موحذف کړو سمٌ پاتې شو او د سين ضمه مو ماقبل ته ورکړه نو سين ساکن شو او د کلمې په اول کې سکون محال دي نو مخکي مو نري همزه راوړه نو اسمٌ شو سُمو په لغت کي اوچت والی او بلندي ته ويلي شي يعني دا مشابه د سماء اسمان سره دې نو څنګه چي اسمان اوچت او عالي دي نو دغه شان اسم هم بلند دي په خپلو اخونو باندې او اخونه دا سه فعل او حرف دي

(۲) **کوفين** دوی وايي چي دا سه اصل کي وسمٌ وو دا فانون دي چي واو مکسور مقدم به په همزي بدليږي، نو واو مو په همزه بدل که اسم نري جوړ شو. او وسمٌ په لغت کي علامې او نښانۍ ته ويلې شي او اسم هم يوه علامه ده په خپل مسمّی باندې. خلاصه مصنف ترجيح د بصريانو مذهب ته ورکړي ده او په کوفيين رد کړي دي.

**ترکيب** **واو عاطفه يسمی** فعل ضمير پکښي مستتر هي هو دا هغه ئي نائب فاعل **اسماً** مفعول به **لام** جاره **سمو** مصدر مضاف ه ضمير مضاف اليه. مضاف سره د مضاف اليه نه دا مجرور کيږي دعلي جاره. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو ه تعلق نيسي سمو مصدر مضاف پوري، مصدر مضاف سره د مضاف اليه نه او سره د متعلق نه دا معطوف عليه شو. **لام** عاطفه **لام** جاره **کون** مصدر ضمير پکښي اسم چي هي ده **وسماً** مصدر **علی** جار **المعنی** مجرور جار سره د مجرور نه دا متعلق شو وسماً مصدر پوري وسماً مصدر سره متعلق نه دا خبر د کون شو. کون سره د اسم او خبر نه دا مجرور شو دلام جاره. جار سره د مجرور نه دا معطوف شو د معطوف عليه لپاره. معطوف سره د معطوف عليه نه د مجرور کيږي دلام جاره جار سره د مجرور نه دا متعلق شو يسمی پوري يسمی فعل فاعل مفعول به او سره د متعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه

## دفعل تعريف

وَحَدُّ الْفِعْلِ كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا دَلَالَةً مُقْتَرِنَةً بِزَمَانٍ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى كَضَرَبَ يَضْرِبُ اِضْرِبْ.

**ترجمه** : فعل تعریف فعل هغه کلمه ده چه في نفسه پـه داسې معنی باندې دلالت کوي چه دریو زمانو نه یوه زمانه په کښې موجود وي لکه ضرب یضرب اضرب

**تشریح**: هرکله چې مصنف داسم داصطلاحي تعریف او علاماتو او د وجه یې تسمیې نه فارغ شونو شروع یې د فعل په تفصیل او علاماتو او کړه سره د متنالونو. مصنّف په تعریف دفعل کې لفظ : حد ذکر که او حد تعریف جامع ته وایې تفصیلی معنی : عبارت تعریف جامع جامع دفعل هسی فعل چې دا نو کلمه ده 'وهسی کلمه چې دلالت کوي په معنی داسې معنی چې کومه معنی دده به نفس کې ده او دلالت کوي د' سې دلالت چې دا ، فعل مقترن وي په یوه دّ زمانه پوری . اُس داسې په عکس **اعتراض**: لـته واریدیږی هغه داحه تعریف : فعل جامع بافراده او مانع بغیرهای مانع باغیاره دا د خاسقانو اصطلاح ده: افراد نه دي خکه چې اسما ي افعال یکې داخل شو او اقتران یې په زمانو پوری دي 'ودغه شان افعال مُنسلخه عن الزمان نری خارج شو خکه چې اقتران یې په زمانو پوری نه دی.

**الجواب** اعتبار اصل وضع ته ده دي اسمایي افعال داخل نه دي پـه تعریف دفعل بلکه داداخل دي په تعریف داسم کې خکه چې داکله واضعینو وضع کوله نو یه هغه وخت کې یې اقتران په زمانو پوری نه وو بلکه په استعمال کې یې اقتران په زمانو پوري راغی نو اعتبار اصل وضع لره دي نو داخارج دي د افعالونه . او دغه شان افعال مدح وذم ، منسلخ عن الزمان ، دد ي عکس دي .

**بل اعتراض** دادي چې په تعریف دفعل کې لفظ دصُبُوحٌ او غُبُوقٌ داخل شو خکه چې پـه صبوح کـې زمانـه دسـحر ثابته ده او دغـه شـان پـه عبـوق کـې زمانـه دماښـام پرتـه ده نو دا خو افعال نه دي خو تعریف دفعل پری ثابت شو.

**الجواب** داخو مونږ منو چې زماني یکې ثابتې دي خو صبوح مطلق زمانه سحرته ویلی شي ، دسحر چایي ، او غبوق هم مطلق زمانه مازیګرته ویلی شي : دماښام چایي ، کچرته دوي په یو وخت دلالت کولی نو بیا به افعال وو پس دااسماء دي او علامه او خاصه یکې تنوین ده او بله وجه داده چې صبوح لغوي معنی شراب ده او دغبوق لغوي معنی هم شراب دي نو په اصل وضع کې یکې اقتران نه و خو په استعمال : سکلو د شراب و سحر او ماښام ، نه وجه د استعمال کې یې تاویل په چایي سره شوي دی.

**ترکیب** **واو** عاطفه **حد** مضاف **الفعل** مضاف الیه، مضاف سره مضاف الیه نه دا مبتدا شوه **کلمة** موصوف **تدل** فعل ضمیر دهي پکښي مستتر دي هغه ئې فاعل **علی** جار **معنی** موصوف **فی**

جار **فيها** مضف مضاف الیه نو دا بیا مجرور شو دجر . جار سره دمجرور نه داظرف مستقر شو کائنٌ پوري. کائنٌ صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې مستتر ده هغه فاعل . فعل سره دفاعل نه او سره دمتعلق نه دا صفت شو دموصوف. موصوف سره دصفت نه دا مجرور کیږي دعلی جاره جار سره دمجرور نه داظرف لغو تعلق نیسي تدل پوري. **دلالة** موصوف **مقترنة** صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې فاعل **با**ء جره **زمان** مضاف **ذلك** اسم اشاره **المعنى** مشار الیه اسم اشاره سره د مشار الیه نه دا مضاف الیه شو د زمان مضاف لپاره . مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور کیږي دباء جاره. جار سره دمجرور نه داظرف لغو تعلق نیسي مقترنه پوري. مقترنة صیغه داسم فاعل ضمیر پکښې فاعل اوسره دمتعلق نه دا صفت دموصوف . موصوف سره دصفت نه د: مفعول مطلق کیږي دتدل لپاره تدل فعل فاعل اوسره دمفعول مطلق نه دا صفت کیږي د کلمه موصوف . موصوف سره دصفت نه دا خبر کیږي دمبتدا . مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه.

**كف** یه معنی د مثل. مثل مضاف. ضرب فعل ضمیر پکښې مستتر چې هو ده هغه فاعل ، فعل سره دفاعل نه د؛ معطوف علیه شو . يضرب فعل ضمير دهو پکښې فاعل. فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف اول **اضرب** صیغه دامر حاضر معروف ضمیر د انت پکښې مستتر هغه ئې فاعل. فعل سره دفاعل نه دا معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوف نه دا جمله فعلیه خبریه مضاف الیه شو لپاره دمثل مضاف. مثاله مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

## علامات دفعل

وَعَلَامَتُهُ أَنْ يَصِحَّ الْإِخْبَارُ بِهِ لَا عَنْهُ وَدُخُولُ قَدْ وَالسِّيْنِ وَسَوْفَ وَالْجَزْمِ وَالتَّصْرِيْفِ إِلَى الْمَاضِيْ وَالْمُضَارِعِ وَكَوْنِهِ أَمْرًا وَنَهْيًا وَاتِّصَالِ الضَّمَائِرِ الْبَارِزَةِ الْمَرْفُوْعَةِ نَحْوُ ضَرَبْتُ وَتَاءِ التَّانِيْثِ السَّاكِنَةِ نَحْوُ ضَرَبَتْ وَنُوْنَيِ التَّاكِيْدِ.

**ترجمه** علامت د فعل دادی چه به دی باندي خبر ورکول صحیح کیږی د بل شي نه دده نه او قَدْ سِيْن سَوْف او جزم به داخل وي ماضي او مضارع طرف ته به ئې گرځان کیږی امر او نهي به وي او ضمیر بارز به ورسره متصل وي لکه ضَرَبْتُ او ت ، تانيث الساكنه به ور باندي داخل وي،لکه ضَرَبَتْ او نون تاكيد به ور باندي داخل وي خفيفه وي او كه ثقيله. لكه اضْرِبَنْ اضْرِبَنَّ

**تشريح** په تعريف سره معرفت دوجود ذهني حاصليږي اوپه علامت اوخاصی سره معرفت دوجود خارجي حاصليږي نودتعريف نه بعد مصنف علامات دفعل ذكر كوي

(۱) **اول علامت دفعل** دادي چې صحيح وي خبرو کول ده ده يعني واقع کيدل دفعل دي مخبربه. محکوم به . مسندبه اومحمول (دمنطقيانو په اصطلاح کې) ان يصح الاخباربه لاعنه دامجموعه علامه دفعل ده. (۲) **دويم علامت دفعل** دادي چې قد به کومه کلمه داخل شي نوهغه به فعل وي اوقد به دري معنو سره راځي قد چې کله به ماضي باندي داخل شو نومعنى بې حال ته قريبه کول (تقريب الماضي الى الحال) لکه قدرکب الامير اوکله دتحقيق دپاره راځي لکه قدضرب په تحقيق سره وصل کړي ووهغه بوتن په تيره زمانه کې اوچې په مضارع داخل شي نودتقليل معنى ورکوي لکه قديضرب. اودا دريواړه معنى په افعالوکې لازميږي نوځکه خاصه دفعل ده. (۳) **سين** (۴) **سوف** دادفعل دريمه اوڅلورمه علامه ده اودادواړه دزمانه استقبال دپاره وضع کړي شوي دي فرق پکې دادي چې سين دا ستقبال قريب دپاره وي لکه سيضرب زرده چې وهل به اوکي هغه يوکس په راتلونکي زمانه کې او سوف دا ستقبال بعيد دپاره راځي لکه سوف يضرب لرى ده اوبدي وضاحت سره د**اعتراض** دفعه اونوره هغه دحي خوک يو بسته اوکري چې دادواړه په استقبال کې مستعمل دی نوسين بي ولي به سوف مقدم کړو. **جواب** الحقّ بالتقريب لمُلتعيّن.

بل **اعتراض** داوارديږي چې مصنف په سين باندي الف لام داخل کړي دي او په سوف بي نه دي؟

**الجواب** سوف حرف داستقبال بعيد دپاره راځي په افعالوکې اوکله کله په اسماؤکې هم مستعمليږي اوسين تقريباً په شپږو معنوکې مستعمليږي اوپه هغې کې بعضي اقسام په افعالوکې مستعمل دي نومصنف ځکه په سين الف لام داخل کړو اوداالف لام عهد خارجي دي په دي سره اشاره کيږي بعضواقساموته چې کوم په فعل داخليږي.

**دسين مختلفي معنى** (۱) دطلب دپاره راځي لکه استفهمته (۲) راځي دپاره موندلو دموصوف په صفت باندي لکه استعظمته (ما اوموندبوسړي چې دعظمت خاوندي)، (۳) دتحويل دپاره راځي يعني دبدليدو دپاره لکه استحجر الطين ، خته په کاڼري بدله شوه ، (۴) دپاره دزيادت هم راځي (سين زائده) لکه اسطاع دسين په سقوط سره په معنى کې خلل نه راځي (۵) هغه سين چې ملحق کيږي په آخرد کلمي مؤنث مخاطبي کې دکاف ضميري سره لکه مررت بك پدي چې کله وقف اوکړي شي نوبيامررت بکس ونيلي شي اودبته سين الکسکسه وايي (۶) داستقبال قريب دپاره راځي .

پس خلاصه داشوه چې بغيردسين الکسکسي نه بنځه واړه اقسام مختص دي دفعل پوري

(۵) **والجزم:** په لغت کې قطعى ته وايي په اصطلاح کې سُقوط الحرکات عن اخرالکلمة

جزم دخواصو دفعل نه دي او دخول په معنی دلحوق سره ده یعني دي ملحق کیږي په آخرد کلمي کي اوخاصه دفعل څکه ده چي جزم اثردعوامل وجازمو دي اوعوامل جازمه خاص دي په فعل پوری چي مخالفت رانشي دموثردا ثرنه څکه دانا جائزه دي

(۶) **والتصریف الی الماضی والمضارع**: اړول د فعل دي کله ماضي کله مضارع کله امراوکله نهی ته او دا بدلیدل په اعتبار دزمانو سره راځي اوزماني نه وي مګر په افعالوکي راځي اومراددزماني تري حاصلیږي نوتصرف علامه دفعل شوه ، اعتراض، فعل مضارع وماضي نه جوړیږي نو دا خو دواړه افعال دي او ماضي دضرباً نه جوړه شوي اوضرباً مصدردي یعني اسم دي نوبیاخو دیته هم فعل ونیل پکاردي څکه چي تصرف پکي کیږي، جواب، الی په معنی دمن سره ده اویاتقدیردي په عبارت کي مضاف الیه محذوف ده. التصریف فعل اصطلاح، الی الماضی والمضارع (۷) **امر** (۸) **نهی** امراونهی دواړه دطلب دپاره راځي لیکن فرق پکي دادي چي امردطلب دوجوددفعل دپاره راځي لکه اضرب، وهل موجودکه، اونهی دطلب ترک الفعل دپاره راځي لکه (لاتضرب) ، وهل ختم کړه)

(۹) **الضمائرالبارزة المرفوعة** نحوضربْتُ: متصل کیدل دي سره فعل سوری دضمائر و بارزودا څکه علامه اوخاصه دفعل ده چي دا پخپله فاعل دي اوفاعل نه فعل کي مستعملیږي لکه ضَرَبْتَ

(۱۰) **تاء التانیث الساکنة** تا ساکنه چي کله دکلمي په آخرکي مُلحقه شي نو دا به فعل وي اوتاء متحرکه علامه داسم ده څکه چي اسم پخپله خفیف ده اوحرکات ثقیل دي اوفعل پخپله ثقیل ده اوتاء ساکنه خفیفه ده اودا ضابطه ده چي ثقیلي کلمي ته خفیف حرکت ورکولي شي نوځکه تا یې ساکنه خاصه دفعل ده.

(۱۱) **نونی التاکید**: نون تاکید (ثقیله ، خفیفه) دواړه علامات اوخاصي دفعل دي څکه چي دادتاکیدالمعنی دپاره راځي اوتاکیدفقط په فعل کي وي بله وجه دا وضع شوي دفعل مضارع ، امراونهی دپاره اوتاکیدهم په فعل مضارع کي وي نوځکه خاصه دفعل ده

**ترکیب**: **و** عاطفه **علامت** مضاف **ة** ضمیر مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه **ان** ناصبه مصدریه **یصح** فعل **الاخبار** مصدر **به** جار مجرور دا معطوف علیه شو. **لا** عاطفه **عن** جاره **ة** ضمیر مجرور . جار سره دمجرور نه دا معطوف شو ، معطوف سره دمعطوف علیه نه دامتعلق شو په الاخبار مصدر پوری. الاخبار مصدر سره دمتعلق نه دا فاعل شو لپاره دیصح ، یصح فعل

سره دفاعل نه دا جمله فعلیه معطوفة علیه واو عاطفه دخول مضاف قد معطوف علیه واو عاطفه السین معطوف اول واو عاطفه سوف معطوف ثاني واو عاطفه الجزم معطوف ثالث ، معطوف سره د معطوفینو نه دا مضاف الیه شو د دخول مضاف . مضاف سره د مضاف الیه نه دا معطوف اول شو . واو عاطفه التصریف مصدر الی جاره الماضي معطوف علیه واو عاطفه المضارع معطوف معطوف سره د معطوف علیه نه دا مجرور کیږي د باء جاره . جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوه متعلق شو تصریف مصدر پورې. تصریف مصدر سره د متعلق نه دا معطوف ثاني شو . واو عاطفه کون مصدر ه ضمیر کون دا اسم امرأ معطوف علیه واو عاطفه نصاً معطوف . معطوف سره د معطوف علیه نه دا خبر د کون سره . کون سره د اسم نه دا معطوف ثالث شو واو عاطفه اتصال مضاف الضمائر موصوف البارزة صفت. موصوف سره د صفت نه دا مضاف الیه شو د اتصال مضاف لپاره . مضاف سره د مضاف الیه نه ممثل شو . نحو مضاف ضربت فعل فاعل . فعل سره د فاعل نه دا مضاف الیه شو د نحو مضاف لپاره ، مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر د مبتدا محذوفي لپاره چې مثاله ده مثاله مضاف الیه دا مبتدا شوه . مبتدا سره د خبر نه د مثال شو د ممثل ، ممثل سره د مثال نه دا معطوف رابع شو . واو عاطفه تاء مضاف التانیث موصوف الساکنة صفت. موصوف سره د صفت نه دا مضاف الیه شو د تاء د مضاف. مضاف سره د مضاف الیه نه دا ممثل شو نحو مضاف ضربت فعل فاعل . فعل سره د فاعل نه دا مضاف الیه شو د نحو مضاف لپاره ، سره د مضاف الیه نه دا خبر شو د مبتدا محذوفه چې مثاله ده مثاله مضاف مضاف الیه دا مبتدا شو ، مبتدا سره د خبر نه دا مثال شو د ممثل . ممثل سره د مثال نه دا معطوف خامس شو . واو عاطفه نون مضاف التاکید مضاف الیه مضاف مضاف سره د مضاف الیه نه دا معطوف سادس شو . معطوف علیه سره د معطوفو نه دا په تاویل د مصدر سره خبر شو د مبتدا . مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه

## خواص الفعل ومعنی الاخبار یه

فان کل هذه خواص الفعل:

**ترجمه** او دا ټول علامات د فعل دي ، د فعل علاماتو نه علامات و نیل صحیح نه دي ځکه چې د علامت معنی دا ده چې نه جُدا کیږي د یو شي نه او په دې کې بعض علامات داسې دي چې جدا کیږي د فعل نه بلکه دا د فعل خواص غیر شامله دي

**ترکیب.** فاء فصیحیه ان حرف از حروف مشبه بالفعل کل مضاف هذه اسم اشاره ة مشار الیه ، اسم اشاره سره د مشار الیه نه مضاف الیه شو د کل مضاف . مضاف سره د مضاف الیه نه دا اسم د

ان شو . **خواص** مضاف **الفعل** مضاف اليه. مضاف سره د مضاف اليه نه دا خبر د ان شو . ان سره دا سم او خبر نه دا جمله اسميه خبريه شو

**ومعنى الاخبار به ان يكون محكوما به**: مصنف : اول علامت تشريح بخپله كوي چي محكوم به به واقع كيږي يعني پده سره به حكم كيږي فاعل نه. او دي به مخبر به . محكوم به . مسندبه واقع كيږي دا دري واړه الفاظ مترادفه دي

**تركيب واو** عاطفه **معنى** مضاف **الاخبار** مصدر **به** جار مجرور دا ظرف لغو د تعلق نيسي الاخبار پوري. الاخبار مصدر سره د متعلق نه دا مضاف اليه شو . د معنى مضاف لپاره مضاف سره د مضاف اليه نه دا مبتدا شوه . **ان** مصدريه **يكون** فعل از افعال ناقصه هو ضمير پكښي مستتر هغه تى اسم **محكوما** صيغه دا سم مفعول **به** جار مجرور دا نائب فاعل شو . اسم مفعول سره د نائب فاعل دا شبه جله خبر ديكون. يكون سره دايم او خبر دا جمله فعليه خبريه په تاويل د مصدر سره خبر د مبتدا شوه. مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه

## تعريف دَحرف او وجه تسميه

وَلَمْ يُسَمَّ فِعْلًا بِاسْمِ اَصْلِهِ وَهُوَ الْمَصْدَرُ لِاَنَّ الْمَصْدَرَ هُوَفِعْلُ الْفَاعِلِ حَقِيْقَةً وَحَدُّ الْحَرْفِ كَلِمَةٌ لَاتَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا بَلْ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ غَيْرِهَا نَحْوُ مِنْ فَاِنَّ مَعْنَاهَا الْاِبْتِدَاءُ وَهِيَ لَاتَدُلُّ عَلَيْهِ اِلَّا بَعْدَ ذِكْرِ مَا مِنْهُ الْاِبْتِدَاءُ كَالْبَصْرَةِ وَالْكُوْفَةِ مَثَلًا تَقُوْلُ سِرْتُ مِنَ الْبَصْرَةِ اِلَى الْكُوْفَةِ وَعَلَامَتُهُ اَنْ لَايَصِحَّ الْاِخْبَارُ عَنْهُ وَلَا بِهِ وَاَنْ لَايَقْبَلَ عَلَامَاتِ الْاَسْمَاءِ وَلَا عَلَامَاتِ الْاَفْعَالِ وَلِلْحَرْفِ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ فَوَائِدُ كَالرَّبْطِ بَيْنَ الْاِسْمَيْنِ نَحْوُ زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَالْفِعْلَيْنِ نَحْوُ اُرِيْدُ اَنْ تَضْرِبَ اَوْاِسْمٍ وَفِعْلٍ كَضَرَبْتُ بِالْخَشَبَةِ وَالْجُمْلَتَيْنِ نَحْوُ اِنْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ اَكْرَمْتُهُ وَغَيْرِ ذٰلِكَ مِنَ الْفَوَائِدِ الَّتِيْ تَعْرِفُهَا فِي الْقِسْمِ الثَّالِثِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى.

**ترجمه** او د دې نوم نې فعل كيخودلو د اصل نوم د وجه نه چه هغه مصدر ده خكه چه په حقيقت كښى دا مصدر د فاعل فعل وي، د **حرف تعريف** چه في نفسه به خپله معنى باندې دلالت نه كوي بلكه دلالت به كوي په خپله معنى خو په واسطې د غير سره نكه من خكه چه د دې معنى ابتداء ده او من په ابتداء باندې دلالت نشي كولى بغير ذكر د هغه امر نه چه ابتداء د كوم امر نه شوې وي، نكه سرتُ منَ البَصرة الى الكوفه ،ما د بصرې نه كوفې طرف ته سفر وكړو: **علامات** ئي دا دي چه نه به دد نه خبر وركولى شي او نه به د باندې خبر وركول كيږي او

د: حرف به نه د اسم علامات او نه د فعل علامات قبلوی په کلام عرب کښی د حرف ذیری **فائدی** دی مثلاً دوه اسمونو کښی ربط پیدا کول لکه زَیْدٌ فِی الدَّارِ یا په دوو فعلونو په درمیان کښی لکه أُرِیْدُ اَنْ تَضْرِبَ زه اراده لرم چه ته اووهم، یا په اسم او فعل په درمیان کښی لکه ضَرَبْتُ بِالْخَشَبَةِ ما په لرګی سره اووهلو، یا په دوو جملو په درمیان کښی لکه اِنْ جَاءَنِیْ زَیْدٌ اَکْرَمْتُهٗ زید کچر ته ما ته راغی نو زه به نی اکرام وکړم، دی نه علاوه نوری فائدی هم شته چه هغه به ان شاء الله په قسم ثالث کښی زده کړی

**تشریح**. مصنف دفعل وجه تسمیه اولغوي تشریح تفصیلاً ذکر کوي چي فعل مسمی کولی شی په اعتبار دمعنی لغوي اومعنی اصلي سره فعل اصطلاحي مرکب دری واجزاؤ نه دي یومعنی مصدری حدثی اوبل نسبت الی الفاعل اودریم اقتران بالزمان . اودفعل خپله معنی لغوي مصدری حدثی ده اوپه اصطلاحي تعریف دفعل کي هم اولنی معنی حدثی ده نو ګویا فعل، مسمی دخپلی اصطلاحي معنی دیو جزنه دي نو دا تسمیه دکل ده په اسم دجزسره (تسمیة الکل باسم الجزء) او د ادریواړه اجزاء دفعل نشي جوړیدي بلکه یو جزچي هغه معنی مصدری ده او معنی مصدری نه فعل لغوي وایي او داجزاعظم دي په خپلو اخوبنوباندي (نسبت الی فاعل، اقتران بالزمان) نوځکه دتول مرکب نوم فعل وضع شو.

**وحد الحرف**: مصنف چي کله دفعل دتعریف، علاماتو اوخواصو اودلغوي تفصیل نه فارغ شونو شروع دحرف په تعریف علاماتو. مثالونو اوکړه . حدتعریف جامع مانع ته وایي اودعبارت ترجمه داده چي حرف یوداسی کلمه ده چه دلالت نکوي په معنی مستقله داسی معنی چي دغه معنی په نفس دده کي وي بلکه دلالت کوي په داسی معنی چي په غیردده کي وي **اعتراض** نو پس دعبارت نه دامعلومیږي چي دي په نوروکلماتو دلالت کوي اوپه خپله معنی دلالت نکوي او داخلاف عقل ده جواب دحرف په تعریف کي دولړه (فی) په معنی دباسره دي نو ترجمه به داسی شي چي حرف یو کلمه ده چي دلالت نکوي په سبب ددغه خپلی معنی بلکه دلالت به کوي په سبب اوپه اعتبار دغیرسره مثال لکه مِنْ نو دمن خپله معنی په هغه وخت کښی فهم ته راځي چي انضمام یې دبل چاسره راشي وهی لاتدل علیه الابعد ذکر ما منه الابتداء هی ضمیر مِنْ ته راجع دي اوپه علیه کي ضمیر ابتداء ته راجع دي

**سوال**: دمن معنی خوذکرشوه چي ابتداء ته وایي نو بیا دي خو تعریف دحرف نه ثابتیږي یعني مِن دحرف غیراوګرزیدو؟

**جواب** ابتداء په دوه قسمه ده ابتداء کلي ، ابتداء جزی . ابتداء کلي عامه ابتداء ده د هرخای نه شروع ته وایي او ابتداء جزی چې دیوخاص خای نه شروع شي یادیو معین اومخصوص خایې نه شروع کیږي نوګویا معنی دوه شوي ابتداء کلي ابتدایې مطلقه ده دا معنی مستقله ده او دافهم کیږي بغیرد انضمام دبلی نه او ابتداء جزی دامعنی غیرمستقله ده اودابغیردانضمام دبلی کلمی نه نه حاصلیږي نوپس دمِن معنی ابتداء جزی ده .لکه سرت من البصرة الی الکوفة .مِن ابتداء جزی ده خپله ورسره بصره ذکرشوه نومعنی تري فهم ته راغله (الی به معنی دانتهادي)

**وعلامته:** خالي کیدل دحرف دي دعلاماتو داسم اوفعل نه یعني نه به دي مخبرعنه واقع کیږي اونه مخبربه یعني یو علامه او خاصه دحرف اوګرزیده

**سوال** حرف په خپله معنی دلالت هم نکوي اونه به مسند الیه وي اونه به مسندوي نوداخوبی فائدي دي په کتابونو کښی

**جواب** فوائدخان له علامات دفعل او اسم نه دي بلکه نورهم دیرفوائد دي چې مصنف په خپله ذکرکړی دي .مثلاً غټه فائده یې داده چې دي ددوو جملتینو او دَدوه کلمتینو اوددوه فعلتینو په مابین کې ربط یعني پیوست والی راولی

**ترکیب:** واو عاطفه یسمی فعل ضمیر دهو پکښی فاعل فعلاً مفعول به با، جاره اسم مضاف اصل مضاف الیه مضاف ة مضاف، مضاف سره دمضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه کیږي داسم مضاف لپاره مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور کیږي دباء جاره، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغوه تعلق نیسی یسمی پوري، یسمی فعل فاعل مفعول به او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه

**واو عاطفه هو مبتدا المصدر خبر**، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه، **لام جاره ان** حرف از حروف مشبه بالفعل **المصدر** اسم **هو** مبتدا **فعل** مصدر مضف **الفاعل** مضا الیه **حقیقة مفعول** به مصدر مضاف سره دمضاف الیه اوسره دمفعول به نه دا خبر شو دمبتدا لپاره، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه خبر د انّ ، ان سره داسم او خبر نه دا مجرور دجار، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغوی متعلق ثابت پوري . ثابت صیغه داسم فاعل ضمیر پکښی نائب فاعل او سره دمتعلق نه دا خبر د مبتدا محذوفه شو چې هذا ده، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه شوه

**واو عاطفه حد** مضاف **الحرف** مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوهٔ **کلمة** موصوف **لا نافیه تدل** فعل فاعل **علی** جار **معنیً** موصوف **فی** جاره **نفس** مجرور مضاف **هاء** ضمیر

مضاف اليه . مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور شو دفي جاره . جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره صفت شو دمعنى موصوف. موصوف سره دصفت نه دا مجرور كبري دعلى جاره . جار سره دمجرور نه دا تعلق نيسي تدل فعل پوري . تدل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه معطوف عليه. **بل عاطفه تدل فعل فاعل على جاره معنىٰ موصوف في جاره غيرها مضاف مضاف اليه** دا مجرور شو دفي جاره جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره صفت كبري دمعنى موصوف موصوف سره دصفت نه دا مجرور كبري د على جار سره دمجرور نه دا ظرف لغو ه تعلق نيسي تدل پوري . تدل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه معطوف . معطوف سره د معطوف عليه نه دا صفت شو لپاره دكلمة موصوف موصوف سره دصفت نه دا خبر شو لپاره دمبتدا . مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه **نحو مضاف من مضاف اليه**. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا محذوفه چې مثاله ده. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

**فاء تفصيليه معنى مضاف هاء مضاف اليه**. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتدا شوه **الابتداء** خبر .مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه **واو عاطفه هي مبتدا** لا، نافيه **تدل فعل فاعل على جاره،** ه مجرور ، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو تدل پوري ، **الا حرف استثنى بعد مضاف ذكر مضاف اليه مضاف ما موصوله يا موصوفه من حرف جار**، هٔ ضمير مجرور . جار سره دمجرور نه دا په اعتبار د متعلق سره خبر مقدم **الابتداء** مبتدا مؤخر. خبر مقدم سره دمبتدا مؤخر نه دا صله شوه لپاره د ما موصوله. موصول سره دصله نه. دا مضاف اليه كبري د ذكر مضاف لپاره . مضاف سره دمضاف اليه نه دا بيا مضاف اليه كبري دبعد مضاف لپاره. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مستثنى مفرغ شوه دمستثنى منه مقدره لپاره چې في وقت من الاوقات ده. مستثنى مفرغ سره دمستثنى منه نه دا متعلق شو تدل فعل پوري . تدل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه خبر ده لپاره دهي مبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه

**كاف بمعنى مثل مضاف البصرة معطوف عليه واو عاطفه الكوفة معطوف.** معطوف سره دمعطوف عليه نه دا بيا مضاف اليه كبري دمثل مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر كبري دمبتدا محذوفه چې مثاله مضاف مضاف اليه دا مبتدا شوه. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه .

**مثلاً** دا مفعول مطلق ده لپاره دفعل محذوفه چې مثلت ده مثلت فعل فاعل سره دمفعول مطلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه **تقول فعل فاعل قول سرت فعل فاعل من جاره البصرة مجرور** جار سره دمجرور نه دا متعلق شو سرت پوري **الى حرف جر الكوفة مجرور** جار سره دمجرور نه دا متعلق شو

سرت يوري سرت فعل فاعل سره دمتعلقينو نه دا جمله فعليه مفوله. قول سره دمقولي نه جمله فعلـه توليـه شوه **ولو عاطفه علامة** مضاف ةضمير مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليـه نـه دا مبتدا شـوه **ان** ناصبه مصدريه **لا** نافيه **يصح** فعل مضارع معروف **الاخبار** مصدر **عنه** جار مجرور دا معطوف عليـه شـو **ولو** عاطفه **لا** نافيـه **به** جار مجرور دا معطوف شو. معطوف سره دمعطوف عليـه نـه دا تعلق نيـسي الاخبار مصدر يوري. مصدر سره دمتعلق نه دافاعل شو لپاره: يصح. يصح فعل سره دفاعل نه جمله فعليه په تاويل دمفرد سره معطوف عليه **ولو** عاطفه **ان** ناصبه مصدريه **لا** نافيـه **يقبل** فعـل ضمير دهو پكښي مستتر هغه ئي نائب فاعل **علامات** مضاف **الاسماء** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليـه نـه دا مفعول به شود يقبل. يقبل فعل فاعل مفعول به نه دا معطوف شو لپاره دمعطوف عليه. معطوف سره دمعطوف عليه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه

**ولو** عاطفه **حرف** موصوف **فى** جاره **كلام** مضاف **العرب** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا صفت شو لپاره دموصوف. موصوف سره دصفت نه دا خبر مقدم شو **فوائد** صيغه جمع كثرت **كاف** جاره **ربط** مصدر مضاف شو دا بيا مضاف شو دربط مضاف لپاره. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور شو دكاف جاره لپاره. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو فوائد يوري. فوائد سره دمتعلق نه دا معطوف عليه شو. **او** عاطفه **الفعلين** ممثل **نحو** مضاف **اريد** صيغه واحد متكلم ضمير پكښي مستتر د چي هغه انا دي دا فاعل **ان** ناصبه مصدريه **تقرب** فعل فاعل. فعل سره دفاعل نه دا مفعول به شو لپاره د اريد. اريد فاعل فاعل مفعول به دا مضاف اليه شو لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثال شو. ممثل سره دمثال نه دا معطوف اول شو. **او** عاطفه **اسم** معطوف عليه **ولو** عاطفه **فعل** معطوف. معطوف سره دمعطوف عليه نه دا ممثل شو. **كالف** په معنى دمثل مضاف. **ضربت** فعل ضمير د انا فعل **باء** جاره **الخشبة** مجرور. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ضربت يوري. ضربت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا مضاف اليـه شـو. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مثال شو ممثل سره دمثال نه دا معطوف ثاني شو **او** عاطفه **الجملتين** ممثل **نحو** مضاف **ان** حرف ضرذ جاء فعل **نون** **وقايه** وقايه يا ضمير ومتكلم مفعول به **زيد** فاعل. فعل فاعل او سره دمبا دمتكلم مفعول به دا جمله فعليه فعل شرط **اكرمت** فعل ضمير د انا پكښي فاعل **ه** ضمير مفعول به فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعليه جزا شرط. فعل شرط سره دجزا نه دا جمله فعليه معطوف ثالث. معطوف سره دمعطوف تو ثلاثه نه دا مبتدا موخر شوه. خبر مقدم سره دمبتدا مؤخر نه دا جمله اسميه خبريه

**ولو** عاطفه **غیر** مضاف **ذالک** موصوف **من** جاره **الفوائد** موصوف **التی** اسم موصول **تعرف فی** ضمیر د انت فاعل **فی** جاره **القسم** موصوف **الثالث** صفت، موصوف سره د صفت نه دا مجرور کیږي فی جاره، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو تعرف پوري، تعرف فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا صله شو د موصول، موصول سره دصله نه دا صفت شو لپاره دموصوف، موصوف سره دصفت نه دا مجرور دجار، جار سره دمجرور نه دا صفت کیږي دموصوف، موصوف سره دصفت نه دا مضاف الیه شو دغیر مضاف سره دمضاف الیه نه دا جزا مقدم **ان** شرطیه **شاء** فعل **الله** ذوالحال **تعالی** حال، حال سره دذوالحال نه دا فاعل شو. فعل سره دفاعل نه دا شرط مؤخر. شرط سره دجزاء نه دا جمله فعلیه شرطیه شوه

**وَيُسَمّٰى حَرْفًا لِوُقُوْعِهٖ فِي الْكَلَامِ حَرْفًا أَيْ طَرَفًا إِذْ لَيْسَ مَقْصُوْدًا بِالذَّاتِ مِثْلُ الْمُسْنَدِ وَالْمُسْنَدِ إِلَيْهِ:**

**ترجمه** او د دی نوم حرف دی خکه چه دا په کلام کښ طرف ته واقع کیږي خکه چه حرف مسند او مسند الیه په شان مقصود باالذات نه ده

**تشریح** حرف مسمیٰ کولی شي په معنی لغوي سره چي طرف او کناری ته وایي لکه عرب مقوله پیش کوی چي جلستُ حرفُ الوادی ای طرفُ الوادي .نو حرف اصطلاحي ته حرف خکه وایي چي دي هم کلام کي یو طرف ته وي **سوال** تاداا وویل چي یو طرف ته وي خکه ورته حرف وایي نو زید فی الدار کي خوفی حرف نه دي خکه چي دي خوپه عین وسط کي واقع دي

**جواب** په جمله کي مقصودي شیان دوه دي مسند او مسند الیه نو گویا حرف دمسند نه یو طرف ته واقع کیږي. یامخکي بار وستو دووی نه

**ترکیب: ولو** عاطفه **یسمی** فعل **هو** ضمیر پکښی فاعل **حرفا** مفعول به **لام** جاره **وقوع** مصدر مضاف **ه** ضمیر مضاف الیه **فی** جار **الکلام** مجرور جار سره دمجرور نه داظرف لغو ه تعلق نیسی وقوع مصدر پوري، **حرفا** مُفَسَّرْ **ای** حرف تفسیر **طرفا** مُفَسِّرْ. مفسر سره دمفسر نه دا مفعول به کیږي لپاره دوقوع مصدر. وقوع مصدر مضاف سره دمضاف الیه او سره دمفعول به او سره دمتعلق نه دا مجرور کیږي دلام جاره، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو پیسمی پوري، **اذ** مضاف **ليس** فعل از افعال ناقصه ضمیر دهو پکښی مستتر هغه ئی اسم **مقصودا** صیغه دا سم مفعول **بالذات** جار مجرور ، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مقصوداً پوري، مقصوداً صیغه داسم مفعول سره دمتعلق نه دا خبر کیږي د لیس ، لیس سره داسم او خبر نه دا مفعول فیه کرزی دیسمی لپاره، یسمی فعل فاعل مفعول بهاو

سره دمفعول فیه نه او سره د متعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

**مثل** مضاف **المسند** معطوف علیه **واو** عاطفه **المسند** معطوف . معطوف سره د معطوف علیه نه دا مضاف الیه کیږي د مثل مضاف، مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر کیږي لپاره د مبتدا محذوفه چې هو ده ، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

## بحث دکلام

### فَصْلٌ: اَلْكَلَامُ لَفْظٌ تَضَمَّنَ كَلِمَتَيْنِ بِالْإِسْنَادِ:

**ترجمه** کلام یولفظ دے چې مشتمل ده په دوه کلمتینو داسې کلمنین چې اسنادي په کښې وي

**تشریح** مصنف چې کله د موضوع دیو جزنه فارغ شونو اُس د موضوع د دویم جُز تشریح او وضاحت کوي چې کلام ده په بالاسناد کې باء دسببیت ده او اسناد نسبت ته وایي پس کلام یولفظ ده، چه مشتمل ده په دوه کلمو کښې وي په سبب د اسناد، سره اودغه اسناد به نسبت دیو امر یل امرته وي او دواړه به مسند مسند الیه وي . په بالاسناد کې دوه احتماله دي یا به ظرف لغو شي او متعلق به یې تضمن شي او دعبارت **ترکیب** به داسې شي الکلام مبتدا لفظ موصوف تضمن صیغه دماضي دباب تفعّل ضمیر یکي مستتر دي چې راجع دي لفظ ته . کلمتین مفعول به بالاسناد جار مجرور جار سره د مجرور نه متعلق شو د تضمن فعل پوری، فعل سره دخپل فاعل مفعول به او متعلق نه جمله فعلیه داصفت شو دپاره د موصوف موصوف سره د صفت نه خبر د مبتدا مبتدا سره دخبر نه جمله (خبریه اسمیه) دویم احتمال چې متعلق یې ظرف مستقر شي نو دعبارت تقدیر به داسې شي چې الکلام لفظ تضمّن (تَضَمُّنًا) کلمتین (حاصلاً) بالاسناد یدي صورت کې به حاصلاً سره دخپل متعلق نه مفعول مطلق شی دباره دتضمن.

**سوال** په مصنف داسوال دي چې د الکلام نه مخکې حرف عطف یکار وو خکه چې مخکې په موضوع کې الکلمة والکلام ذکر دي نو په قیاس دا دي چې خنګه بحث د کلمې ختم شونو وروسی بحث دکلام دي چې کلام معطوف شي او کلمة ورنه معطوف علیه شي۔

**جواب** دا یې ځکه نه دي ذکر کړی چې کلام معطوف شي او الکلمة معطوف علیه شي او دا قانون دي چې معطوف تابع وي او معطوف علیه یې متبوع وي او متبوع اصل وي او تابع فرع وي نو داسې نه شي کیدي ځکه چې متبوع غیر مستقل کلمه ده او کلام (تابع) مستقل دي او اصل دې بدي معنی سره چې دامفید دفائدې د پاره دی یعني جمله وی او فی نده تري حاصلیږي نو دي

وجی نه حرف عطف ذکرنه شو او بناء د کلام په معنی مستقله شوه هرتعریف لره جنس او فصل پکاروي نو په تعریف دالکلام کي جنس لفظٌ دي چي مرکبا تو اومفرداتو اومهملاتو ټولو ته شامل دي ۔اوتضمن کلمتین فصل اول دي اوبالاسناد فصل ثاني دي په فصل اول سره احترازراغی دمفرداتو نه اوپه فصل ثاني سره احترازراغی د مرکبات غیرکلامیه نه

## تقسیم دمرکب

مرکبات جمع دمرکب ده اومرکب ددوه یا دزیاتو کلمو مجموعی ته وایي ۔په کلام عربی کي مرکب په شپږ قسمه دي

(۱) **مرکب مفید:** هغه ده چي متکلم تلفظ او کي او چپ شي او مخاطب ته څه خبریا طلب میلاؤشي (چون قائل برای سکون کند و سامع راخبری یاطلبی حاصل شود) اودي ته مرکب اسنادي هم وایي او مرکب تام هم وایي او ددي نه علاوه د مرکب غیرتامه دي مرکب ناقصه ۔

(۲) **مرکب تقیدي:** هغه مرکب دي چي دویم جزیي قیدوي دپاره داول

(۳) **مرکب غیرتقیدي:** چي اول جزیي قیدد دویم دپاره نه وي

مرکب تقیدي په دوه قسمه دي (۱) **مرکب اضافی** چي اضافت پکي شوي وي لکه غلام زید (۲) **مرکب توصیفی** چي ماهیت اوصفت پکي وي لکه زید عالمٌ

اومرکب غیرتقیدي په دری قسمه دی

(۱) **مرکب عددي یاتعدادي:** داحدعشر نه تاتسعة عشر

(۲) **مرکب مزاجي یاامتزاجي:** امتزاجی اتصال ته وایي نو په دي کي هم پیوستوالی ددوه کلمو راځي بغیرد عطف نه لکه بعلبکّ بعل بو اسم دي او بک بل اسم دي۔

(۳) **مرکب صوتي:** چي په دویم جزکي یي صوت (واز) وي لکه سیبویه ۔سیب یو کلمه ده اوآخری جزوبَه ده

**فائده** اولني مرکب مفید (مرکب تامه ، مرکب اسنادي) دي اوددي نه علاوه پنځه واړه مرکبات غیرکلامیه دي

(۴) **جنس:** چي مقصودي اوغیرمقصودي اشیاؤ ټولو لره شامل وي

**ترکیب فصل** ای هذا فصل ثالث ، هذا مبتدا **فصل** موصوف **ثالث** صفت، موصوف سره دصفت نه دا خبر کبري دمبتدا لپاره چي هو ده، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه **الکلام** مبتدا

**فقاموصوف تضمن فعل فاعل کلمتين مفعول به. بالاسناد** جار مجرور د ظرف لغوه شو تعلق نسي تضمن پوري، تضمن فعل فاعل مفعول به او سره د متعلق نه دا صفت کېږي لپاره د موصوف. موصوف سره د صفت نه دا خبر کيږي لپاره د مبتدا. مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

**فصل**: ددې په ذريعې سره د تعريف نه غير مقصودي اشياء خارجيږي




## ( اعتراضات په تعريف دکلام باندي )

يو شاعر د مرکباتو اقسام دخيال په طرز سره ذکر کړي دي چې هغه لاندي لیکل شوي

بود ترکيب نزد نحويان شش بيادش گير گر خانف زفوتي

اضافي دان تعدادي مزاجي هم اسنادي وتوصيفي وصوتي

په کلام کې فقط يو مرکب اسنادي مراد دي او په بالاسناد سره نور پنځه واړه خارج شول

**سوال** په مصنف دا سوال دي چې تعريف دکلام منقوض دي په زيد قائم ابوهٔ باندي يعني بديکې دری کلمې دي او کلام متضمن په دوه کلمتينو وي نو تعريف پرې ثابت نه دي.

**جواب** زمونږ مراد د کلمتينو نه عامې کلمې دي که حقيقتاً وي او که تاويلاً وي نو په زيدٌ قائم ابوهٔ کې په ظاهره درې کلمې دي خو تاويل دي پکې يعني زيد دوه کلمتين دي بعدهٔ طاويل زيد مبتدا قائم مضاف ابوه مضاف اليه مضاف سره د مضاف اليه نه خبر شو د مبتدا مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه خبريه نو يوه کلمه زيد شوه او بله کلمه قائم الاب شوه.

**سوال** تعريف دکلام منقوض دي په اضرب باندي ځکه چې دا يوه کلمه ده.

**جواب** زمونږ مراد عام دي د کلمتينو نه که لفظاً وي او که حکماً وي په اضرب کې انت ضمير مستتر دي بلفظ پرې نه کېږي خو حکماً موجود دي نو تقدير د عبارت به داسې شي، اضرب انت،

**نوټ**: تضمن په معنی د ترکیب سره ده یعني چې مرکب شي دوه کلمونه او په لغت کې (گرفتن) نیولو ته وایي نوگویا دي دخان سره دوه کلمې رانسي پس په تعریف دکلام کې داسناد علاوه نور الفاظ د معنو په لحاظ سره واضح ووښو مصنف داسناد تشریح کوي.

وَالْاِسْنَادُ نِسْبَةُ اِحْدَى الْكَلِمَتَيْنِ اِلَى الْاُخْرٰى بِحَيْثُ تُفِيْدُ الْمُخَاطَبَ فَائِدَةً تَامَّةً يَصِحُّ السُّكُوْتُ عَلَيْهَا نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ وَقَامَ زَيْدٌ وَيُسَمّٰى جُمْلَةً:

**ترجمه**: او اسناد دیته وائی چه نسبت دیوی کلمی نه بلی کلمی ته په داسې طریقې سره دی چه مخاطب ته فائده تامه ورکوی چه سکوت وربانډې صحیح کیږي لکه زَيْدٌ قَائِمٌ او قَامَ زَيْدٌ او دی کلام ته جمله هم ونیلی شی

**تشریح**: اسناد په لغت کې نسبت ته وایي په اصطلاح کې نسبت دیوي کلمې بلې کلمې ته بیا برابره خبره ده که دغه نسبت داولی کلمی نه دویمی ته شوي وي او که دَدویمې کلمې نه اولی ته شوي وي چې اسناد دَ اولی شوي وي دویمې ته نو اول جزته مسند او دویم جزته مسند الیه وایي لکه زیدٌ قَائِمٌ دزید نسبت قائم ته شوي دي نو زید مسند الیه دي او قائم مسند دي او چې کله نسبت دَدویمي اولی ته اوشي لکه قَامَ زَيْدٌ نو دزید نسبت اولی ته شوي دي او قائم مسند دي او زید مسند الیه نو گویا جملې دوه شوي یوه جمله اسمیه او بله جمله فعلیه نو مصنف په عبارت کې لیکلي دي چې (يُسَمّٰى)

**ترکیب**: ولو عاطفه الاسناد مبتدا نسبة مضاف مصدر احدی مضاف الیه مضاف الکلمتین مضاف الیه الی جاره الاخری مجرور. جار سره دمجرور نه ظرف لغو تعلق نیسي نسبت مصدر پوري باء جاره حیث مضاف تفصیله فعل فاعل المخاطب مفعول به فائدة موصوف تامة صفت. موصوف سره دصفت نه دا بیا موصوف کیږي يصح فعل السکوت فاعل عليها جار مجرور، جار سره دمجرور نه ظرف لغو تعلق نیسي يصح پوري، يصح فعل فاعل او سره متعلق نه اصفت کیږي لپاره دموصوف، موصوف سره دصفت نه دا مفعول به ثاني کیږي لپاره دتفید و تفید فعل فاعل او سره مفعولینو نه دا مضاف الیه کیږي لپاره دحیث مضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور کیږي دباء جاره. جار سره دمجرور نه ظرف لغو تعلق نیسي نسبت پوري، نسبت مضاف سره دمضاف الیه او سره دمتعلقینو نه دا خبر کیږي لپاره د الاسناد مبتدا، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه نحو مضاف زید مبتدا قائم خبر. مبتدا سره دخبر نه دا معطوف علیه شو ولو عاطفه قام فعل زید فاعل فعل سره دفاعل نه دا معطوف شو. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مضاف الیه کیږي لپاره

دمضاف ، مضاف سره دمضاف الیه نه داخبر کیږي لپاره دمبتدا محذوفه چي مثاله ده. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه **ولو عاطفه یسمی فعل فاعل جملة مفعول** به فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

**فَعُلِمَ اَنَّ الْكَلَامَ لَايَحْصُلُ اِلَّامِنْ اِسْمَيْنِ نَحْوُزَيْدٌقَائِمٌ وَيُسَمّٰى جُمْلَةً اِسْمِيَّةً اَوْمِنْ فِعْلٍ وَّاِسْمٍ نَحْوُقَامَ زَيْدٌوَيُسَمّٰى جُمْلَةً فِعْلِيَّةً اِذْلَايُوْجَدُالْمُسْنَدُوَالْمُسْنَدُاِلَيْهِ مَعًا فِيْ غَيْرِهِمَا وَلَابُدَّلِلْكَلَامِ مِنْهُمَا**

**ترجمه**: پس معلومه شوه چه کلام نه حاصلیږي مګر دوو اسمونو نه لکه زَیْدٌ قَائِمٌ او دیته نوم جمله اسمیه کیخودلی شو ، یا د یو اسم او یو فعل نه لکه قَامَ زَیْدٌ او دیته نوم جمله فعلیه کیخودلی شو ځکه چه مسند او مسند الیه دواړو نه یو موندلی کیږي. د دی دوو صورتونو نه علاوه او کلام د پاره د دی دواړو موجودیدل ضروري دی

**تشریح**: پس کلام دکلمی دا قسامونو جوړیږي حي اسم دي فعل دي او حرف دي نو اسم مسند هم کیدی شي او مسند الیه هم او فعل فقط مسند وي او حرف نه مسند وي اونه مسند الیه وي .نو پدي اعتبار سره جملی لره طرفین پکار دي نو عقل دا تقاضا کوي چي به اقسامو دکلمی کي شپږطرفین جوړیږي۔

دعقل تقاضا اسمٌ.اسمٌ ـــ فعلٌ فعلٌ ـــ حرفٌ حرفٌ موافق صورتوني

فعلٌ ، اسمٌ ـــ اسم حرفٌ ـــ فعلٌ.حرفٌ مخالف صورتوني

پدي کي دوه احتماله دکلمی دپاره صحیح دي او څلور احتماله ناصحیح دي اودَ صحیح والی بناء په نسبت سره ده یعني اسمٌ اسمٌ او فعلٌ اسمٌ یا فعلٌ اسمٌ۔ داځکه صحیح دي چي پدي کښ مسند او مسند الیه دواړه راتلی شي اود کلام دپاره دا دواړه ضروري دي او باقی ځکه صحیح نه دي چي مسند به پکي وي خو مسند الیه به پکي نه وي یا پکي مسند الیه وي خو مسند به په کي نه وي۔

**فائده**: د دوو کلمتینو د نسبت دا فائده او علامت دی چي مخاطب ته به فائده ورکوي او دغه فائده به تامه وي پدي بناء سره چي متکلم دسکون نه بعد بلی خبری ته محتاجه نه وي او مخاطب هم بل تیوس کولو ته محتاجه نه وي۔

**سوال**: تاخو داأوویل چي په کلام کښ متکلم او مخاطب دواړه بلی خبری ته محتاجه نه وي نو په ضَرَبَ زَیدٌ کښي دواړه محتاجه دي ځکه چي متکلم سکوت به ضَرَبَ زَیدٌ او کړو

نومخاطب به دسته محتاجه وي چي حونځ بې وهلی دي ، یعني خوب دېبولی دي ، نومتکلم به ورسره عمراً ذکرمخاطب به بې تپوس وکړي حی بـه کوم خای کې وهلی دي نومتکلم بـه ورسره فی داره ذکرکړي نومخاطب بـه بیاتپوس اوکړي چې بـه څه بې وهلی دی نومتکلم بـه ورسره بالخشبة ذکرکړي نومخاطب به بیاتپوس اوکړي چي ولي بې وهلی دي نومتکلم به ورسره لتادیب ذکرکړي نو دې نه خو دلیلیٰ مجنون قصه جوړه شوه اوته وبي چې داوره محتاجه نه وي دویم کلام ته.

**جـواب** زمونږمراددادی دی حی ت سو بري دیوسف خان شیربانو قصه جوړه کړي بلکه زمونږمراددادي چي مسکلم اومخاطب خنګه دکلام دپاره مُسند او مسند الیـه نـه محتاجه دي نو دغسې نورځه نه دي محتاجه خکه حي مُسند او مُسند الیه د جملو دوه بنیادي رکنه دي اوددې نه علاوه نورتول فضولیات دي البته داتوردجملې دتفصیل دپاره ذکرکیږي.

**ترکیب** فا، تفصیلیه **علم** فعل **ان** حرف از حروف مسبه بالفعل **الکلام** اسم **لا** نافیه **یحصل** فعل ضمیر دهو پکښې فاعل **الا** حرف استثنا، **من** جار **اسمین** مجرور ، جار سره دمجرور نـه دا معطوف علیه شو **او** عاطفه **من** جار **فعل** معطوف علیه **واو** عاطفه **اسم** معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مجرور کیږي دجار ، جار سره دمجرور نـه دا معطوف شو لپاره دمعطوف علیه ، معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مستثنی مفرغ شو لپاره دمستثنی منه مقدري لپاره تقدیر دعبارت بـه دا رنګې شی لا یحصل بشئ من الاشیاء الا من اسمین او من فعل واسم. دا متعلق کیږي تر لا یحصل پورې، یحصل فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه خبر د ان شو بیا ان سره دا اسم او خبر نه دا جمله اسمیه خبریه مفعول به قائمقام دمفعولینو شو که په معنی دیقین کولو سره واخلی او یانې مفعول به واخله نو معنی به ئې شي پوهیدلو سره بیا علم سره دمفعولینو نه دا جمله فعلیه شوه **نحو** مضاف **قام** فعل **زید** فاعل .فعل سره دفاعل نه دا مضاف الیه شو **یسمی** فعل فاعل **جملة** موصوف **اسمیة** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مفعول به کیږي لپاره دیسمی . یسمی فاعل فاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه **نحو** مضاف **زید** مبتدا **قائم** خبر مبتدا سره دخبر نه دا مضاف الیه شو دمضاف لپاره مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا محذوفه چې مثاله دده. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه . **واو** عاطفه **یسمی** فعل فاعل **جملة** موصوف **فعلیة** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مفعول به شو دسمی لپاره **لا** مضاف **لا** نافیه **یوجد** فعل **المسند** معطوف علیه **واو** عاطفه **والمسندالیه** معطوف ، معطوف سره دمعطوف علیه نه دا فاعل شو دیوجد **معاً** مفعول به **فی** جاره **غیر** مضاف **هما** مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دفی جاره. جار

سره دمجرور نه دا متعلق شو یوجد پوري .یوجد فعل سره فاعل او سره دمفعول به او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه مضاف الیه شو . اذ مضاف لپاره مضاف سره دمضاف الیه نه دا مفعول فیه لپاره دیسمی و یسمی فعل فاعل مفعول به او سره مفعول فیه دا جمله فعلیه خبریه شوه، **واو** عاطفه **لا** نافیه **بد** اسم **لام** جاره **الکلام** مجرور . جار سره دمجرور نه دا ظرف لغو ه متعلق شو بُدّ پوري، **من** جار **هما** مجرور . جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره خبر کبري دلا نفی جنس. لا نفی جنس سره داسم او سره دخبر او سره دمتعلق نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

فَإِنْ قِيلَ قَدْ نُوقِضَ بِالنِّدَاءِ نَحْوُ يَا زَيْدُ قُلْنَا حَرْفُ النِّدَاءِ قَائِمٌ مَقَامَ أَدْعُو وَأَطْلُبُ وَهُوَ الْفِعْلُ فَلَا نَقْضَ عَلَيْهِ وَإِذَا فَرَغْنَا مِنَ الْمُقَدِّمَةِ فَلْنَشْرَعْ فِي الْأَقْسَامِ الثَّلَاثَةِ وَاللّٰهُ الموفِّقُ والمُعِينُ :

**ترجمه** : پس کچرته او ویلی شي چي په تحقیق سره ماتوي سنا دا قاعده نداء ، یعني تعریف دکلام منقوض دي په ندا ، لکه یازَیْدُ ا جواب نو مونږه وایو حي حرف ندا قائم مقام دادعوا او اطلب او دا فعل دي بس نه ماتوی ده لره ، تعریف د کلام ، او هرکله چي مونږه فارغ شو د مقدمی نه پس اراده د شروع مو او کړه په اقسام ثلاثه کي او الله پاك توفیق ورکونکي او مدد به کونکی دی

**تشریح**. فان قیل سره په دغه مخکښي عبارت دا **اعتراض** وو چي کلام نه حاصلیږي مگر دوه کلمتینونه چي هغه به اسم اسم فعل اسم وي نو دغه قاعده منقوضه ده په حرف نداء باندي او حرف نداء لکه یازیدنو دا هم مستقله جمله ده او برابر خبره ده چي یاحرف دي او زید اسم دي بخلاف ستاسو نه مصنف **جواب** په قلنا سره کوي چي یاخو په ظاهره حرف دي خو دا قائم مقام دادعوا و اطلب دي یعني دا د تخفیف او اختصار د پاره په یا بدل شوي دي او ادعوا و اطلب دوا ړه افعال دي

**قاعده** حرف کله کله دفعل قائم مقام گرزي او بلکه کله کله دټولي جملی قائم مقام هم راځی لکه یو سړي او وایي چي أجاء زَيْدٌ ،آیا زید راغی ،نو مخاطب جواب په نَعَمْ سره کوي او نَعَمْ حرف دي او قائم مقام د جملي په ځاي راغلي دي ځکه چي په جواب کي: جاءني زَيْدٌ زید ما ته راغی.

**فلنشرع فی الاقسام الثلاثة**: پس مونږه اراده د شروع او کړه که حرف شروع تري مراد واخلو نو دو دي نه په مراد متصله شروع دیو بیان په بل بیان پسی راشي او دا هم ممکنه ده چي مصنف کله دمقدمی نه فارغ شوي وي او لگه دمه بي یکښ کړی وی یا څه چایي وغیره ئي په کي څکلی وي نو احتراز زراغی دمتصل شروع نه

**اقساماً ثلاثة**: ددې نه مراد اسم ، فعل او حرف دي يعني داقسام ثلاثه تفصيل او اقسام وغيره.

**والله الموفق والمعين**: الموفقُ دباب تفعيل نه داسم فاعل صيغه ده په معنى توفيق ورکولو والا. او المعينُ دباب افعال نه داسم فاعل صيغه ده په معنى مدد کولو والا

**ترکيب**: **فاء** تفصيليه **ان** حرف شرط **قيل** فعل **هو** ضمير پکښې مستتر هغه ئې نائب فاعل نه دا جمله فعليه قول **قد** حرف تحقيق **نوقض** فعل ضمير دهو پکښې مستتر هغه نائب فاعل **بالنداء** جار مجرور دا ظرف لغوه تعلق نيسي نوقض پورې نوقض فعل سره دنائب فاعل نه او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه مقوله دقول ، قول سره دمقوله نه دا جمله فعليه خبريه. **نحو** مضاف **يـاء** حرف ندا چې قايمقام د ادعوا ده ادعوا فعل ضمير پکښې مستتر دي چې تعبير ترينه په انا سره کېږي هغه فاعل، **زيد** منادى مفعول به، ادعوا فعل سره دفاعل نه او سره دمفعول به نه دا جمله فعليه مضاف اليه لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا محذوفه چې مثاله ده، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه.

**قلنا** فعل فاعل دا قول شو ، **حرف** مضاف **النداء** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مبتدا شوه **قائم** صيغه اسم فاعل ضمير مستتر پکښې هغه فاعل **مقام** مضاف **ادعوا** معطوف عليه **ولو** عاطفه **اطلب** معطوف معطوف عليه سره دمعطوف نه دا مضاف اليه شو دمقام مضاف لپاره مضاف سره دمضاف اليه نه دا مفعول فيه شو دقايمقام ، قايم صيغه داسم فاعل سره دفاعل او سره دمفعول فيه نه دا شبه جمله خبر لپاره دمبتدا ، مبتدا سره دخبر نه دا مقوله شوه لپاره دقول قو سره دمقولى نه دا جمله فعليه شوه **ولو** عاطفه **هو** مبتدا **الفعل** خبر. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه **فاء** تفصيليه **لا** نفى الجنس **نقض** اسم **عليه** جار مجرور په اعتبار د متعلق سره خبر دلا ، لا سره داسم او سره دخبر نه جمله اسميه خبريه، **ولو** عاطفه **لا** ظرف متضمن ده معنى د شرط لره. **فرغنا** فعل فاعل **من** جاره **المقدمة** مجرور ، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغوه تعلق نيسي فرغنا پورې. فعل سره دفاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه فعل شرط **فاء** جزائيه **نشرع** فعل فاعل **فى** جاره **الاقسام** موصوف **الثلث** صفت موصوف سره دصفت نه دا مجرور کيږي دفي جاره ، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغوه متعلق شو نشرع پورې ، نشرع فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جزاء شوه، شرط سره دجزاء نه جمله فعليه شرطيه، **ولو** عاطفه **الله** مبتدا **الموفق** معطوف عليه **ولو** عاطفه **المعين** معطوف ، معطوف سره دمعطوف عليه نه دا خبر شو دمبتدا ، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

# تقسم داسم په خاکه اجمالی سره

اَلْقِسْمُ الْاَوَّلُ فِی الْاِسْمِ وَقَدْ مَرَّ تَعْرِیْفُهٗ وَهُوَ یَنْقَسِمُ اِلَی الْمُعْرَبِ وَالْمَبْنِیِّ فَلْنَذْكُرْ اَحْكَامَهٗ فِیْ بَابَیْنِ وَخَاتِمَةٍ اَلْبَابُ الْاَوَّلُ فِی الْاِسْمِ الْمُعْرَبِ وَفِیْهِ مُقَدِّمَةٌ وَثَلَاثَةُ مَقَاصِدَ وَخَاتِمَةٌ اَمَّا الْمُقَدِّمَةُ فَفِیْهَا فُصُوْلٌ (اَرْبَعَةٌ).

**ترجمه** قسم اول په بیان د اسم کښی دی او په تحقیق سره د دی تعریف تیر شوی او دا منقسم کیږی معرب او مبنی طرف ته. پس مونږ د هغی احکام لره په دوو بابونو او یوی خاتمی سره بیانوو باب اول په بیان د اسم معرب کښی دی او په دی کښی یوه مقدمه او دری مقاصد او یوه خاتمه ده، پس مقدمه کښی یو څو فصله دی (یعنی څلور فصله دی).

**تشریح** په مصنف دا **اعتراض** دی چی بحث داسم یې ولی مقدم کړو په فعل او په حرف باندی **جواب** یې دا دی چی څنګه په راندی په اجمال کې مقدم ووهم دغسې په تقسیم او تفصیل کې مقدم کړی شو اود تقدیم وجه یې داده چی اسم مستقل فی الافاده دي یعني په فائده کې مستقل ده چې دوه اسمین راجمع کړی شي نوفائده تامه ورکوي اوفعل اوحرف مستقل فی الافاده نه دي

**وقدمرّتعریفه**: پدی سره مصنف یو **اعتراض** دفعه کوي هغه داچي تقسیم دیو شي دافرع دتعریف وي اوتعریف اصل دي اوکوم شي چي منقسم کیږي نودهغه شي تعریف کول ضروري وي څکه چې تعریف اصل دي نومصنف ښکیله **جواب** کوي چي تعریف مخکي تیرشوي دي اوهرځایې تعریف ذکرکول طوالت دي

**وینقسم الی المعرب والمبنی**: اسم منقسم دي دوه قسمینونه یومعرب دي اوبل مبنی اوددوارو اقسامو تفصیل به په دوه بابونواویوه مقدمه کي ذکرکیږي په اولنی باب کي بیان دمعرب اوپه دویم باب کي بیان دمبنی دي اوپه مقدمه کي احکام مشترکه ذکرکیږي.

**الباب الاول فی الاسم المعرب**: دباب اول اجمالی خاکه مصنف ذکرکوي چې دااول باب په بیان داسم معرب کې دي اودا باب مشتمل دي په یوه مقدمه اوپه ثلاثة مقاصد (مرفوعات ، منصوبات ، مجرورات) اوپه خاتمه اوهرچې مقدمه ده په دیکې څلور فصله دي په فصل اول کې داسم معرب تعریف دي اوپه فصل ثاني کې داسم معرب احکام اوپه دریم کې یې اقسام اوپه څلورم فصل کې بیان دمنصرف اوغیرمنصرف دي.

**سوال** معرب اومبنی دواړه داسم مستقل قسمونه دي اوبه قسمیت کي دواړه یودي نوڅه وجه ده چي مصنف معرب مقدم کړو په مبنی باندي داخوتر جیح بلامرجح لازمه شوه.

**جواب** ددی دېره دوه وجې دي. ۱) معرب محل داعراب لفظی دی اومبنی محل داعراب تقدیری دي او اعراب لفظی اصل دی داعراب تقدیری نه نو محل داعراب لفظی هم اصل شو دمحل داعراب تقدیری نه ۲) دمعرب په اقسامو کي بومنصرف دی اودمنی دباره نشته او اصل په اسماؤکي انصراف دی نوګویا اسم معرب مشتمل دی په دوه اصلونو باندي نوځکه مصنف مقدم کړی دی.

**ترکیب القسم** موصوف **الاول** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مبتدا شوه. **فی** جاره **الاسم** مجرور. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ثابت پوری. ثابت صیغه داسم فاعل ضمیر دفاعل او سره دمتعلق نه دا خبر شو دمبتدا مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **ولو** عاطفه **قد** حرف تحقیق **مَر** فعل **تعریف** مضاف **ه** ضمیر مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا فاعل شو. فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه خبریه شوه. **ولو** عاطفه **هو** مبتدا **ینقسم** فعل ضمیر **دهو** فاعل **الی** جاره **المعرب** معطوف علیه **ولو** عاطفه **المبنی** معطوف. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ینقسم پوری. ینقسم فعل فاعل او سره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبر دمبتدا شو مبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه. **فاء** تفصیلیه **لام** ابتدائیه **نذکر** فعل فاعل **احکامه** مضاف مضاف الیه دا مفعول به شو **فی** جاره **بابین** معطوف علیه **ولو** عاطفه **خاتمة** معطوف. معطوف سره دمعطوف علیه نه دامجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو نذکر پوری. نذکر فعل فاعل مفعول به او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه. **الباب** موصوف **الاول** صفت. موصوف سره د صفت نه دا مبتدا شوه **فی** جره **الاسم** موصوف **المعرب** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مجرور شو دجار. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوه تعلق نیسی ثابت پوري. ثابت صیغه داسم فاعل ضمیر دهو فاعل او سره دمتعلق نه دا شبه جمله خبر کیږي دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **ولو** عاطفه **فیه** جار مجرور د خبر مقدم شو. **مقدمة** معطوف علیه **ولو** عاطفه **ثلاثة** مضاف **مقاصد** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا معطوف اول شو. **ولو** عاطفه **خاتمة** معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مبتدا مؤخر شو. خبر مقدم سره دمبتدا مؤخر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**اما** حرف شرط **المقدمة** مبتدا **فاء** حرف جزا **فی** جاره **ها** مجرور. جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره خبر مقدم شو. **فصول** موصوف **اربعة** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مبتدا

مؤخر شوه، خبر مقدم سره دمبتدا مؤخر نه دا جمله اسميه خبريه خبريه دمبتدا شو، مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه

## تعريف د اسم معرب

**فَصْلٌ: فِيْ تَعْرِيْفِ الْإِسْمِ الْمُعْرَبِ وَهُوَ كُلُّ اِسْمٍ رُكِّبَ مَعَ غَيْرِهِ وَلَا يُشْبِهُ مَبْنِيَّ الْأَصْلِ أَعْنِيْ الْحَرْفَ وَالْأَمْرَ الْحَاضِرَ وَالْمَاضِيَ نَحْوُ زَيْدٌ فِيْ قَامَ زَيْدٌ لَا زَيْدٌ وَحْدَهُ لِعَدَمِ التَّرْكِيْبِ وَلَا هٰؤُلَاءِ فِيْ قَامَ هٰؤُلَاءِ لِوُجُوْدِ الشِّبْهِ وَيُسَمّٰى مُتَمَكِّنًا:**

**ترجمه** . فصل دي بيان د تعريف داسم معرب كي او معرب هر هغه اسم دي چي مركب وی سره دخپل عامل نه، او نه وي مشابه دمبنی الاصل سره مراد خما بل سره حروف، امر حاضر او ماضی دي لكه زيد په قام زيدٌ كښ نه ځان له زيد دوجه د نه مركب والی نه او نه هؤلاء په قام هؤلاء كي دوجه د مشابهت نه او معرب مسمی كړی شوی ده په متمكن سره

**لفظي تشريح دَمعرب**: معرب داعراب نه ماخوذ دي او اعراب په معنی دَ ظاهر كردن سره نو معرب هم حركات ثلاثه به كلمه كي ظاهره وي معرب صيغه دباب افعال نه ظرف مكان دي په معنی جاي محل الاعراب محل داعراب

**سوال** معرب چي ماخوذ د اعراب نه دي نو گويا اعراب اصل دي او معرب فرع ده او اصل مقدم وي په فرع باندي

**جواب** اسم معرب دلالت په ذات، دكلمی، باندي كوي او اعراب دلالت په صفت دكلمی باندي كوي او صفت مؤخروي او ذات يعني موصوف مقدم وي نو ځكه معرب مقدم شو داسم معرب اصطلاحي تعريف مصنف ذكر كړو او دغه تعريف دمعرب ددوه جزياتو نه مركب دي يعني دوه قيده په كي راغلل يو قيد وجودي او بل قيد عدمي

**قيد وجودي**: دقيد وجودي نه مراد دادي چي معرب به مركب وي په داسي تركيب كي چي متحقق وي دخپل عامل نه

**قيد عدمي**: قيد دعدم ديته وايي چي معرب عدم مشابه دمبنی الاصل وي، يعني دمبنی الاصل سره مشابه نوي، مبنی الاصل دری دي جمله حروف. مر حاضر. ماضی، لكه مثال ضرب زيدٌ په زيد باندي دادواړه جزونه متحقق شوي دي يعني ضرب فعل عامل رافعه دي چي زيد فاعل ته يې رفع وركړيده نو زيد په تركيب كي دعامل رافعه سره متحقق دي او دمبنی الاصل سره مشابه

نه دي پس دادواړه جزونه چې کله مبني شي نوهلته به معرب وي کچري یوتري خارج شي نوبیابه مبني وي. لکه ددواړو دخروج دپاره مفصل مثالونه دادي. داول جزیعني قید دخروج دپاره مثال لکه غُلام زید (په سکون دمیم اوپه سکون ددال سره) دااګرچې په ترکیب کې واقع دي لیکن دخپل عامل سره په ترکیب کې متحقق نه دي اوعدم مشابه دمبني الاصل سره نه دي لیکن عامل ورسره متحقق نه دي نودامبني دي اوچې کله ورسره متحقق عامل ذکرشي نوبیابه معرب شي لکه جاء ني غلام زید. ددویم جزدخروج دپاره مثال لکه جاء نی هٰؤلاء دامرکب دي سره دخپل عامل نه لیکن مشابه دمبني الاصل سره دي څکه چې هٰؤلاء داسماء اشاراتونه اسم اشاره ده اودغه تول دمبني الاصل سره مشابهت لري څکه چې دامشابه دي دحروفوسره به محتاج والي کې یعني څنګه چې حروف محتاجه دي ضم دضمیمې ته نودغه شان اسم اشاره محتاج دي دمشارالیه ته نوپس دامبني دي اګرکه مرکب دي سره دخپل عامل نه خودوبم به کې مشابهت دمبنې سره راغی.

**ویسمّی متمکّنًا:** اوسمّی کړی شوي دي دا اسم معرب په اسم متمکن سره یعني دویم نوم دمعرب اسم متمکن دي متمکن دَ تمکن نه دی دباب تفعّل نه داسم فاعل صیغه ده په معنی جایې دهنده خایې ورکولووالا نوګویامعرب هم حرکاتوته خایې ورکوي نوپس متمکن معرب دي اوامکن اسم معرب غیرمنصرف ته وایې نومتمکن عام دي اوحرکات ثلاثه پرې جاري کیږي اوامکن خاص دي اوکسره اوتنوین نه قبلوي اوددي په خلاف غیرمتمکن دي چې هغه مبني دي نومصنف څکه اشاره اوکړه چې معرب ته متمکن هم وایې

**سوال** دمعرب دتعریف نه خبراومبتدا خارج شول څکه چې دوي په ترکیب کې دعامل سره نه وي لکه زیدٌ مبتدااوقائم خبردي نوپه دوی کښې خوعامل نشته

**جواب** عامل په دوه قسمه دي یوعامل لفظي بل عامل تقدیري

**عامل لفظي:** داهغه عامل دي چې مذکورفی الکلام وي لکه جاء زیدٌ.

**عامل معنوي:** داهغه عامل دي چې مذکورفی الکلام نه وي لکه زید قائمٌ پدې کې عامل معنوي دی چې ابتداء ده چونکه عامل معنوي سه اثرکې دعامل لفظي پشان دي نودوجې دتاثیرنه دَا هم اعراب بدلوي پس چې څه حکم چې دلفظي ده هغه حکم به دمعنوي وي که عامل لفظي په ترکیب کې حقیقتًاواقع کیږي نومعنوي به حکمًاواقع کیږي نوپس په تعریف دمعرب کې ترکیب په معنی دعَم دي که حقیقي وي اوکه حکمي وي نوپس مبتدااوخبردواړه داخل شوپه تعریف دمعرباتوکې

## شعر

معرب آن باشد که گردد بر بار  مبنی آن باشد که ماند برقرار

**ترکیب**: **فصل** مبتدا **فی** جاره **تعریف** مضاف **الاسم** موصوف **المعرب** صفت ، موصوف سره وصفت نه دا مضاف الیه شو د تعریف مضاف لپاره، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور شو د جار، جار سره د مجرور نه دا ظرف مستقر په اعتبار د متعلق سره خبر کبري د مبقدا ، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه شوه.

**ولو عاطفه هو** مبتدا **کل** مضاف **اسم** موصوف **رکب** فعل **فاعل** فاعل **مع** مضاف **غیر** مضاف الیه مضاف **ه** ضمیر مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه شو د غیر مضاف لپاره، غیر مضاف سره د مضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه شو د مع مضاف لپاره مع مضاف سره د مضاف الیه نه دا مفعول فیه شو د رکب لپاره. رکب فعل فاعل سره د مفعول فیه نه دا صفت شو د موصوف، موصوف سره د صفت نه دا مضاف الیه شو د کل مضاف لپاره. مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر شو د مبتدا مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **ولو عاطفه لا نافیه یشبه** فعل ضمیر ده هو پکښې فاعل **مبنی** مضاف **الاصل** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا مبیّن شو اعني فعل ضمیر د انت پکښې فاعل **الحرف** معطوف علیه **ولو** عاطفه **الامر** موصوف **الحاضر** صفت. موصوف سره د صفت نه دا معطوف اول شو . **الماضی** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفینو نه دا مفعول به شو د اعني ، اعني فعل فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعلیه مبَیِّن شوه. مبیّن سره د مبین نه دا مفعول به شو دلا یشبه لپاره . لا یشبه فعل سره د فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

**نحو** مضاف **زید** ذوالحال **فی** جاره **قام** فعل **زید** معطوف علیه **لا** عاطفه **زید** ذو الحال **وحده** مضاف مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا حال شو د ذوالحال . حال سره د ذوالحال نه دا معطوف شو . معطوف سره د معطوف علیه نه دا فاعل شو د قام فعل. فعل سره د فاعل نه دا مجرور شو د فی جاره جار سره د مجرور نه دا په اعتبار د متعلق سره حال کبري د ذو الحال ، حال سره د ذوالحال نه دا مضاف الیه کبري د نحو مضاف. مضاف سره د مضاف الیه نه دا مبتدا شوه. **لام** جاره **عدم** مضاف **الترکیب** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور کبیري د جار، جار سره د مجرور نه دا په اعتبار د متعلق سره خبر شو د مبتدا، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **ولو عطفه هولاء** ذوالحال **فی** جاره **قام** مجرور. جار سره د مجرور نه دا حال شو د ذوالحال ، حال د ذوالحال نه دا مبتدا شوه **لام** جاره **وجود** مضاف **الشبه** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا

مجرور کیږي دجار. جار سره دمجرور نه دا خبر دمبتدا شو. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه شوه. یسمی فعل فاعل متمکن مفعول به فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه شوه.

## حکم المعرب

فَصْلٌ: وَحُكْمُهُ أَنْ يَخْتَلِفَ اٰخِرُهُ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ اِخْتِلَافًا لَفْظِيًّا نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَرَأَيْتُ زَيْدًا وَمَرَرْتُ بِزَيْدٍ اَوْتَقْدِيْرِيًّا نَحْوُ جَاءَنِيْ مُوْسٰى وَرَأَيْتُ مُوْسٰى وَمَرَرْتُ بِمُوْسٰى. اَلْاِعْرَابُ مَا يَخْتَلِفُ اٰخِرُ الْمُعْرَبِ كَالضَّمَّةِ وَالْفَتْحَةِ وَالْكَسْرَةِ وَالْوَاوِ وَالْاَلِفِ وَالْيَاءِ:

**ترجمه** دویم فصل په بیان او حکم دمعرب دادی چي آخرئي مختلف کیږي په سبب داختلاف دعواملو سره که هغه اختلاف لفظي وي لکه جاءني زیدٌ ورایت زیداً ومررت بزیدٍ اختلاف او که تقدیري وي. تقدیري لکه جاءني موسی ورایت موسی ومررت بموسی (فصل) اعراب هغه (حرکت یاحرف، دي چي په هغې سره مختلف کیږي اخردمعرب که (اعراب حرکتي) ضمه اوفتحه اوکسره او یا (اعراب حرفي) واواو الف اوپا سره

**تشریح** په حکمه کې ضمیر معرب طرف ته راجع دي اوباختلاف العوامل کي باسببیه ده او اختلافا لفظیاً مفعول مطلق دي په معرب پوري نوپس اثرمرتبه دمعرب دادي چي مختلف کیږي به آخرده په سبب داختلاف دعواملو سره اوداختلف کیدل به یالفظاً وي یاتقدیراً نو اختلاف لفظي په دوه قسمه دي یو اختلاف لفظي حقیقتاً دي اوبل اختلاف لفظي حکماً دي

**اختلاف لفظي حقیقتاً:** داهغه اختلاف دي چي معرب دري واړه حالتونه به جُداجُداوي (ضمه فتحه کسره)

**اختلاف لفظي حکماً:** داهغه اختلاف دي چي یو حالت دبل سبعداري کوي نودیته حکماً وایي لکه مثال په حالت جري غیرمنصرف کي به پری نصب وي لکه احمدُ جاءني احمدُ ورایت احمدَ ومررت باحمدَ حالت رفعي بي مرفوع دي اونصبي اوجری بي دواړه منصوب دي.

**اختلاف تقدیري:** داهغه اعرابات دي چي داسم معرب په آخر کښې نه ظاهریږي اوتقدیراًیعني پټ وي لکه مذکورمثال (موسی) ددې د نه ظاهریدووجه داده چي دکومو اسمائیه آخرکي چي الف مقصوره راغلي وي نو اعرابات به پری نه راځی ځکه چي الف اعرابات نه قبلوي اووي به معرب.

**سوال** لفظ دحکم مضاف ده ضمیرته او ه ضمیرمعرب ته راجع دي اودحکم نه مراداثرمرتبه دي

تعریف دمعرب به داسې شي چې اثرمرتبه دمعرب دادی چې آخربه یې بدلیږی په اختلاف دعواملوسره نواثرمرتبه معرب ته غیرصحیح دي ځکه چې اختلاف دآخردعامل اثردي

**جواب** په عبرت کې تقدیردي حکمأله ان یختلف. نومعنی به یې داشي اثرمرتبه دده دپاره اختلاف دعواملو دي یعني اثردعواملو په معرب ثابتیږی نوځکه د ضمیرراجع دي معرب ته.

**سوال** العوامل جمع دعاملٌ دی او عوامل کم ازکم په دربو دلالت کوي ځکه چې داصیغه دجمعې ده او جمع د دربونه کم نه وي نومعنی به داسې شي چې اثرمرتبه دمعرب دادي چې آخربه یې مختلف کیږي په اختلاف دعواملو ثلثه سره او دامحال ده ځکه چې د یومعرب سره دری عوامل نه شي جمع کیدي.

**جواب** په العوامل باندي الف لام داخل دي او قاعده داده چې کله په جمع الف لام داخل شي نو دهغی جمعیت باطله وی یعني ختموی یې اویابه تري مراد جنس وي او جنس به ځنګه دکثیروافرادو دپاره راځي دغه شان دواحد دپاره هم راځي او دینه الف لام عهد خارجي وایې، په ضمن دیوفردکې، نوپس دالعوامل نه مراد یو عامل دي چې آخردمعرب لره مختلف کوي۔

**الاعراب** دایوجُدا فصل دي. په الاعراب مابه کې ماعامه ده او مراد تري حرکت او حرف دي نواعراب هرهغه حرف یاحرکت ته وایې چې په هغی سره آخردمعرب مختلف کیږي نو اعراب په دوه قسمه دي یو اعراب بالحرف او بل اعراب بالحرکت

**ترکیب:** فصل ای هذا فصل ثان هذا مبتدا فصل موصوف ثان صفت، موصوف سره دصفت نه دا خبر شو دمبتدا . مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه **ولو عطفه حکم** مضاف ه ضمیر ئی مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شو لن نصبه مصدریه **یختلف** فعل آخره مضاف مضاف الیه دا فاعل شو لپاره دیختلف باء جاره **اختلاف** مضاف **العوامل** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دباء جاره، جار سره دمجرورنه دا ظرف لغو متعلق نبسی یختلف پوري، **اختلافاً** موصوف **لفظیاً** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مفعول مطلق شو دفعل. فعل سره دفاعل او سره دمتعلق او سره دمفعول مطلق نه دا په تاویل دمصدر سره خبر شو دمبتدا . مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه. **نحو** مضاف جاء فعل **نون** وقایه ی ضمیر دمتکلم مفعول به **زید** فاعل فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف علیه، **ولو عاطفه رایت** فعل فاعل ، **زیدا** مفعول به فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو. **ولو عاطفه مررت** فعل فاعل **بزید** جار مجرور دا متعلق شو مررت پوري، مررت فعل فاعل سره دمتعلق نه دا معطوف ثاني شو معطوف سره

دمعطوفينو نه دا مضاف اليه شو لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا محذوفه چي مثاله ده. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه. **اوتقديريا** عطف على لفظيا نحو مضاف جاء فعل نون وقايه ی ضمير دمتكلم مفعول به **موسى** فاعل فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه دامعطوف عليه شو **ولو عاطفه رايت** فعل فاعل **موسى** مفعول به، فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه دا معطوف اول شو **ولو عاطفه مررت** فعل فاعل **با**، جاره **موسى** مجرور . جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت پوري. مررت فعل فاعل اوسره دمتعلق نه دامعطوف ثاني شو ، معطوف سره دمعطوفينو نه دا مضاف اليه شو لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو دمبتدا چي مثاله ده مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه **الاعراب مبتدا ما** موصوله يا موصوفه **به** جار مجرور دا متعلق شو يختلف پوري. **يختلف** فعل ضمير دهو پكښي فاعل اخر مضاف **اعراب** مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مفعول به شو ديختلف . فعل فاعل مفعول به او سره دمتعلق نه دا صله شوه دموصول ،موصول سره دصله نه داخبر شو دمبتدا . مبتدا سر دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه .

**كاف** په معنی دمثل سره مضاف **الضمة** معطوف عليه، **والفتحة** معطوف اول **والكسرة** معطوف ثاني **والواو** معطوف ثالث **والالف** معطوف رابع **والياء** معطوف خامس معطوف سره دمعطوفاتو خسمه نه دا مضاف اليه شو دمثل مضاف لپاره. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو دمبتدا محذوفه چي مثاله ده مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

## داعراباتو تقسيم او تفصيل

**اعراب بالحرف**: داهغه حروف دي چي دمعرب په آخركي راځي اودادري حرفه دي واو ، الف ، يا.

**اعراب بالحركت**: داهغه اعراب دي چي دمعرب په آخركي راځي اودادري حركات دي (ضمه ، فتحه ، كسره) اصطلاحات دحركات ثلاثو (١) ضمةٌ، فتحةٌ ،كسرةٌ (٢) رفع ، نصب ، جر (٣) ضمٌ ، فتحٌ ، كسرٌ فرق پكښي دادي چي (٢) رفع نصب اوجردا دريواړه مختص دي په معرباتو پوري (٣) ضمٌ، فتحٌ، كسرٌ دادري واړه مختص دي په مبنياتو پوري (١) او ضمةٌ، فتحةٌ ،كسرةٌ دادري واړه په دواړوكي مشترك استعماليږي (مبنيات ومعربات)

وَاَعْرَابُ الْإِسْمِ عَلٰى ثَلَاثَةِ اَنْوَاعٍ رَفْعٌ وَنَصْبٌ وَجَرٌّ وَالْعَامِلُ مَا بِهٖ رَفْعٌ اَوْنَصْبٌ اَوْجَرٌّ وَمَحَلُّ الْإِعْرَابِ مِنَ الْإِسْمِ هُوَالْحَرْفُ الْاَخِيْرُ مِثَالُ الْكُلِّ نَحْوُقَامَ زَيْدٌ فَقَامَ عَامِلٌ وَزَيْدٌ مُعْرَبٌ وَالضَّمَّةُ إِعْرَابٌ وَالدَّالُ مَحَلُّ الْإِعْرَابِ وَاعْلَمْ اَنَّهُ لَايُعْرَبُ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ اِلَّا الْإِسْمُ الْمُتَمَكِّنُ وَالْفِعْلُ

الْمُضَارِعُ وَسَيَجِيُّ حُكْمُهُ فِي الْقِسْمِ الثَّانِي اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى:

**ترجمه**: د اسم اعراب په درې قسمه دې رفع، نصب، جر او عامل هغې ته وئیلې شي چه د ده د وجه نه رفع، نصب، جر راشي او په اسم کښې محل د اعراب آخري حرف وي د تولو مثال قَامَ زَيْدٌ دی. قَامَ عامل ده او زید معرب ده او ضمه اعراب ده او دال په کښې محل د اعراب دی پوهه شه چه په کلام د عربو کښې د اسم متمکن او فعل مضارع نه علاوه معرب نشته او د فعل مضارع حکم به ان شاء الله په قسم ثاني کښې راشي

**تشریح** مصنف د دې عبارت نه مخکښې د اعراب تقسیم کړی دی چې اعراب په دوه قسمه دي یو اعراب بالحرف ده چې واو الف یاء دي او بل اعراب بالحرکت دی چې ضمه فتحه کسره،

**وجه تسمیه**: ضمي ته ضمه ځکه وایي چې دادانضمام د شفتینو نه اداکیږي او فتحي ته فتحه ځکه وایي چې دا په وخت د اداکولو کې د شونډو دانفتاح اوکلاؤتیا نه اداکیږي او کسرې ته کسره ځکه وایي چې دا په وخت د اداکولو کې د شفت سُفلا دانکسار او ښکته والی نه اداکیږي

**الاعراب الاسم** (معرب) اعراب د اسم معرب به درې قسمه دي مصنف لفظ د انواع ذکر کړ

**سوال** انواع د یردي افراد وته ویلې شي او اعراب فقط درې دي نو دا نوا ع به ځایې اقسام پکاردي یا فقط ثلاثه هم کافي کیدي شي انواع لفظ غیرصحیح دي

**جواب** نوعه هغه منقسم شي ده چې د ماتحت نور اقسام وي نو دا دري واړه انواع دي، رفع نصب جر) او دو دوبي د پاره نور مختلف اقسام دي هغه دا دي رفع کله په شکل د ضمې راځي او کله په شکل د واو کې راځي او کله په شکل د ي، کې هم راځي دغه شان فتحه په شکل د زید کې راځي او کله علی هذا القیاس او جر کله په شکل د زید کې راځي او کله عَلٰی هٰذَا الْقِیَاس۔

**وجه تقسیمي داده** رفعې ته رفع ځکه وایي چې رفع په لغت کې بلندۍ ته وایي او دا حرکت قَوِیّه دي او مرتبه یې هم عالي او اوچته ده په خیلو اخوینو باندې فتحې ته فتحه ځکه وایي چې نصب په لغت کې ولاړ والی ته وایي نو دنصب په اداکښې کې هم دواړه شونډې اُدریږي نو ځکه ورته نصب وایي جرته جر ځکه وایي چې جر په نعت کې راځکلو ته وایي او فعل خپل معمول ته د حرف جرد وجې نه راخکلې کیږي په رفع، نصب او جرباندې درېواړه اعرابات جاري کیدي شي (رفعٌ و نصبٌ و جرٌّ) که مرفوع او ویلې شي نو بناء بر خبریت به مرفوع شي او مبتدا به د هر یو نه مخکښې مقدره وي نو تقدیر د عبارت به داسې شي ثلاثة انواع، احدها، رفعٌ و، ثانیها، نصبٌ و ثالثها،

جرٌ که منصوب او وبلی شي نو اعنی صیغه دجمع متکلم مُقدّره به نري مخکي راشي او تقدیرېدوا رنګی شي (اعني) رفعاً ونصباً وجراً که مجرور او وبلی شي نو بیدي حالت کي به بدل واقع شي دانواع نه او قاعده داده چي دبدل او مبدل منه اعراب به یو وي نو ثلاثة انواع رفع ونصب وجر به شي

**سوال** اعراب دکلمې په آخرکي ولی راځي په اول او وسط کي ولی نه راځی ؟

**جواب** وجه یې داده چي اعراب دکلمې دپاره بمنزله صفت دي یعنې کلمې لره ظاهره وي او داقاعده ده چي صفت همیشه مؤخروي په موصوف باندې یعنې کلمه بمنزله موصوف ده او اعراب یې صفت دي او صفت مؤخروي نو ځکه اعراب به اول او وسط کي نه راځي

**تعریف دعامل** عامل هغه دي چي به سبب دده سره رفع . نصب او جر به آخر د معرب کي راځي

**سوال** تعریف دعامل جامع نه دي افراد و به ځکه چي عوامل جازمه نري خارج شول اودهغی اثرجزم دي

**جواب** مراد دعامل نه عامل داسم دي او عوامل جازمه مختص دي به فعل پورې اودلته فقط اسم مراد دي اودلیل پرې قرینه ده یعنې قرینه دمعرب دبحث ده چي عامل داسم معرب مراددي مصنف دیتولو امورو دپاره صرف یو مثال ذکرکړی دی قام زیدٌ بیدي کي قام عامل رافعه دي ځکه چي زید ته یې رفع ورکړی ده او زید معرب دي ځکه چي رفعه پرې په سبب دعامل راغلی ده او اعراب یکې رفع ده اومحل داعراب په کي دال حرف آخردي

**وَاعْلَمْ اَنّه:** بیدي عبارت سره مصنف تنبیه ورکوي چي معرب په کلام دعربو کي دوه دي یو اسم متمکن دي چي په ترکیب کي واقع شي او دویم فعل مضارع بغیردنون التاکید ثقیله دخفیفه اوبغیردنون بنایې نه چي جمعي په صیغوکي دي پس په تمام کلام عرب کي معربات فقط دوه دي اونورټول مبنیات دي

**شعر**

یارہ مبنی دي زه معرب یم مبنی په خای وي معرب تل تکری خورینه

**ترکیب: ولو** عاطفه **اعراب** مضاف **الاسم** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه، **على** جاره **ثلاثة** عدد مبهم ممیز مضاف **انواع** تمیز مضاف الیه. ممیز مضاف سره دتمیز مضاف الیه نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره خبر شو دمبتدا . مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **رفع** خبر ده دمبتدا محذوفه چي **احدها** ده احدها مضاف مضاف الیه دا مبتدا شوه. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه معطوف علیه **ولو** عاطفه **نصب** خبر دمبتدا

محذوفه ده چې ثانیها ده، ثاني مضاف ها ضمير مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه معطوف اول شو. **ولو عاطفه جر** خبر دمبتدا محذوفه ده چې ثالثها ده ثالث مضاف ها ضمير مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه، مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه معطوف ثاني شو. معطوف سره دمعطوفینو نه دا جمله اسمیه خبریه معطوفه شوه **ولو عاطفه العامل مبتدا ما موصوله** یا موصوف **به** جار مجرور دا ظرف مستقر تعلق نیسي حصل فعل پوري حصل فعل هو ضمير فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبر مقدم **رفع** معطوف علیه **او عاطفه نصب** معطوف اول **او عاطفه جر** معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مبتدا مؤخر شوه خبر مقدم سره دمبتدا موخر نه دا جمله اسمیه صله شوه لپاره دما موصوله موصول سره دصلې نه دا خبر شو دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**ولو عاطفه محل** مضاف **الاعراب** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه. **من** جاره **الاسم** مجرور. جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره خبر کبري دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **هو مبتدا الحرف** صفت. موصوف سره دصفت نه دا خبر کبري دمبتدا، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **هو مبتدا الحرف** موصوف **الاخیر** صفت. موصوف سره دصفت نه دا خبر کبري دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **مثال مضاف الكل** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مبتدا. **نحو** مضاف **قام** فعل **زید** فاعل. فعل سره دفاعل نه دا مضاف الیه شو دمضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه

**قاء** تفصیلیه **قام** فعل **فاعل** فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه خبریه شوه **ولو عاطفه زید مبتدا معرب** ئي خبر. مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه. **ولو عاطفه الضمة مبتدا محل** مبتدا **اعراب** خبر. مبتدا سره دخبر نه دا بیا خبر جوړیږي دمبتدا، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه **ولو عاطفه الدال مبتدا محل** مضاف **الاعراب** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو دمبتدا، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **ولو عاطفه اعلم** فعل **انت** ضمير فاعل **ان** حرف از حروف مشبه بالفعل **ه** ضمير اسم **لا** نافیه **یعرب** فعل فاعل **في** جاره **کلام** مضاف **العرب** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دفي جاره، جار سره دمجرور نه دا ظرف لغوه متعلق نیسي **لا یعرب** پوري. **لا یعرب** فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا خبر شو لپاره دان. ان سره د اسم او سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه مفعول به چې قائمقام دمفعولینو ده لپاره داعلم. اعلم فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه

انشائیه شوه.

**الا** حرف استثنی **الاسم** موصوف **المتمکن** صفت، موصوف سره دصفت نه دا معطوف عل
شو. **ولو** عاطفه **الفعل** موصوف **المضارع** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مستثنی مفرغ ش
دمستثنی منه مقدري لپاره چې شئ من الاشیاء ده یا مستثنی مفرغه سره دمستثنی منه مقدري نو
نائب فاعل شو دلا یعرب **ولو** عاطفه **س** للتقریب **یجلی** فعل **حکمه** مضاف مضاف الیه دا فاعل شو
جاره **القسم** موصوف **الثانی** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مجرور شو دجار، جار سره دمجرور نه
داظرف لغوه تعلق نیسی یجئ پوري، یجئ فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه جواب
مقدم شوه **ان** حرف شرط **شاء** فعل **الله** ذوالحال **تعالی** حال. حال سره د ذوالحال نه دا فاعل شو دشاء
فعل. شاء فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه فعل شرط فعل شرط سره دجزاء مقدم نه دا جمله فعلیه
شرطیه شوه.

# اعرابات المعرب

**فَصْلٌ**: فِيْ اَصْنَافِ اِعْرَابِ الْاِسْمِ وَهِيَ تِسْعَةُ اَصْنَافٍ:

**ترجمه** دا فصل په بیان د اقسامو د اعراب د اسم کښې ده اقسام د اعراب نهه دي

**تشریح** دا د مقدمې دریم فصل دی یدي کښې د اسم معرب د اعراباتو اقسام ذکر کیږي ددې نه مخکښې د اعراباتو تقسیم ضروري دی ځکه چې مبتدي اعراب اوپیژني نو د اسم معرب اعرابات اول په دوه قسمه دي (۱) اعراب لفظي (۲) اعراب تقدیري اعراب لفظي بیا په دوه قسمه دي (۱) اعراب لفظي بالحرکت (۲) اعراب لفظي بالحرف بیا هر واحد په دوه دوه قسمه دي (۱) بالحرکت حقیقي (۲) بالحرکت حکمي.




(۱) حقیقي (۲) حکمي په شکل کښې واضح دي

اعراب حقیقي دېته وايي چې په هر حالت کښې مستعمل اعراب وي یعني یو حالت بل حالت تابع نه وي

اعراب حکمي دېته وايي چې په هر حالت کښې مستعمل اعراب نه وي یعني یو حالت د بل حالت تابع وي. پس اسم متمکن، معرب، د اعرابو قبلولو په لحاظ سره په نهه قسمه دي اجمالي خاکه یې دا ده چې اول شپږ اقسام د اعراب لفظي دي او اخري درې اقسام د اعراب تقدیري

دي بيايـه اول شپږواقسـموكې اولنـي دري داعـراب لفظي بالحركت دي اوآخرى دري داعراب لفظي بالحرف دي اوبيادي دواړونه هرواحد داعراب حقيقي دي اوآخرى دوه داعراب حكمي دي.

**اصناف** داجمع دصنف ده اوقسم اونوع دادريواړه منحد بالذات اومغائربالاعتبار دي. صنف دامر خارج بـه اعتبار سره ويلى كيږي اونوع بـه اعتبارد ذات سره ويلى كيږي اوقسم اعم دي دصنف مثال لكه رومیٓ دنوع مثال لكه انسان اودقسم مثال حيوان دي يعني انسان قسم دحيوان دي.

**تركيب**: **فصل** مبتدا **في** جاره **اصناف** مضاف **اعراب** مضاف اليه مضاف **الاسم** مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دا بيا مضاف اليه كيږي. لپاره دمضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا بيا مضاف اليه كيږي لپاره دمضاف. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور كيږي دفي جاره جار سره دمجرور نه داظرف مستقر تعلق نيسي ثابتٌ پوري. ثابت صيغه داسم فاعل ضمير دهو فاعل اوسره دمتعلق نه دا خبر كيږي دمبتدا جي فصل ده. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه شوه. **واو** عاطفه **هي** مبتدا **تسعة** عدد مبهم مميز مضاف **اصناف** تميز مضاف اليه. عدد مبهم مميز مضاف سره دتميز مضاف اليه نه دا خبر واقع كيږي دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

# اعراب د اقسامو د اسم معرب

اَلْاَوَّلُ اَنْ يَكُونَ الرَّفْعُ بِالضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِالْفَتْحَةِ وَالْجَرُّ بِالْكَسْرَةِ وَيُخْتَصُّ بِالْمُفْرَدِ الْمُنْصَرِفِ الصَّحِيْحِ (۱)، وَهُوَ عِنْدَ النُّحَاتِ مَا لَا يَكُوْنُ فِيْ اٰخِرِهٖ حَرْفُ عِلَّةٍ كَزَيْدٍ وَبِالْجَارِيْ مَجْرَى الصَّحِيْحِ وَهُوَ مَا يَكُوْنُ فِيْ اٰخِرِهٖ وَاوٌ اَوْ يَاءٌ مَا قَبْلَهَا سَاكِنٌ كَدَلْوٍ وَظَبْيٍ وَبِالْجَمْعِ الْمُكَسَّرِ الْمُنْصَرِفِ كَرِجَالٍ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَدَلْوٌ وَظَبْيٌ وَرِجَالٌ وَرَأَيْتُ زَيْدًا وَدَلْوًا وَظَبْيًا وَرِجَالًا وَمَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَدَلْوٍ وَظَبْيٍ وَرِجَالٍ:

**ترجمه** په اصناف تسعو کښې اول صنف دا دی چه حالت رفعي به ئې په ضمې سره وی او حالت نصبي به ئې په فتحې سره وی او حالت جری به ئې په کسرې سره وی او دا خاص دی په مفرد منصرف صحیح سره په نزد د نحاتو باندې دا هغه اسم ده چه په آخر کښې حرف علت نه وی لکه زید او دا قسم اعراب مختص ده په جاری مجرې صحیح سره دا هر هغه اسم ده چه په آخر کښې واو یا یاء ما قبل ساکن وی لکه ته اووائې :جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَدَلْوٌ وَظَبْيٌ وَرِجَالٌ وَرَأَيْتُ زَيْدًا وَدَلْوًا وَظَبْيًا وَرِجَالًا وَمَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَدَلْوٍ وَظَبْيٍ وَرِجَالٍ:

**تشریح** په اصنافو تسعو کې اولنی صنف دادی چې حالت رفعي به یې په ضمې سره وي او حالت نصبي به یې په فتحې سره وي او حالت جری به یې په کسرې سره وي او دا خاص دي په څلورو محلاتو پورې محلات جمع دمحل ده

(۱) مفرد منصرف صحیح (۲) جاري مجرى صحیح (۳) جمع مکسر منصرف.

**یختص**: دا صیغه دفعل مضارع ده او دمعروف او مجهول دواړو احتمال په کښې دی ځکه چې دلازم او متعدي دواړو دباره مستعمل ده په اختصاص کې یعنې داعراب دا قسم. اول دد څلورو محلاتو سره خاص دی

(۱) مفرد المنصرف الصحیح: په مفرد سره احتراز راغی دمثنی او جمعې نه او په منصرف سره احتراز راغی دغیر منصرف نه ځکه چې دهغه اعراب نور دی ان شاء الله زر ده چې رابه شي په صحیح سره احتراز راغی دغیرصحیح نه

**عندالنحاة**: نحات دناح جمع ده لکه څنګه چې قضات جمع دقاض ده او ناح هغه شخص ته وایي چې دعلم النحو په مسائلو کې خبری کوی یعنې دنحو نو په نزد صحیح هغه دی چې په آخر کې حرف علت نه وي که په اول او اوسط کې وي خبر دي او صرفیانو په نزد صحیح هغه دي چې حرف علت همزه ـ دو حرف یك جنس درو نباشد یعنی دوه حرفه د یو جنس نه نه وي یو شاعر یه

خپلو خيالاتو کي ظاهر کړی ده.

دانی که صحيح چيست بنزديک نحويان ما لايکون آخره حرف علتان

دانيکه صحيح چيست بنزديک صرفيان خالی از حرف علت و تضعيف و همزه دان

(۲) **وبالجاري مجرى الصحيح**: هغه اسم ته وايي چي دهغي په آخر کښ واو ماقبل ساکن يا يا ماقبل ساکن وي لکه دلوٌ او ظبيٌ او دماقبل ساکن دپاره سرط دادي چي حرف صحيح به وي او عطف په صحيح باندي دي جاري په معنی دجلـه ونکي سره او مجری په معنی دمقام نو دانوم ورته څکه ورکړی شو چي دا قائم مقام دصحيح وی. څکه چي څنګه په صحيح کي تغيُر او تبدل نه راځي نو دغه شان په دي کي هم تغير او بدلون نه راځي

**سوال** دکومو کلماتو په آخر کي چي حرف علت واقع شي نو دغه حرف علت کله په حرکت بدليږي او کله حذف کيږي نو تعريف دجاری مجری حـ مع نه شو

**جواب** اګرچي حرف علت په کي موجود دي لیکن دغه حرف علت نه مخکي حرف ساکن دي يعني خفيف دي نو ددي وجی نه دحرف علت ثقل برداشت کړی او بدليږي نه

(۳) **وبالجمع المكسر المنصرف**: مکسر صفت اول دي په دي سره احتراز راغی دجمع سالمی نه او مُکسر ماخوذ د کسر نه دي په معنی د ماتـدل سره نو داهغه جمع ده چي بناء دواحد په کي ماته شوي وي لکه رجال واحد يې رَجُلٌ دي منصرف صفت ثاني دي په دي سره احتراز راغی دجمع مکسری غير منصرف نه يعني دغير منصرف اعراب جُدا دي پس دری واړو احتمالاتو حالت رفعي به په ضمی سره وي او حالت نصبی به يې په فتحی سره او حالت جری به يې په کسرې سره لکه امثله.

حالت رفعي: جاءني زيدٌ ودلوٌ وظبيٌ ورجالٌ.

حالت نصبي: رأيتُ زيداً ودلواً وظبياً ورجالاً.

حالت جري: مررتُ بزيدٍ ودلوٍ وظبيٍ ورجالٍ.

**سوال** څه وجه ده چي مصنف اول قسم مقدم که په نورو باندي او بيا يې مفرد منصرف صحيح په جاري مجری ولي مقدم که او په جمع مکسر منصرف يې ولي مقدم کړو

**جواب** مصنف اول قسم څکه مقدم دي چي دا دنورو اصنافو نه اشرف او اعلی دي څکه چي په ده باندي اعراب لفظی بالحرکت حقيقي راځي او دا اصل دي د اعراب بالحرف نه

او دغه شان مفرد منصرف اصل دي او جاري مجرى قائم مقام د صحیح دي نو داهم اصل دي د غیر اصل نه او دغه شان جمع مکسره هم اصل ده په جمع مؤنث سالمه باندي. نو داځکه مقدم دي په تولو اضافو باندي بیا په دوی کښ مفرد منصرف صحیح په جمع مکسر منصرف ځکه مقدم دي چي مفرد اصل دي د جمع او اصل طبعاً مقدم وي په فرع باندي.

**ترکیب: الاول** مبتدا **ان** ناصبه مصدریه **یکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف علیه **ولو عاقه النصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني معطوف سره د معطوفینو نه دا اسم دیکون شو **بالضمة** معطوف علیه **بالفتحة** معطوف اول **بالکسرة** معطوف ثاني معطوف سره د معطوفینو نه دا خبر دیکون، یکون فعل از افعال ناقصه سره د اسم او خبر نه دا جمله فعلیه په تاویل د مصدر سره خبر د مبتدا شوه، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**یختص** فعل فاعل **ب**، جاره **المفرد** موصوف **الصحیح** صفت. موصوف سره د صفت نه دا مجرور د باء جاره، جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو تعلق نیسی یختص پوري. یختص فعل فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه **ولو** عاطفه **هو** ذوالحال **عند** مضاف **النحو** مضاف الیه، مضاف سره د مضاف الیه نه دا حال شو د ذوالحال حال سره د ذوالحال نه دا مبتدا شوه، **ما** موصوله **لا** نافیه **یکون** فعل از افعال ناقصه **فی** جاره **اخر** مضاف **ه** مضاف الیه، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور د جار کیږي جار سره د مجرور نه دا متعلق شو ثابتٌ پوري. ثابتٌ صیغه د اسم فاعل ضمیر دهی فاعل او سره د متعلق نه دا خبر مقدم شو **حرف** مضاف **علة** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا اسم مؤخر شو. یکون سره د اسم او سره د خبر نه دا جمله فعلیه صله شو لپاره د موصول. موصول سره د صله نه دا خبر شو لپاره د مبتدا، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **کاف** په معنی د مثل سره دا مضاف شو. **زید** مضاف الیه، مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر شو لپاره د مبتدا محذوفه چی مثاله ده، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**ولو** عاطفه **ب**، جاره **الجاري** مضاف **الصحیح** مضاف الیه ، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور کیږي د جار، جار سره د مجرور نه دا متعلق شو یختص فعل پوري. یختص فعل فاعل او سره د متعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه ، **ولو** عاطفه **هو** مبتدا **ما** موصوله **یکون** فعل از افعال ناقصه **فی** جار **اخر** مضاف **ه** ضمیر مضاف الیه ، مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور د جار. جار سره د مجرور نه دا په اعتبر د متعلق سره خبر مقدم شو. **ولو** معطو ف علیه **او** عاطف **یا**، معطوف ، معطوف سره د معطوف علیه نه دا موصوف شو **ما** موصوله **قبل** مضاف **هما** مضاف الیه . مضاف سره د مضاف الیه نه دا

مفعول شو لپاره دفعل مقدره چې ثبت ده **ساکن** دا فاعل ده لپاره دثبت ،ثبت فعل فاعل سره دمفعول فیه نه دا صله شوه لپاره موصول . موصول سره دصلې نه دامبتدا مؤخر شوه مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه، **کلا** یه معنی دمثل مضاف سره، **دلو** معطوف علیه **ولو** عاطفه **ظبي** معطوف، معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مضاف الیه کیږي دمضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر کیږي لپاره دمبتدا چې مثاله ده، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه،

**ولو** عاطفه **با**ء جار **د الجمع** موصوف **المکسر** صفت. موصوف سره دصفت نه دا بیا موصوف کیږي **المنصرف** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مجرور کیږي دباء جاره. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو یختص پورې. یختص فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه، **کلا** په معنی دمثل مضاف سره **رجال** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر کیږي دمبتدا چې مثاله ده مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه، **تقول** فعل انت ضمیر فاعل، فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه خبریه قول، **جاء** فعل **نون** وقایه **یا**ء ضمیر دمتکلم مفعول به **زید** معطوف علیه **ودلوٌ** معطوف اول **وظبي** معطوف ثاني. **ورجال** معطوف ثالث معطوف سره دمعطوفاتو ثلاثه نه دا فاعل کیږي لپاره دجاء . جاء فعل نون وقایه یاء ضمیر دمتکلم مفعول به او سره دفاعل نه دا جمله فعلیه معطوفه علیه **ولو** عاطفه **رایت** فعل فاعل **زیدا** معطوف علیه **ودلوا** معطوف اول **وظبیا** معطوف ثاني **ورجال** معطوف ثالث، معطوف سره دمعطوفاتو ثلاثه نه دا مفعول به کیږي د رایت و رایت فعل فاعل سره دمفعول به نه دا جمله خبریه معطوف اول. **ولو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **با**ء جره **زید** معطوف علیه **ولو** عاطفه **دلو** معطوف اول **وظبي** **معطوف** ثاني **ورجال** معطوف ثالث. معطوف سره دمعطوفاتو ثلاثه نه دا مجرور کیږي دباء جاره . جار سره دمجرور نه دامتعلق مررت پورې. مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفاتو نه دا جمله فعلیه خبریه مقوله ، قول سره دمقولې نه دا جمله فعلیه خبریه

(۲) اَلثَّانِيْ اَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِالضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ وَالْجَرُّ بِالْكَسْرَةِ وَيَخْتَصُّ بِجَمْعِ الْمُؤَنَّثِ السَّالِمِ تَقُوْلُ هُنَّ مُسْلِمَاتٌ وَرَأَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ:

**ترجمه** او د دویم قسم اعراب داده چه حالت رفعي به ئې په ضمې سره وي او نصب او جر به ئې به کسرې سره وي او دا قسم اعراب د جمع مؤنث سالمې سره خاص ده لکه، هُنَّ مُسْلِمَاتٌ وَرَأَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ،

**تشریح** دا صنافو تسعو نه دویم قسم دادې چې حالت رفعي به یې په ضمې سره وي

اوحالت نصبی اوجری به یې په کسری سره وي لکه دحالت رفعی مثال ،هُنَّ مُسْلِمَاتٌ، هن مبتدا دي اومسلمات یې خبردي اوبنا برخبريت هم حالت رفعي دي او مبتدا يې عامل رافعه دي اوحالت نصبی به یې تابع دجروي لکه ،رَأَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ،

**سوال** سوال دادي چې پدي قسم کي نصب تابع دجرولی دی.

**جواب** جواب دادي چې دادجمع مذکرسالمه فرع ده اوپه هغی کښی نصب تابع دجردي نوبه دي وجه چي داصل اوفرعی مطابقت اوموافقت باقی پاتی شي. اوبله وجه داده چې پدي قسم باندي اعراب لفظی باالحرکت حکمی داخلیږی اوحکمی تعریف مونږه کړی دي چي يوحالت دبل تابع وي

**سوال** جمع مؤنث سالمه فرع ده دجمع مذکرسالمی اوجمع مذکرسالم يې اصل ده اواعراب بالحرکت اصل دي او اعراب بالحرف فرع ده اوس د اصل نه خلاف کړی دي څکه چې اعراب بالحرکت اصل دي اوداد جمع مؤنث سالمی فرعی ته ورکړی دی یعنی دینه اعرب بالحرف پکاردي

**جواب** دامودمجبوری دوجي نه ورکړي دي يعني دجمع مؤنث سالمی په آخر کښی داعراب بالحرف صلاحیت نشته او دجمع مذکرسالمي په آخر کی صلاحيت داعراب بالحرف شته چي ياء ماقبل مکسور او واوماقبل مضموم دی څاپه مذهب سی دوسم **جواب** دادي چې پدي باندا اعراب حکمی راځي اوحکمی فرع ده داعراب بالحرف حقیقي نو بس فرعي لره فرع ثابته شوه

**ترکیب الثانی** مبتدا **ان** ناصبه مصدريه **يكون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف عليه **والنصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفاتو سره دا اسم دیکون شو. **باء** جاره **الضمة** معطوف علیه **واو** عاطفه **باء** جاره **الكسرة** مجرور. جار سره دمجرور نه دا معطوف شو. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مجرور شو دجار جار سره دمجرور نه دا خبر ديكون شو. یکون سره داسم او خبرنه داجمله فعلیه خبر دمبتدا شوه. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **واو** عاطفه **يختص** فعل فاعل **با** جاره **جمع** مضاف **المونث** موصوف **السالم** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مضاف اليه کیږي دجمع مضاف لپاره. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور کیږي دبا جاره. جار سره دمجرور نه دا متعلق په يختص پوري شو يختص فعل فاعل سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه. **تقول** فعل فاعل. فعل سره دفاعل نه دا جمله فعلیه خبریه قول شو. **هن** مبتدا **مسلمات** ئی خبر. مبتدا سره دخبرنه دا جمله اسمیه معطوف علیه شوه. **واو** عاطفه **رايت** فعل فاعل **مسلمات** مفعول به فعل سره دفاعل او

سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف اول **وو عاطفه مررت فعل فاعل بمسلمات جار مجرور** جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت پوري. مررت فعل فاعل سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفاتو نه دا جمله فعلیه خبریه مقوله شوه لپاره دقول، قول سره دمقولي نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

﴿۳﴾ الثالث أَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِالضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ وَالْجَرُّ بِالْفَتْحَةِ وَيَخْتَصُّ بِغَيْرِ الْمُنْصَرِفِ كَعُمَرَ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ عُمَرُ وَرَأَيْتُ عُمَرَ وَمَرَرْتُ بِعُمَرَ:

**ترجمه** او دریم قسم اعراب داده چه حالت رفعی به ئې په ضمې سره وي او حالت نصبي او جري به ئې په فتحې سره وي او دا قسم اعراب خاص ده غیر منصرف صحیح سره لکه (عُمَرُ وَرَأَيْتُ عُمَرَ وَمَرَرْتُ بِعُمَرَ)

**تشریح** داصنافو تسعو نه دریم صنف دادي چي حالت رفعي به يي په ضمې سره وي اوحالت نصبي او جري به يي په فتحې سره وي اودېته اعراب بالحركت حكمي وايي يعني يو حالت په کي دبل تابع وي اودا مختص دي غیرمنصرف پوري او غیر منصرف هغه دي چي پيده کي دوه سببونه دا سباب منع صرف نه موجود وي يا يو سبب چي قائم مقام ددوو وي مثال لکه عُمَرُ په ده کي يو سبب عَلَميت دي او بل سبب په کي عدل دي. حالت رفعي جاءني عُمَرُ حالت نصبي رأيت عُمَرَ حالت جري مررت بِعُمَرَ.

**سوال** اعراب بالحرکت ولي مختص دي په غیرمنصرف پوري.

**جواب** غیرمنصرف همیشه مفردوي او مفرد اصل دي دغیر اصل نه البته اعراب يي حكمي دي دي وجه داده چي کسره په غیرمنصرف ممنوعه ده نو فتحه تابع دجراو گرزیده.

**سوال** کسره پري ولي ممنوعه ده

**جواب** غیر منصرف مشابه دفعل دي او په فعل کسره نه راځي ځکه چي جر دخواصو داسم نه دي

**سوال** غیرمنصرف مشابه دفعل ولي دي

**جواب** دغیرمنصرف پوره بحث راروان دي

**ترکیب الثالث مبتدا ان ناصبه مصدریه یکون فعل از افعال ناقصه الرفع معطوف علیه والنصب** معطوف اول **والجر معطوف** ثاني. معطوف سره دمعطوفاتو نه دا اسم دیکون شو. **با**ء جاره **الضمة** معطوف علیه **با**ء جاره **الفتحة مجرور**. جار سره دمجرور نه دا معطوف شو لپاره دمعطوف علیه. معطوف سره د **معطوف علیه** نه دا مجرور شو دجار. جار سرّه دمجرور نه دا خبر دیکون شو. یکون

سره داسم او خبر نه دا جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدر سره دا خبر دمبتدا شو. مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه. **واو** عاطفه **يختص** فعل فاعل. **باء** جاره. **غير** مضاف. **المنصرف** مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور كيري دجر. جار سره دمجرور نه دا ظرف لغو تعلق نيسي يختص پوري. يختص فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه. **كاف** بمعنى مثل مضاف **عمر** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر كيري دمبتدا دمحذوفه چې مثاله ده، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه. **تقول** فعل فاعل. فعل سره دفاعل نه دا جمله فعليه قول شوه. **جاء** فعل **نون** وقايه **ياء** ضمير دمتكلم مفعول به عمر فاعل. جاء فعل نون وقايه يا ضمير دمتكلم مفعول به سره دفاعل نه دا جمله فعليه خبريه معطوف عليه **واو** عاطفه **رايت** فعل فاعل **عمر** مفعول به فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو **واو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **بعمر** جار مجرور. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت پوري مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا معطوف ثاني شو. معطوف سره دمعطوفاتو نه دا جمله فعليه خبريه مقوله. قول سره دمقولې نه دا جمله فعليه خبريه شوه

﴿۴﴾ اَلرَّابِعُ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِالْوَاوِ وَالنَّصْبُ بِالْاَلِفِ وَالْجَرُّ بِالْيَاءِ وَيُخْتَصُّ بِالْاَسْمَاءِ السِّتَّةِ مُكَبَّرَةً مُوَحَّدَةً مُضَافَةً اِلٰى غَيْرِيَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَهِيَ اَخُوْكَ وَاَبُوْكَ وَهَنُوْكَ وَحَمُوْكَ وَفُوْكَ وَذُوْمَالٍ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ اَخُوْكَ وَرَأَيْتُ اَخَاكَ وَمَرَرْتُ بِاَخِيْكَ وَكَذَا الْبَوَاقِيْ.

**ترجمه** څلورم قسم اعراب دا دی چه رفع به ني په واو سره وی او نصب به ني په الف سره وی او جر به ني په ياء سره وی او دا قسم اعراب خاص دی د اسماء سته مكبره سره په داسي حال كښی چه واحد به وی او مضاف به وی او ياء متكلم طرف ته نه علاوه او هغه اخوك ابوك هنوك حموك فوك او ذومال دی لكه نه اووانې جَاءَنِيْ اَخُوْكَ وَرَأَيْتُ اَخَاكَ وَمَرَرْتُ بِاَخِيْكَ په دی مثال باندی باقی پنځه واړه قياس كړه

**تشريح** هركله چې مصنف فارغ شو دهغه مواضعو نه كوم چې دا عراب بالحرف حقيقي او حكمي وونو شروع يې په اعراب بالحرف باندي اوكړه. پس داصنافو تسعو نه څلورم صنف دادي چې حالت رفعي به يې په واو سره وي او حالت نصبي به يې په الف سره وي او حالت جري به يې په ياء سره وي او دا قسم اعراب بالحرف حقيقي دي او: مختص دي په اسماء ستة مكبرو موحدو اضافو الى غيرياء المتكلم پوري. مكبرة. موحدة او مضافة دريواړه منصوب دي تقدير دعبارت داسي دي (كان) مكبرة، وكان) موحدة (وكان) مضافة الى غيرى المتكلم

نو پس: د اسمي ستو د پاره گویا خلور شرطه دي

**اول شرط** مكبره پدې سره احترازراغی د مصغر نه كه چرې مصغر شي نو اعراب به بالحرف نه وي بلكه اعراب بالحركت حقيقي به وي لكه جاء اُخَيٌ رایت اُخَيًا ومررت باُخَيٍ اضافت په وخت كي چې مصغر وي لكه جاء نی اُخَيكَ رایت اُخَيكَ ومررت باُخَيكَ. احتراز به سره د مصغرونه راغی څكه داقسم اعراب بالحركت حقيقي دي.

**دويم شرط** مؤحده چې مفرد وي يعني واحد وي پدې سره احترازراغی د تثنيي او د جمعي نه كچرې تثنيه او جمع او ويلی شي نو بيا به بې اعراب بالحرف نه وي بلكه اعراب بالحركت حكمي به وي لكه جاء نی اخوانٌ رایت اخوَينِ مررت بـخوَينِ يعني چې كله تثنيه او جمع شي نو اعراب به بې د نورو تثنيو او جمعو پشان وي نوځكه دويم شرط د موحدة ذكرشو.

**دريم شرط** مضافةً الى غيرياء مـكلم گويا بدي كي : دوه شرط دي يو داچې اضافت به بې شوي وي او بل داچې اضافت به بې بغيرد ياء متكلم نه علاوه هرضميرته شوي وي. كچرې اضافت په كي اونه شي نو بيا به اعراب بالحركت حقيقي وي لكه جاء نی ابٌ رایت اباً ومررت باب كچرې ياء متكلم ته بې اضافت اوشي نو بيا به بې اعراب بالحركت تقديري وي لكه جاء نی اخيِ رایت اخيِ ومررت باخيِ بس ددي دواړو شرطونو نه احترازراغی اسمايي ستة شپږ دي ـ اخٌ ـ ابٌ ـ هنٌ ـ حمٌ فمٌ اوذُو مال تقُولُ جاء نی اخوك ابوكَ حموكَ رأيت اخاكَ اباكَ حماكَ ومررت باخوكَ ابوكَ حميكَ فميكَ جاء ابی زيد رايت ابازيد ومررت بابی زيد

**سوال** په اسماء ستة كي ماسوا د ذُو نه د نورو تولو اضافت ضمير طرف ته كيږي نو د ذُو اضافت ضميرته ولی نه كيږي

**جواب** د ذُو اضافت د اسم ضمير طرف ته څكه نه كيږي چې دا اسم جنس دي او واضعينو د اسم جنس يا د اسم ظاهر د پاره وضع كړی دي لكه ذُو مال د اسم جنس اطلاق به لراو د پرتولو باندې كيږي يعني لږو پيسو والاته هم مالدار و نيل صحيح دي.

**حَمٌ:** ليو رنه وايي او ليور فقط به مؤنث پوري مختص وي لكه جاء نی حَمُوكَ حَماكَ حَميكَ

**هَنٌ:** امر مستكره ته وايي يعني هرهغه شئ چې دهغي ذكر قبيح وي.

**وجه تسميه:** ابٌ اخٌ هنٌ حمٌ به اصل كي ابوٌ ـ هنوٌ او حموٌ وو دا څلور واړه ناقص واوي دي ذو به اصل كي ذَوَوٌ وو دا لفيف مقرون دي او فَمٌ به اصل كي فَوهٌ وو دا اجوف واوي دي د تولو نه آخري

حرف حذف شو البته دفو ئ نه ه حذف شو ه نو باتي شو و او نه مبم سره بدل شو دو جي دا قتر ان
د شخصيتينو نه نو فم تري جوړ شو

**ترکیب الرابع** مبتدا **ان** ناصبه مصدریه **یکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف علیه **والنصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفينو نه دا اسم دیکون شو. **با**ء جاره **والیاء** معطوف علیه **یاء** جاره. **الالف مجرور**. جار سره د مجرور نه دا معطوف اول شو. **بالیاء** دا معطوف ثاني شو. معطوف سره د معطوفینو دا مجرور کبري دجار سره د مجرور نه دا خبر کبري د یکون. یکون سره داسم او خبر نه دا جمله فعلیه خبریه په تاویل د مصدر سره دا بیا خبر واقع کبري مبتدا لپاره. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه.

**واو عاطفه یختص** فعل فاعل. **با**ء جاره **الاسماء** موصوف **الستة** صفت موصوف سره د صفت نه دا ذوالحال شوه. **مکبرة** حال اول **موحدة** حال ثاني. **مضافة** صیغه د اسم مفعول ضمیر پکښي مستتر هغه ني نائب فاعل. **الی** جاره. **غیر** مضاف **یاء** مضاف الیه مضاف **المتکلم** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه کیږي لپاره د مضاف. مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور کیږي دجار، جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو د تعلق نیسي مضافة پوری. مضافه صیغه د اسم مفعول سره دنائب فاعل او سره د متعلق نه دا شبه جمله حال ثالث شو حال ثلاثه سره د ذوالحال نه دا مجرور کیږي دجار. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغو تعلق نیسي یختص پوری. یختص فعل فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه.

**واو عاطفه هی** مبتدا **اخوک** معطوف علیه **وابوک** معطوف اول **وهنوک** معطوف ثاني **وحموک** معطوف ثالث **وفوک** معطوف رابع **وذومال** معطوف خامس. معطوف سره د معطوفات خمسه نه دا خبر کیږي دمبتدا. مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **تقول** فعل فاعل. فعل سره د فاعل نه دا جمله فعلیه خبریه قول. **جاء** فعل **نون** وقایه **یاء** ضمیر د متکلم مفعول به **اخوک** مضاف مضاف الیه. دا فاعل شو فعل سره د فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعلیه خبریه معطوف علیه. **واو عاطفه رایت اخاک** معطوف اول **ومررت باخیک** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوف نو نه دا مقوله شوه لپاره د قول. قول سره د مقولي نه دا جمله فعلیه خبریه **واو** عاطفه **کذا** خبر مقدم **البواقی** مبتدا موخر. خبر مقدم سره د مبتدا موخر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

(۵) اَلْخَامِسُ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِالْاَلِفِ وَالنَّصْبُ وَالْجَرُّ بِالْيَـاءِ الْمَفْتُوْحِ مَـا قَبْلَـهَـا وَيَخْتَصُّ بِالْمُثَنّٰى وَكِلَا مُضَـافًـا اِلٰى مُضْمَرٍ وَاثْنَـانِ وَاثْنَتَـانِ تَقُوْلُ جَـاءَنِي الرَّجُلَانِ كِلَاهُمَـا وَ

اِثْنَانِ وَاثْنَتَانِ وَرَاَیْتُ الرَّجُلَیْنِ کِلَیْهِمَا وَاثْنَیْنِ وَاثْنَتَیْنِ وَمَرَرْتُ بِالرَّجُلَیْنِ کِلَیْهِمَا اِثْنَیْنِ وَاثْنَتَیْنِ.

**ترجمه** د اعراب پنځم قسم داده چه حالت رفعي به ني په الف سره وی نصب او جر به ني په یاء سره وی خو ما قبل به تری فتحه وی او دا قسم اعراب خاص ده تثنیه سره او کلا چه کله دا ضمیر طرف ته مضاف وی او اثنان او اثنتان سره لکه. جَاءَنِی الرَّجُلَانِ کِلَاهُمَا وَاثْنَانِ وَاثْنَتَانِ وَرَاَیْتُ الرَّجُلَیْنِ کِلَیْهِمَا وَاثْنَیْنِ وَاثْنَتَیْنِ وَمَرَرْتُ بِالرَّجُلَیْنِ کِلَیْهِمَا وَاثْنَیْنِ وَاثْنَتَیْنِ،

**تشریح**. د اصنافو تسعو نه پنځم صنف دادی چې حالت رفعي به یې الف سره وي او حالت نصبی او جری به یې په یاء ماقبل مفتوح سره وي او د قسم اعراب ته اعراب لفظی بالحرف حکمی وایې ځکه چې نصب یکې تابع د جر وی او دا قسم اعراب خاص ده په مثنی پوری او په ملحقاتو د مثنی پوری مثنی هغه لفظ یا اسم ته ویلی شي چې په آخر د مفرد کې یې الف او نون پیوست وي لکه رجلان

## ملحقات دمثنٰى

**ملحقات دمثنٰى**: مُلحقات د تثنيي مصنف څلور ذکر کړی دي کلا ، کلتا ، اثنان ، اثنتان دیته ملحقات ځکه وايي چې داپه حقيقت کې تثنيه نه دي ځکه چې ددوي مفرد نشته او دتثنيي دپاره مفرد شرط دي نو داپه ملحق تو د مثنىٰ سره مسمّىٰ کړی شو **فائده** يعني دامعناً تثنيه دي اولفظاً تثنيه نه دي . کلا عطف دي په مثنى باندي اوبه اضافة المضمر سره احتراز اوغى داسم ظاهرنه که چیری اسم ظاهرته يې اضافت اوشي نو اعراب به يې تقديري وي لکه جاء کلا الرّجلين رايت کلا الرّجلين مررت بکلا الرّجلين . نو پس دامضاف الى مضمر قيد احترازي دي .

**سوال** . مصنف بوازي کلا ذکر کړو او کلتايي ولې ذکرنکړو ؟

**جواب** . مصنف په اصل باندي اکتفاء اوکړه ځکه چې مذکر اصل دي او کلاهم دمذکر دپاره استعماليږي نو داصل دحکم نه دفرعي حکم فباساً او مستفاداً معلوميږي نو کلتا خو دبخوده معلوم شو

**سوال** . مصنف چې څنګه په کلا باندي اکتفاء اوکړه نو بيا ئې ده جي اثنتان بي هم نوي ذکري

**جواب** . په اثنتان سره مصنف دفع دتوهم کړی ده هغه داچې اعراب ددواړو يو شان دي اوحکم بي جُدا جُدا دي نو بيا به داتوهم مبتدي ته کيده چې اثنتان مصنف ځکه نه دي ذکر کړی چې دهغي اعراب به جُدا وي حلانکه اعراب د اثنان او اثنتان يو شان دي نو ځکه مصنف اکتفاء په دواړو اوکړه . مثالونه حالت رفعي جاءني الرجلان کلاهما و اثنان حالت نصبي اوجرى رايت الرجلين کليهما و اثنين ومررت بالرجلين کليهما و اثنين ، او د مؤنث مثالونه پدی سره قياس کړه

**کلاوکلتا**: کوفيين وايي چې کلا او کلتا به هر صورت کي به مثنى کي داخل دي ځکه چې الف په کې دتثنيي دي او نون په کې په واجبي طور محذوف دي او داهمشه مضاف وي او واحد يې کل وي چې په احاطه دافراد و سره راځي ليکن داقول غلط دي ځکه چې داکله اسم ظاهرته مضاف شي نو الف به کې باقي نه پاتي کيږي .

**ترکيب الخامس** مبتدا **ان** ناصبه مصدريه **يکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف عليه **والنصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني ، معطوف عليه سره دمعطوفينو نه دا اسم ديکون شو . **بالالف** جار مجرور دا معطوف عليه شو **بالياء** جار مجرور دا موصوف شو . **المفتوح** صفت ، موصوف سره دصفت نه دا بيا موصوف شو . **ما** موصوله يا موصوفه **قبلها** مضاف مضاف اليه ، مضاف سره دمضاف اليه نه دا مفعول فيه شو دثبت مقدر لپاره ، ثبت فعل فاعل او سره دمفعول فيه نه دا صله شوه

لپاره موصول. موصول سره د صله نه دا صفت شو لپاره د موصوف. موصوف سره د صفت نه دا معطوف شو لپاره د معطوف علیه. معطوف سره د معطوف علیه نه دا خبر دیکون شو یکون سره د اسم او خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**واو عاطفه یختص فعل فاعل باء جاره المثنی معطوف علیه واو عاطفه کلا ذوالحال مضاف** صیغه د اسم مفعول ضمیر بکښې نائب فاعل **الی** جار **مضمر** مجرور جار سره د مجرور نه دا متعلق شو مضاف پورې. مضاف صیغه د اسم مفعول ضمیر بکښې نائب فاعل او سره د متعلق نه دا شبه جمله حال شو لپاره د ذوالحال. حال سره د ذوالحال نه دا معطوف اول شو **والثنان** معطوف ثانی **والثنتان** معطوف ثلث معطوف سره د معطوفاتو نه دا مجرور شو د جار. جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوه متعلق شو یختص پورې. یختص فعل فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه **تقول فعل** فاعل دا جمله فعلیه قول جاء فعل **نون** وقایه **یاضمیر** متکلم مفعول به **الرجلان مؤکد کلاهما مضاف** مضاف الیه دا تاکید شو. مؤکد سره د تاکید نه دا معطوف علیه شو. **والثنان معطوف اول والثنتان** معطوف ثانی. معطوف سره د معطوفینو نه دا فاعل د جاء شو. جاء فعل فاعل او سره د مفعول به نه دا جمله فعلیه معطوفه علیها شو. **واو عاطفه رایت فعل فاعل الرجلین مؤکد کلیهما** مضاف مضاف الیه نه دا تاکید شو مؤکد سره د تاکید نه دا معطوف علیه شو **والثنین** معطوف اول **والثنتین** معطوف ثانی، معطوف سره د معطوفینو نه دا معمول به شو د رایت لپاره. رایت فعل فاعل مفعول به نه دا جمله فعلیه معطوف اول. **واو عاطفه مررت فعل فاعل باء جاره الرجلین مؤکد کلیهما** مضاف مضاف الیه دا تاکید شو. مؤکد سره د تاکید نه بیا معطوف علیه شو **والثنین** معطوف اول **والثنتین** معطوف ثانی، معطوف سره د معطوفینو نه دا مجرور شو د جار. جار سره د مجرور نه دا متعلق شو مررت فعل پورې، مررت فعل فاعل او سره د متعلق نه دا معطوف ثانی شو معطوف سره د معطوفینو نه دا جمله فعلیه قولیه شوه

۶. اَلسَّادِسُ اَنْ یَکُوْنَ الرَّفْعُ بِالْوَاوِ وَالنَّصْبُ وَالْجَرُّ بِالْیَاءِ الْمَکْسُوْرِ مَا قَبْلَهَا وَیَخْتَصُّ بِجَمْعِ الْمُذَکَّرِ السَّالِمِ نَحْوُ مُسْلِمُوْنَ وَاُولُوْ وَعِشْرُوْنَ مَعَ اَخَوَاتِهَا تَقُوْلُ جَاءَنِیْ مُسْلِمُوْنَ وَعِشْرُوْنَ وَاُولُوْ مَالٍ وَرَاَیْتُ مُسْلِمِیْنَ وَعِشْرِیْنَ وَاُوْلِیْ مَالٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِیْنَ وَعِشْرِیْنَ وَاُوْلِیْ مَالٍ.

**ترجمه**: شپږم اعراب دا دی چه حالت رفعی به نې په واو او ما قبل مضموم سره وی او نصب او جر به نې په یاء ما قبل مکسور سره وی او دا قسم اعراب د جمع مزکر سالمی سره خاص دی لکه

مسلمون او اولو او عشرون سره د خپلو اخواتو چه ثلثون، اربعون او خمسون وغيره دی لکه جَاءَنِیْ مُسْلِمُوْنَ وَعِشْرُوْنَ وَاُولُوْمَالٍ وَرَأَيْتُ مُسْلِمِيْنَ وَعِشْرِيْنَ وَاُولِیْ مَالٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِيْنَ وَعِشْرِيْنَ وَاُولِیْ مَالٍ،

**تشريح** دا صنافو تسعو نه شپږم صنف دا دي چې حالت رفعی به يې په واو ماقبل ضمی سره او حالت نصبی او جری به په ياء ماقبل کسری سره وي او دا قسم اعراب بالحرف حکمی دي او دا مختص دي په جمع مذکر سالمی پوری او په ملحقاتو دي پوری. لکه مثال د حالت رفعی جاءنی مسلمون وعشرون واولو مال حالت نصبی او جری رايت مسلمين وعشرين واولی مال ومررت بمسلين وعشرين وباولي مال.

**جمع مذکر سالمه:** دېته وايي چې ملحق شوي په آخر دي بوری واو ماقبل مضموم او ياء ماقبل مکسور لکه مسلمون او عشرون وغيره او سالمه ورته خکه وايي چې بناء د واحد به کی نه وي ماته شوي.

**سوال** اولو جمع د ذوده نو ګويا يدي کي بناد واحد ماته شوي ده نو دېته جمع مکسره و نيل پکار دي

**جواب** دېته جمع مفرد من غير لفظه وايي يعني چې د مفرد حرفونه په کې نوي او دا واضعينو وضع کړی وی لپاره د جمع مذکری سالمی يعني تعريف پری ثابت دي خکه چې په آخر کښ يې واو ماقبل مضموم دي

**عشرون مع اخواتها:** د دي نه مراد خوېندي د عشرون دی مثلاً ثلثون اربعون خمسون ستون سبعون ثمانون تسعون دا جمع حقيقي نه دي بلکه دېته ملحق بالجمع وايي يعني معناً خو جمع وي ليکن لفظاً يا حقيقتاً جمع نه دي او دېته د هانی وايي په اصطلاح د نحاتو کې ورته عقود ثمانيه وايي خکه دي چې د دي د پاره مفرد نشته او مفرد اصل وي جمع لره نو مسمی په ملحق بالجمع شو.

**سوال** د عشرون نه تسعون پوری دا جمع حقيقي دي خکه د دوی افراد شته عشرة د عشرون مفرد دي او د ثلاثون مفرد ثلثة دي او د اربعون مفرد اربعه دي علی هذا القياس.

**جواب** دا نه شي کيدي چې مفرد دي عشرة شي خکه چې عشرة په دلالت په لسو باندي کوي او مفرد يو ته وايي او کچري دا يې مفرد او ګرزی نو بيا پکار ده چې عشرون به اقل عدد باندي دلالت او کې خکه چې د جمعی اقل عدد دری دي نو دا جمع حقيقي کله هم نه شي کيدي او دغه شان اخواتها قياس کړه

**سوال** يدي قسم کې حالت نصبی تابع د حالت جری دی او دا قسمه اعراب ولی مختص دي په جمع مذکر سالمه پوری او د تثنی حالت نصبی او جری باء ماقبل مفتوح ولی

ده او جمع مذکر سالمه یا، ماقبل مکسور ولې ده

**جواب** اعراب بالحروف تول دری دي، واو، الف، یاء، او اعراب بالحرکت هم دری دي ... نو مجموعه اعراب شپږ شوا و مُستحقین د اعراب تونه دي یعني دری حالتونه د مفرد دي او دری حالتونه د تثنی دي او دری حالتونه د جمعې دي پس مفرد له مو اعراب بالحرکت ورکړو ځکه چې مفرد اصل دي او اعراب بالحرکت هم اصل ده باقي دری اعراب بالحروف پاتې شو او شپږ حالتونه پاتې شو دری د تثنیې او دری د جمعې کچیری دریواړه تثنیې ته ورکړو نو جمع به خالي پاتې شي او که عکس او کړو نو تثنیه به خالي پاتې شي او دواړو ته یو یو ورکړو نو النبس لازمیږي نو پس الف مو د تثنیې په حالت رفعي پورې خاص کړو او واو مو د جمع مذکر سالمې په حالت رفعي پورې خاص کړو او د امو ځکه ورکړو چې په تثنیه کې الف علامت د فاعل دي او په جمع کې و' علامت د فاعل دي باقي یو یاء پاتې شوه او خلور حالتونه پاتې شو، د تثنیې نصبي او جري او د جمعې نصبي او جري، پس تثنی ته هم یاء ورکړه او جمعې ته هم او فرق مو په کې د ر ؤ س چې د تثنیې یاء ماقبل مفتوح شوه او د جمعې یاء ماقبل مکسور شوه نو اعتراض رفع شو ځکه چې حالتونه څلور دي او حرف یو دي نو حالت نصبي تابع د جر ځکه شو د مختص کیدو جواب دا دي چې نور اعراب تري مفرد او حالت رفعي او نختول نو خود بخود پورې یاء غریبه مختص شوه تثنیې ته مو د یاء نه ماقبل فتحه ځکه ورکړه چې تثنیه متوسطه ده 'وفتحه هم متوسطه ده بله وجه دا ده چې تثنیه کثیر الاستعمال ده او جمع قلیل الاستعمال ده نو د کثیر الاستعمال سره خفت مناسب دي او فتحه هم أخفُّ الحرکات ده نو فتحه مو تثنی ته ځکه ورکړه او جمعې ته کسره ورکړه ځکه چې ضمه پری ثقیله ده

**ترکیب السادس** مبتدا **ان** ناصبه مصدریه **یکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف علیه **والنصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفنو نه دا اسم د یکون شو. باء جاره، **والواو** موصوف **المضموم** صفت. موصوف سره د صفت نه دا بیا موصوف شو **ما** موصوله **قبلها** مضاف مضاف الیه دا مفعول فیه شو د ثبت لپاره. ثبت فعل فاعل او سره د مفعول فیه نه دا صله شوه لپاره موصول. موصول سره د صله نه دا صفت شو د موصوف. موصوف سره د صفت نه دا مجرور شو د جار. جار سره د مجرور نه دا معطوف علیه شو **بـ**، جاره. **الیاء** موصوف **المکسورة** صفت. موصوف سره د صفت نه دا بیا موصوف شو. **ماقبلها** مضاف مضاف الیه دا صفت شو د موصوف. موصوف سره

دصفت نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا معطوف شو لپاره. دمعطوف علیه. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا خبر شو دیکون. یکون سره دا سم او سره دخبر نه دا جمله په تاویل دمصدر سره خبر دمبتدا شو. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**یختص** فعل فاعل **باء** جاره **جمع** مضاف **المذکر** موصوف **السالم** صفت. موصوف سره دصفت نه دا مضاف الیه شو لپاره دمضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو یختص فعل پورې یختص فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعلیه خبریه شوه **نحو** مضاف **مسلمون** معطوف علیه **والواو** معطوف اول **وعشرون** ذوالحال **مع** مضاف **اخواتها** مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه شو لپاره دمضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا حال شو دذوالحال لپاره. حال سره دذوالحال نه دا معطوف ثاني شو. لپاره دمعطوف. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مضاف الیه شو لپاره دنحو مضاف. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو لپاره دمبتدا محذوفه چي هٰذا ده مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **تقول** فعل فاعل دا قول شو **جاء** فعل **نون** وقایه **یاضمیر** دمتکلم مفعول به **مسلمون** معطوف علیه **وعشرون** معطوف اول **والواو** مضاف **مال** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه دا معطوف ثاني شو لپاره دمعطوف معطوف سره دمعطوفینو نه دا فاعل شو لپاره دجاء. جاء فعل فاعل او مفعول به نه دا جمله فعلیه معطوفة علیها شوه **واو** عاطفه **رایت** فعل فاعل **مسلمین** معطوف علیه **وعشرین** معطوف اول **وولي** مضاف **مال** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا معطوف ثاني شو لپاره دمعطوف. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مفعول به شو لپاره درایت. رایت فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو. **واو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **باء** جاره **مسلمین** معطوف علیه. **واو** عاطفه **عشرین** معطوف اول **واو** عاطفه **اولی** مضاف **مال** مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه دا معطوف ثاني شو لپاره دمعطوف. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت فعل پورې مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا معطوف ثاني شو لپاره دمعطوف. معطوف سره دمعطوفینو نه دا مقوله شوه دپاره دقول. قول سره دمقولې نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

**وَاعْلَمْ اَنَّ نُوْنَ التَّثْنِيَةِ مَكْسُوْرَةٌ اَبَدًا وَنُوْنَ الْجَمْعِ السَّالِمَةِ مَفْتُوْحَةٌ اَبَدًا وَكِلَاهُمَا تَسْقُطَانِ عِنْدَ الْاِضَافَةِ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ غُلَامَا زَيْدٍ وَمُسْلِمُوْ مِصْرَ**

**ترجمه** او پوهه شه چه نون د تثنیې به همیشه مکسور وي او نون د جمع مزکر سالم به مفتوح وي او دواړه به همیشه اضافت په وخت کښې په حزف کیږي لکه جَاءَنِيْ غُلَامَا زَيْدٍ وَمُسْلِمُوْ مِصْرَ

**تشريح** ابد اپه دوار ومقاماتو کې بنابرظرفيت منصوب دي او سلامةً صفت دي دنون څکه منصوب دي اوپه دي سره احتراز راغی دجمع مکسري نه لکه شياطين دانون مرفوع اومنصوب کيږي خو داضافت په وخت کې نه حذف کيږي۔

**خُلاصه**: نون دتثنيې به همشه بعني په دريواړو حالتونو کې مکسوروي اونون دجمعې به هميشه يعني به دريوارو حالتونو کې مفتوح وي وجه يې داده چې نون په اصل کې مبني دي او اصل په بناکې ساکن دي نو چې هرکله نون ساکن شي نوالنقاء ساکنين راځي نو متحرک کيږي او داقانون دي چې اَلسَّاكِنُ اِذَاحُرِّكَ حُرِّكَ بِالْكَسْرَةِ نوپس دتثنيې نون ته موکسره ورکړه اوجمعې ته موفتحه څکه ورکړه چې ضمه يري ثقيله ده په وخت داضافت کې به دواړه نونونه ساقطيږي

**اوله وجه** څکه به ساقطيږي چې دادواړه دتنوين به عوض کې دي اوتنوين په وخت داضافت کې ساقطيږي

**دويمه وجه** اضافت مقتضي داتصال دي يعني تقاضاداتصال کوي اونون دجمعې اوتثنيې تقاضاء د انفصال کوي او اتصال او انفصال په يوه کلمه کې نه جمع کيږي نوداضافت په وخت کې به څکه ساقطيږي

# اجمالي خلاصه د اعراب تقديري

## داخوی دريو اقسامو چې اعراب يې تقديري دي

هرکله چې مصنف فارغ شو داعراب لفظي نه نوشروع يې هغه مواضعو اوکړه چې دکوم اعراب تقديري ده او دا په آخري دريواقسامو پوري مختص ده اعراب تقديري په دوه اقسامو مشتمل ده بتقدير الحرکت بتقديرالحرف بتقدير الحرکت هغه ده چې حرکت په کې تقديري وي بتقديري الحرف هغه دي چې حرف په کې تقديري وي بيا دهر واحد دپاره دوه دوه احتمالات دي يو داچې په دريواړو حالاتو (رفعي نصبي جري)

کې به اعراب تقديري وي او بل داچې په بعضو کې به اعراب تقديري وي

پس داعراباتو احتمالات څلورجوړ شو او اقسام بغه دری دي نو مصنف يو احتمال داعراباتو نه ترک کړو يعني هغه قسم چې کوم بتقديرالحرف دي او په دريواړو حالاتو کې (رفعي، نصبي جری) تقديري وي دايې څکه ترک کړو چې دا قليل او نادر دي د اعراب تقدير په دپاره دوه وجې دي يو داچې اعراب لفظي به کوم ځايي کې متعذر (ناممکن) وي نو په هغه ځايي به اعراب

تقدیري وي بله داچې په کومو ځاینو کې اعراب لفظي ثقل پیدا کوي نو په هغه ځاینو کې به اعراب تقدیري وي پس زده کړه داخبره چې دتقدیر الاعراب مواضع به دې کتاب کې څلورذکردي په کومو مواضعو چې اعراب تلفظ متعذر اونا ممکن وي هغه دوه دي یو اسم مقصوره او بل هغه اسم چې یا، متکلم ته مضاف وي او په کومو مواضعو چې داعراب تلفظ ثقیل وي نو هغه هم دوه دي یو اسم منقوص دی چې په آخرکې یې یاء ماقبل مکسوروي او بل هغه جمع مذکر سالمه چې دیاء متکلم طرف ته مضاف وي

**ترکیب: واو عاطفه اعلم** صیغه دامر حاضران حرف از حروف مشبه بالفعل. **نون** مضاف **التثنیه** مضف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا معطوف علیه شو. **واو** عاطفه **نون** مضاف **جمع** موصوف **السلامة** صفت موصوف سره دصفت نه دا مضاف الیه شو لپاره دمضاف. مضاف سره د مضف الیه نه دا معطوف علیه. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا اسم د ان شو **مکسورة** صیغه داسم مفعول ضمیر پکښې نائب فاعل. **ابدا** مفعول فیه مکسور صیغه داسم مفعول سره دنائب فاعل او سره مفعول فیه نه دا ټول جمله معطوف علیه شوه. **واو** عاطفه **مفتوحة** صیغه داسم مفعول ضمیر پکښې نائب فاعل. **ابدا** مفعول فیه. مفتوحة صیغه داسم مفعول سره دنائب فاعل او سره دمفعول فیه نه دا معطوف شو لپاره دمعطوف علیه. معطوف سره د معطوف علیه نه دا خبر د ان شو ان سره د اسم او سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه مفعول به قائمقام د دو مفعولونو. اعلم فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه انشائیه شوه

**واو** عاطفه **کلا** مضاف **ها** مضاف الیه. مضف سره دمضف الیه نه دا مبتدا شوه **تسقطان** فعل فاعل **عنه** متعلق **الاضافة** مضاف الیه. مضاف سره دمضف الیه نه دا مفعول فیه شو. فعل فاعل او سره دمفعول فیه نه دا جمله فعلیه خبریه خبر دمبتدا شو. مبتدا سره خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **تقول** فعل فاعل دا قول شو. جاء فعل **نون** وقایه **یاضمیر** دمتکلم مفعول به. **غلاما** مضاف **لك** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا معطوف علیه شو. **واو** عاطفه **مسلموا** مضاف **مصر** مضف الیه. مضاف سره مضف الیه نه دا معطوف شو لپاره دمعطوف علیه. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا فاعل شو دجاء جاء فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه مقوله دقول. قول سره دمقولی نه دا جمله فعلیه مقولیه شوه.

(۷) اَلسَّابِعُ اَنْ یَّکُوْنَ الرَّفْعُ بِتَقْدِیْرِ الضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِتَقْدِیْرِ الْفَتْحَةِ وَالْجَرُّ بِتَقْدِیْرِ الْکَسْرَةِ تَخْتَصُّ بِالْمَقْصُوْرِ وَهُوَ مَا فِیْ اٰخِرِهٖ اَلِفٌ مَقْصُوْرَةٌ کَعَصًا.

**ترجمه**: اووم قسم اعراب د اسې دي چې رفع به ئې په تقدير د ضمې سره وي او نصب به ئې په تقدير د فتحې سره وي او جر به ئې تقدير د کسرې سره وي او دا قسم اعراب اسم مقصور سره خاص ده او اسم مقصور هغې ته ويلې شي چې په آخر کښې الف مقصوره وي لکه عصا

**تشريح**: دا صنافو تسعو نه اووم قسم دادې چې حالت رفعي به يې تقدير د ضمې سره وي او حالت نصبي به يې په تقدير د فتحې سره وي او حالت جري به يې په تقدير د کسرې سره وي او دا قسمه اعراب مختص دي په دوه شې نو پورې يو اسم مقصور او بل چې مضاف وي ياء د متکلم ته بغير د جمعې مذکر سالمې نه

**المقصور**: مقصور ماخوذ د قصر نه دي او قصر بند ش ته وايي نو ګويا په ده باندې د رېوارو حرکات بندوي يعني نه راځي برې بس اسم مقصور هغه اسم دې چې ملحق وي په آخر ده پورې فقط الف نو ګويا بدي سره احتراز راغی د الف ممدوده نه ځکه چې د هغې نه مابعد همزه وي لکه حمرآ، او ممدوده ورته ځکه وايي چې په ده باندې مد کېږي. بس برابره خبره ده که الف مقصوره باقي وي او که حذف شوي وي خو اعراب به يې تقديري وي لکه مثالونه .هذا عصا رأيت عصا ومررت بعصً (الف ترې حذف شوې دې په تنوين)

**سوال**: څه وجه ده چې په اسم مقصور باندې اعراب تقديري دي

**جواب**: دا اسم مقصور په آخر کې الف وي او په الف باندې حرکات ممنوع دي ځکه چې حرکت برې راشي نو بيا ترې همزه جوړيږي.

**ترکيب السابع** مبتدا **ان** ناصبه مصدريه **يکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع** معطوف عليه، **والنصب** معطوف اول **والجر** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفينو نه دا اسم د يکون شو. **باء** جاره، **التقدير** مضاف **الضمة** مضاف اليه. مضاف سره د مضاف اليه نه دا مجرور شو د جار. جار سره د مجرور نه دا معطوف عليه شو. **بتقدير الفتحة** دا معطوف اول **بتقدير الکسرة** معطوف ثاني. معطوف سره د معطوفينو نه دا خبر د يکون شو. يکون سره د اسم او خبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه. **واو** عاطفه **يختص** فعل فاعل **بالمقصور** جار مجرور دا متعلق شو بختص فعل پورې. يختص فعل فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه. **واو** عاطفه **هو** مبتدا **ما** موصوله **في** جاره **آخر** مضاف و مضاف اليه. مضاف سره د مضاف اليه نه دا مجرور شو د جار. جار سره د مجرور نه دا خبر مقدم شو. **الف** موصوف **مقصورة** صفت. موصوف سره د صفت نه دا مبتدا مؤخره شوه. خبر مقدم سره مبتدا مؤخر نه دا صله د موصول. موصول سره د صله نه دا خبر مبتدا شو. مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسميه خبريه

شوه **ک** بمعنی مثل مضاف. **عصاً** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر شو د مبتدا محذوفه چې مثاله ده مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

وَبِالْمُضَافِ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ غَيْرِ جَمْعِ الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ كَغُلَامِيْ تَقُوْلُ هٰذَا عَصَايَ وَغُلَامِيْ وَرَاَيْتُ عَصَايَ وَغُلَامِيْ وَمَرَرْتُ بِعَصَايَ وَغُلَامِيْ:

**ترجمه** او دا قسم اعراب خاص ده هغه اسم سره چه کوم مضاف وی یاء المتکلم ته او هغه به جمع مزکر سالم به نه وی لکه :غُلَامِيْ تَقُوْلُ هٰذَا عَصَايَ وَغُلَامِيْ وَرَاَيْتُ عَصَايَ وَغُلَامِيْ وَمَرَرْتُ بِعَصَايَ وَغُلَامِيْ:

**تشریح** داعطف په بالمقصور باندې دي یعني هغه اعراب بدې پورې مختص دي خواه که اسم مفرد وي که جمع مکسره وي که جمع مؤنث سالمه وي لیکن جمع مذکر سالمه تري مثنی ده خکه چې د هغې اعراب نوروي اوزرده چې را به شي انشاء الله تعالى ددي اعراب تقدیري خکه دي چې نه دی اعراب لفظی منعذر دي یعني اعراب لفظی پرې ممنوع دي خکه چې داکله یامتکلم نه مضاف شي نوبیا ماقبل کسره غواړي لکه غُلَامِيْ نوپس که پدې داخل شي اوپه یاء حرکات ثقیل شي نو بیا دېل حرکات راخی اوداالامحاله دي په کلام دعرب کې نوپس دغلامی دریواړه حالته په تقدیري وي په کسری سره اومیم ته کسره دیاد وجی نه ورکړی شوي ده نوځکه دغلامی آخر مستحق دکسری اوګرزیده

**ترکیب: واو** عاطفه **باء** جاره. **المضاف** صیغه داسم مفعول ضمیر پکښي ذوالحال. **الی** جاره، **یاء** مضاف **المتکلم** مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور کیږي دجار. جار سره د مجرور نه دا متعلق شو مضاف پوري. **غیر** مضاف **الجمع** مضاف الیه مضاف **المذکر** موصوف **السالم** صفت موصوف سره دصفت نه دا مضاف الیه کیږي لپاره دمضاف. مضاف سره د مضاف الیه نه دا حال کیږي د ذوالحال . حال سره د ذو الحال نه دا نائب فاعل کیږي دمضاف. مضاف اسم مفعول سره دنائب فاعل نه او سره د متعلق نه دا شبه جمله مجرور کیږي دجر. جار سره د مجرور نه دا متعلق شو په المقصور پوري. المقصور اسم مفعول سره د نائب فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعلیه خبریه **ک**ا**ف** په معنی دمثل مضاف سره. **غلام** مضاف **یاء** ضمیر مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه نه دا بیا مضاف الیه کیږي دیاره دمثل مضاف. مضاف سره د مضاف الیه نه دا خبر کیږي د مبتد محذوفه چې مثاله ده مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **تقول** فعل فاعل دا قول شو. **هذا** مبتدا **اعصا** معطوف علیه. **واو** عاطفه **غلامی** معطوف. معطوف سره د معطوف علیه نه دا خبر د مبتدا شو. مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه معطوفة علیها شوه. **واو** عاطفه **رایت** فعل فاعل **عصا** معطوف علیه.

واو عاطفه غلامی معطوف. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مفعول به کیږي درایت فعل. رایت فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا جمله فعلیه معطوف اول واو عاطفه مررت فعل فاعل به جاره، عمه معطوف علیه واو عاطفه غلامی معطوف. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مجرور کیږي دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت فعل یوري. مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا معطوف ثاني شو. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مقوله شوه دقول. قول سره دمقولي نه دا جمله فعلیه قولیه شوه

(٨) اَلثَّامِنُ اَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِتَقْدِيْرِ الضَّمَّةِ وَالْجَرُّ بِتَقْدِيْرِ الْكَسْرَةِ وَالنَّصْبُ بِالْفَتْحَةِ لَفْظًا وَيَخْتَصُّ بِالْمَنْقُوْصِ وَهُوَمَافِيْ اٰخِرِهٖ يَاءٌ مَاقَبْلَهَا مَكْسُوْرٌ كَالْقَاضِيْ جَاءَنِي الْقَاضِيْ وَرَأَيْتُ الْقَاضِيَ وَمَرَرْتُ بِالْقَاضِيْ.

**توجمه**: داد اعراب اتم نمبر قسم دا چه رفع به ئې په تقدیر د ضمی سره وي او جر په تقدیر د کسری سره وي او نصب به فتحه لفظي سره وي او دا قسم اعراب خاص دی د اسم منقوص سره او اسم منقوص هغې ته وئیلی شي چه په آخر کښې یاء وي او مه قبل مکسور وي لکه قاضي لکه نه اوائي جَآءَنِيْ الْقَاضِيْ وَرَأَيْتُ الْقَاضِيَ وَمَرَرْتُ بِالْقَاضِيْ.

**تشریح**: داصنافو تسعو نه اتم قسم دادي چې حالت رفعي بي به تقدیرد ضمی سره ده اوحالت نصبي بي په فتحی لفظي سره ده اوحالت جري بي په تقدیرد کسری سره ده اودامختص ده په اسم منقوص پوری او اسم منقوص هرهغه اسم ته وئیلی شي چې ملحق وي په آخرد ده پوری یاء ماقبل مکسوره لکه قاضي رازی عاصي غزالي وغیره حالت رفعي جاء نی القاضی نصبي رایت القاضی جری مررت بالقاضی

**سوال**: په دوه حالتونو کې تقدیري دې او په یو کې اعراب لفظي دې داولې.

**جواب**: داهغه قسم دې چې اعراب لفظي بري ثقیل دې یعني ضمه په یاباندي ثقیله ده او کسره پری هم ثقیله ده نو ځکه حالت رفعي اوجری دواړه تقدیري دي اوحالت نصبي پاتې شونو په دریواړو حرکاتو کې فتحه اَخَفُّ الحرکت دي نوګویا فتحه په خپل ځای باقي پاتې شوه.

**قانون**: داداهل عرب قاعده ده چې کله په تلفظ کې ثقل راځي نوثقل تري اُوباسي.

**ترکیب**: الثامن مبتدا ان ناصبه مصدریه یکون فعل از افعال ناقصه الرفع معطوف علیه والجر معطوف اول والنصب معطوف ثاني. معطوف سره دمعطوفو نه دا اسم دیکون شو، باء جاره تقدیر مضاف الضمة مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور شو دجار، جار سره دمجرور نه دا معطوف علیه، باء جاره، تقدیر مضاف الکسرة مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مجرور

شو دجار، جار سره دمجرور نه دا معطوف ثاني شو. معطوف عليه سره دمعطوفينو نه دا خبر ديكون شو. يكون سره دا سم او سره دخبر نه دا بيا خبر كيږي دمبتدا مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه **ولو عاطفه يختص فعل فاعل با، جاره المنقوص مجرور** جار سره دمجرور نه دا متعلق شو يختص پوري، يختص فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه. **ولو عاطفه هو مبتدا ما موصوله في جاره آخر مضاف ه ضمير مضاف اليه** . مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور كيږي دجار. جار سره دمجرور نه دا خبر مقدم شو دمبتدا مؤخر لپاره. **يا، موصوف ما موصوله قبل مضاف ها مضاف اليه**. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مفعول فيه شو دثبت دپاره. **مكسور فاعل** دثبت .ثبت فعل فاعل او سره دمفعول فيه نه دا صله شوه دموصول. موصول سره دصله نه دا صفت شو دموصوف . موصوف سره دصفت نه دا مبتدا موخر شوه. مبتدا موخر سره دخبر مقدم نه دا جمله اسميه خبريه شوه. **كا په معنى دمثل مضاف. قاضى مضاف اليه**. مضاف سره دمضاف اليه نه دا خبر شو دمبتدا محذوف چې مثاله ده. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه. **تقول فعل فاعل** دا قول شو . **جاء فعل نون وقايه ياء ضمير** دمتكلم مفعول به **القاضى** تقديراً فاعل. جاء فعل نون وقايه ي ضمير دمتكلم مفعول به دا معطوف عليه شو **ولو عاطفه رايت فعل فاعل القاضى لفظاً مفعول به** فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو **ولو عاطفه مررت فعل فاعل بالقاضى** جار مجرور دا متعلق شو مررت پوري دا معطوف ثاني شو معطوف عليه سره دمعطوفينو نه دا مقوله شوه. قول سره دمقولې نه دا جمله فعليه قوليه شوه

(۹) اَلتَّاسِعُ اَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِتَقْدِيْرِ الْوَاوِ وَالنَّصْبُ وَالْجَرُّ بِالْيَاءِ لَفْظًا وَيَخْتَصُّ بِجَمْعِ الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ مُضَافًا اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ تَقُوْلُ جَاءَنِىْ مُسْلِمِىَّ تَقْدِيْرُهُ مُسْلِمُوْىَ اِجْتَمَعَتِ الْوَاوُ وَالْيَاءُ وَالْاُوْلٰى مِنْهُمَا سَاكِنَةٌ فَقُلِبَتِ الْوَاوُ يَاءً وَاُدْغِمَتِ الْيَاءُ فِى الْيَاءِ وَاُبْدِلَتِ الضَّمَّةُ بِالْكَسْرَةِ لِمُنَاسَبَةِ الْيَاءِ فَصَارَ مُسْلِمِىَّ وَرَأَيْتُ مُسْلِمِىَّ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِىَّ.

**ترجمه**: نهم قسم اعراب دا دی چه رفع به ئې په تقدير دواو سره وی او نصب او جر به ئې په ياء لفظي سره وی او دا قسم اعراب جمع مزكر سالمي سره خاص ده چه كوم ياء متكلم طرف ته مضاف وی لكه نه اووائې جاءنی مُسلمیّ چه په اصل كښې مُسلموی ؤ واو او ياء به يو ځائې كښې جمع شو پدی دواړو كښې اول ساكن دی پس واو سه ياء سره بدل سو او ياء په ياء كښې مدغم شه دياء مناسبت دوجه نه د ميم ضمه مو په كسری سره بدله كړه پس مُسلمیّ شو. وَرَأَیْتُ مُسْلِمِیَّ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِیَّ.

**تشریح**: دا د اسمایو معربو آخری صنف دی یعنی د دې قسم حالت رفعی به په تقدیر د واو سره وی او حالت نصبی او جری به یې په یاء ماقبل مکسور لفظی سره وی او دا قسم مختص د ی په جمع مذکر سالمی پورې په هغه وخت کې چې کله یې اضافت یاء متکلم ته اوشي، لکه جاء نی مُسلمیّ ورایت مسلمیّ ومررت بمسلمیّ. خلاصه عبارت دا ده چې حالت رفعی یې په تقدیر د واو سره وی په دې بشان ده چې مُسلمُون صیغه د جمع مذکر سالمی ده چې اضافت یې کله یاء متکلم ته اوشی نو آخری نون (نون د جمعی) تری حذف کیږی (قانون په أعلَمُ کې تلاش کړ) نو مُسلمُوي شو بس واو او یاء د واړه په یو کلمه کې جمع شو او واو ساکن دی او یاء متحرکه ده نو واو د تقیل د وجی نه په یاء بدل سو نو مُسلمِيي شو اوس دوه حرفه متجانسین جمع شو اول ساکن او دویم متحرک او د اصرفی قانون دی چې ساکن به په متحرک کې مدغم کیږی نو بس یاء په یاء کې مُدغم شو نو مُسلميّ شو بس دا حالت رفعی دی په تقدیر د واو سره یعنی واو په یاء بدل شو نو په حالت رفعی کې ابدال راغی او دا قانون دی چه ابدال سره حرف د خپل حقیقت نه خارجیږی نو او خکه مقدریه تقدیر سره دی حالت نصبی او جری حالت نصبی او جری به په یاء ماقبل مکسور لفظی سره وی

څکه چې د مُسلمُونَ حالت نصبی او جری به په یاء ماقبل مکسور (مُسلمِینَ) حالت نصبی او جری، دی چې کله یې اضافت یاء متکلم ته اوشی نو د جمعی نون به تری ساقط شی او یاء د متکلم به ورسره په آخر کې ذکر شی نو مُسلمِيي شو اوس دوه حرفه متجانسین راغلو نو محکینی یاء مو په آخری یاء کې مدغمه کړه یعنی فقط ادغام یکې او شو نو مُسلميّ شو بس یاء په دواړو حالتونو نصبی جری، کې برقراره پاتې نو څکه دیته یاء لفظی أو ویلی شو.

**قانون**: به ادغام سره حرف د خپل حقیقت نه خارجیږی بس حالت نصبی او جری به په یاء لفظی سره دی.

**ترکیب**: **التاسع** مبتدا **ان** ناصبه مصدریه **یکون** فعل از افعال ناقصه **الرفع معطوف علیه والنصب** معطوف اول شو **والجر معطوف** ثانی. معطوف سره د معطوفینو نه دا اسم د یکون شو. **بـ** جاره **تقدیر** مضاف **الواو** مضاف الیه مضاف سره د مضاف الیه نه دا مجرور کیږی دجار. جار سره د مجرور نه دا معطوف علیه شو **بـ** جاره **الیاء** ذوالحال **لفظا** حال. حال سره د ذوالحال نه دا مجرور کیږی دجار. جار سره د مجرور نه دا معطوف شو د معطوف علیه دپاره. معطوف سره د معطوف علیه نه دا خبر د یکون. یکون سره د اسم او سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **و** عاطفه **یختص** فعل فاعل **بـ** جاره **جمع** مضاف **المذکر** موصوف **السالم** صفت. موصوف سره د صفت نه دا مضاف الیه شو د مضاف

دپاره مضاف سره دمضاف اليه نه دا ذوالحال شو. **مضافا** صيغه داسم **مفعول** ضمير پکښې نائب فاعل **الى** جاره **ياء** مضاف **المتكلم** مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور شو دجر. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مضافاً پورې. مضافا صيغه داسم مفعول سره دنائب فاعل اوسره دمتعلق نه دا شبه جمله حال شو د ذوالحال دپاره. حال سره د ذوالحال نه دا مجرور شو دجار. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو يختص فعل پورې. يختص فعل فاعل او سره د متعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه

**تقول** فعل فاعل دا قول شو جاء فعل **نون** وقايه **ياء** ضمير متكلم مفعول به **مسلمى** تقديرا فاعل. جاء فعل فاعل او سره دمفعول به نه دا مقوله شوه دقول قول سره دمقولى نه دا جمله فعليه قوليه شوه **تقديره** مضاف مضاف اليه دا مبتدا شوه **مسلموى** مضاف مضاف اليه دا خبر شو. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه **اجتمعت** فعل **الواو** معطوف عليه **واو** عاطفه **الياء** معطوف. معطوف سره دمعطوف عليه نه دا فاعل شو دفعل. فعل سره دفاعل نه دا جمله فعليه خبريه شوه. **والاولى** مبتدا **منهما** خبر مقدم **ساكنة** مبتدا موخر خبر مقدم سره دمبتدا موخر نه د خبر دمبتدا شو. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه **فقلبت** فعل **الواو** نائب فاعل **ياء** مفعول به. فعل سره دفاعل نه او سره د مفعول به نه دا جمله فعليه خبريه شوه **وادغمت** فعل **اليا**، نائب فاعل **فى** جار **اليا**، مجرور. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ادغمت پورې. ادغمت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه. **وابدلت** فعل **الضمة** نائب فاعل **باء** جاره. **الكسرة** مجرور جار سره د مجرور نه دا متعلق شو ابدلت پورې، ابدلت فعل فاعل او سره دمتعلقينو نه دا جمله فعليه خبريه شوه **لام** جاره **مناسبة** مضاف **اليا**، مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه دا مجرور كيږي دجر. جار سره د مجرور نه دا متعلق ثاني شو تر ابدلت پورې. **فصار** فعل **مسلمى** تقديراً فاعل. فعل سره دفاعل نه د جمله فعليه خبريه شوه. **واو** عاطفه **رايت** فعل فاعل **مسلمى** مفعول به، فعل سره دفاعل نه او سره دمفعول به نه دا جمله فعليه خبريه شوه، **واو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **باء** **مسلمى** مجرور. جار سره دمجرور نه د متعلق شو مررت فعل پورې. مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله فعليه خبريه شوه

# تقسیم دمعرب (۱) منصرف (۲) غیرمنصرف ته

فَصْلٌ اَلْاِسْمُ الْمُعْرَبُ عَلٰی نَوْعَیْنِ مُنْصَرِفٌ وَهُوَ مَالَیْسَ فِیْهِ سَبَبَانِ اَوْوَاحِدٌ یَقُوْمُ مَقَامَهُمَا مِنَ الْاَسْبَابِ التِّسْعَةِ کَزَیْدٍ وَمَرَرْتُ بِاَحْمَدَ.

**ترجمه** اسم معرب په دو قسمه دی اول قسم منصرف دی دا هر هغه اسم دی چه دی کښ دوه سببه او یا یو سبب چه قائم مقام د دوو سببو نو وی اسبابو نهه دی

**تشریح** دا د مقدمی خلورم فصل دی او پدی فصل کی مصنف دا اسم معرب تقسیم کوی چی اسم معرب په دوه قسمه دی یو منصرف او بل غیرمنصرف وجه د حصر یی داده اسم معرب به خالی نه وی یا به نکی دوه سببه د اسباب منع صرف یا یو سبب قائم مقام د دوو سببونو راغلی وی یا به پکی نه وی راغلی که راغلی وی نو دیته غیر منصرف وایی او که نوی راغلی نو دیته منصرف وایی.

**وَیُسَمَّی الْاِسْمُ الْمُتَمَکِّنُ**: دی اسم منصرف ته اسم متمکن هم وائی، د منصرف دویم نوم متمکن دی او متمکن ورته ځکه وایی چه متمکن د باب تفعل نه دی اسم فاعل صیغه ده مصدر ئی تمکن دی په معنی د ځائی نیونکی والا یعنی قوی، لهذا دا اسم دری واړه اعراب رفع نصب او جر او تنوین قبلوی لهذا دا قوی شو. او بعضو د متمکن معنی ځائی ورکولو سره کړی ده او تمکن په معنی د ځائی ورکولو سره اخستلی ده حالانکه نعمت معتبر ده نه د المصادر وغیره کښ د ځائی ورکولو معنی تمکین لیکلی ده چه دا متعدی ده نه د تمکن معنی چه لازم ده

**سوال** څه وجه کیدی شی چی منصرف مقدم دی سه منصرف باندی حالانکه دواړه یو شان اقسام د معرب دی

**جواب** ددی دپاره دوه وجی دی اوله وجه منصرف اصل دی او دا فنون دی چی اصل به اسماؤکی انصراف دی بخلاف د غیرانصراف نه او کوم شی چی اصل وی نو احتیاج الی الغیر نه وی یعنی غیر اصل نه محتاجه نوی او غیر اصل احتیاج الی الغیر وی یعنی غیر ته محتاج وی نو پس د منصرف هیڅ سبب ته ضرورت نشته نو ځکه اصل دی او غیرمنصرف محتاج دی سببونو ته نو دا غیر اصل دی نو منصرف ځکه مقدم دی

**دویمه وجه** د منصرف تعریف عدمی دی او د غیرمنصرف تعریف وجودی دی او عدم مقدم وی په وجود باندی نو ګویا د منصرف تقدیم په دوه وجو سره راغلی نو ځکه مقدم دی

**ترکیب** فصل دا خبر د مبتداء محذوفی ده هذا مبتدا، مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه

شو، **الاسم** موصوف **المعرب** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مبتدا شو **علی** جار **نوعین** مبدل منه **منصرف** معطوف علیه، **او** عاطفه **غیرمنصرف** معطوف. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا بدل شو دمبدل منه، بدل سره دمبدل منه نه دا مجرور شو دجار، جار سره دمجرور نه دا متعلق شو ثبت پوري، ثبتٌ صیغه داسم فاعل سره دفاعل او سره دمتعلق نه دا خبر شو دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **منصرف** دا خبر دمبتدا محذوفه شو چی **احدها** ده احدها مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا شوه، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **ولو** عاطفه **هو**مبتدا **ما** موصوله **لیس** فعل از افعال ناقصه نه **فیه** جار مجرور دا خبر مقدم شو. **سببان** معطوف علیه او عاطفه **واحد** موصوف **یقوم** فعل فاعل **مقام** مضاف **ها** مضاف، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مفعول فیه شو دیقوم، یقوم فعل فاعل او سره دمفعول فیه نه دا جمله فعلیه صفت شو دموصوف. موصوف سره دصفت نه دا معطوف شو دمعطوف علیه، دمعطوف سره دمعطوف علیه نه دا اسم دلیس شو، لیس سره دا اسم او خبر نه دا صله شوه دموصول، موصول سره دصله نه دا خبر دمبتدا. مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **من** جاره **الاسباب** موصوف **التسعة** صفت، موصوف سره دصفت نه دا مجرور شو دجار، جار سره دمجرور نه دا بیان شو **واحد** دا ورته مبین شو، بیان سره دمبین نه دا مبتدا شوه **کما** په معنی دمثل مضاف سره، **زید** مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو دمبتدا محذوفه چی مثاله ده مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه خبر دمبتدا شو، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه، **ولو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **باحمد** جار مجرور دا متعلق شو مررت پوري، مررت فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**وَحُكْمُهُ اَنْ يَدْخُلَهُ الْحَرَكَاتُ الثَّلٰثُ مَعَ التَّنْوِيْنِ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَرَأَيْتُ زَيْدًا وَمَرَرْتُ بِزَيْدٍ.**

**ترجمه**: حکم ددې دا دې چه پدې باندې حرکات ثلاثه مع التنوین بری داخلیږی لکه «جاءَنِیْ زَیْدٌ وَرَأَیْتُ زَیْدًا وَمَرَرْتُ بِزَیْدٍ»

**تشریح**: حکم په معنی داثرمرتبه دې یعني دمنصرف اثرمرتبه دادې چې داخلیږي په ده باندې دریواړه حرکات سره دتنوین اوذدوی په وجه منصرف متغیرکیږي اومنصرف دصرف نه ماخوذدې او صرف په لغت کې تغیراوتبدیل ته وایي نوپه منصرف کې هم تغیرراځي بخلاف دغیرمنصرف نه ـ

**ترکیب**: **ولو** عاطفه **حکم** مضاف **ه** ضمیر مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه دا مبتدا

شوه اِن ناصبه مصدریه **یدخل فعل** ه ضمیر مفعول به **الحرکات** موصوف **الثلاثة** صفت. موصوف سره دصفت نه دا فاعل شو **دفعل. مع** مضاف **التنوین** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا مفعول فیه شو **دفعل** یدخل دپاره. یدخل فعل فاعل مفعول به او سره دمفعول فیه نه دا خبر شو دمبتدا، **مبتدا** سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه. **تقول** فعل فاعل دا قول شو. **جاء** فعل **نون** وقایه **یاءضمیر** دمتکلم مفعول به. **زیدٌ** فاعل. فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف علیه شو. **واو** عاطفه **رأیت** فعل فاعل **زیداً** مفعول به. فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو. **واو** عاطفه **مررت** فعل فاعل **باء** جاره **زید** مجرور. جار سره دمجرور نه دا متعلق شو مررت پوري. **مررت** فعل فاعل او سره دمتعلق نه دا معطوف ثاني شو معطوف سره دمعطوفینو نه دا مقوله شوه، **قول** سره دمقولي نه دا جمله فعلیه قولیه شوه. **رأیت** فعل فاعل. فعل سره دفاعل نه او سره دمفعول به نه دا معطوف اول شو. **واو** عاطفه **مررت** فعل فاعل. **بزید** جار مجرور. دا متعلق شو **مررت** پوري. **مررت** فعل فاعل او سره دا متعلق نه دا معطوف ثاني شو معطوف سره دمعطوفینو نه دا مقوله شوه دقول. قول سره دمقولي نه دا جمله فعلیه خبریه شوه

دمنصرف مثلونه جاءنی زیدٌ حالت رفعي. رأیت زیداً حالت نصبي ومررت بزیدٍ حالت جري.

**وَغَیْرُ مُنْصَرِفٍ وَهُوَ مَا فِیْهِ سَبَبَانِ أَوْوَاحِدٌ مِنْهَا یَقُوْمُ مَقَامَهُمَا.**

**ترجمه** غیر منصرف هغی ته ونیلی شي چه هغی کښی دوه سببه او یا یو سبب چه قائم مقام د دوو سببونو وي

**تشریح** مصنف دمنصرف دتفصیل نه بعد دغیرمنصرف تعریف کوي چي غیر منصرف هغه دي چي نه دِه کي دوه سببه یا یو سبب قائم مقام د دوه سببونو داسباب تسعو نه راغلی وي چونکه په غیر منصرف کي اسباب تسعو ذکراو شونو ددی وجهی نه مصنف نهه اسباب په اجمال کی ذکر کوي یعني فقط اسم ذکر کوي او ددی نه بعد به دیو تفصیل بیانئ

**ترکیب. واو** عاطفه **غیر** مضاف **منصرف** مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دا خبر شو دمبتدا محذوفه چي ثانیها ده مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه **واو** عاطفه **هو** مبتدا **ما** موصوله **فیه** جار مجرور په اعتبار دمتعلق سره خبر مقدم شو **سببین معطوف علیه**. او عاطفه **واحد** ذوالحال **منهما** جار مجرور. جار سره دمجرور نه دا په اعتبار دمتعلق سره حال شو د ذوالحال. حال سره دو ذوالحال نه دا معطوف شو دمعطوف علیه. معطوف سره دمعطوف علیه نه دا مبتدا مؤخر شوه. خبرمقدم سره مبتدا مؤخر نه دا صله شوه دموصول. موصول سره دصلې نه دا خبر شو دمبتدا.

مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

وَالْاَسْبَابُ التِّسْعَةُ وَهِيَ الْعَدْلُ وَالْوَصْفُ وَالتَّانِيْثُ وَالْمَعْرِفَةُ وَالْعُجْمَةُ وَالْجَمْعُ وَالتَّرْكِيْبُ وَالْاَلِفُ وَالنُّوْنُ اَلزَّيْدَتَانِ وَوَزْنُ الْفِعْلِ :

**ترجمه** او هغه اسباب نهه دي (۱) عدل (۲) وصف (۳) تانيث (۴) معرفه (۵) عجمه (۶) جمع (۷) ترکیب (۸) الف و نون زائدتان (۹) و وزن الفعل

**تشریح** که چیری تقسیم دمرکب یادکل داجزاؤوی نوهلته به عطف مقدم وي په حکم باندي يعني اول به تول اجزاء ذکرشي او حکم به پري ورستو جاري شي دمثال به طورچايي مرکب دي دچيني وچي جاي شيدو او اُبونه اوداچاي اجزاء دي نو په هرجزد چاي ، مرکب ، حکم نشي لگيدي چي هرکله داتول جزيات بوکړي شي نو دچاي حکم به پري په آخره کي اولگي نودغه شان داسباب تسعو حکم به په آخره کي لگي کچري داسي اوويلي شي چي اسباب تسعه عدل دي اووصف دي وغيره نو دا غلط دي بلکه اول به تول جزيات ذکرسي نوحکم به بي په آخره کي اولگي چي اسباب تسعه هغه عدل ، وصف وزن فعل دي

## اشعار

مَوَانِعُ الصَّرْفِ تِسْعٌ كُلَّمَا اجْتَمَعَتْ ثِنْتَانِ مِنْهَا فَمَا لِلصَّرْفِ تَصْوِيْبُ
عدلٌ وَ وصفٌ وتانيث وَ معرفة وعجمةٌ ثمّ جمعٌ ونمّ تركيبُ
والنون زائدة من قبلها الف ووزنُ الفعلِ وهذاالقول تقريبُ

**نوټ** اسباب تسعه ، اسباب منع صرف ، اسباب عدم انصراف ، اسباب غیرمنصرف يو الفاظ دي

**ترکيب** ولو عاطفه الاسباب موصوف التسعة صفت، موصوف سره دصفت نه دا مبتدا اول . هی مبتدا ثانی العدل معطوف عليه والوصف معطوف اول والتانيث معطوف ثاني، والمعرفة معطوف ثالث والعجمة معطوف رابع والجمع معطوف خامس والتركيب معطوف سادس ولو عاطفه الالف معطوف عليه والنون معطوف، معطوف سره دمعطوف عليه نه دا موصوف شو ، الزائدتان صفت. موصوف سره دصفت نه دا معطوف سابع شو . ولو عاطفه وزن مضاف الفعل مضاف اليه، مضاف سره دمضاف اليه نه دا معطوف ثامن شو معطوف عليه سره دمعطوفاتو نه دا خبر شو دمبتدا ثاني ،مبتدا سره دخبر نه دا بيا خبر شو دمبتدا ، مبتدا سره دخبر نه دا جمله اسميه خبريه شوه

وَحُكْمُهُ اَنْ لَايَدْخُلَهُ الْكَسْرَةُ وَالتَّنْوِيْنُ وَيَكُوْنُ فِيْ مَوْضِعِ الْجَرِّ مَفْتُوْحًا اَبَدًا تَقُوْلُ جَاءَنِيْ اَحْمَدُ وَرَاَيْتُ اَحْمَدَ وَمَرَرْتُ بِاَحْمَدَ.

**ترجمه**: او حکم د دي دا دي چه پدي باندي کسره او تنوین نه راځي او د جر په ځاني به همیشه دا مفتوح وی لکه (جَاءَنِيْ اَحْمَدُ وَرَاَيْتُ اَحْمَدَ وَمَرَرْتُ بِاَحْمَدَ).

**تشریح** اثر مرتبه دغیرمنصرف دادي چي کسره او تنوین پری ممنوع دي ددي دپاره وجه داده چي غیرمنصرف مشابه دفعل ده او په فعل باندي کسره او تنوین نه راځي خکه چي کسره او تنوین دخواصو د اسم نه دي

## اعتراضات په تعریف دغیرمنصرف

**سوال** دغیرمنصرف دفعل سره څه مشابهت دي؟

**جواب** غیرمنصرف مشابه دفعل ده باعتبار دوجود سبب دفرعینو (او فرع خلاف اصل ته ویلی شي) یعني ځنګه چي په فعل کي دوه فرعي موجود دي هم دغه شان دوه فرعي په غیرمنصرف کي موجود دي په فعل کي فرعي دادي چي فعل محتاج وي فاعل ته او فاعل یي محتاج الیه وی نو په فعل کي احتیاج (ځکه هر محتاج فرع ده محتاج الیه دی) یوه فرع شوه او محتاج الیه (فاعل) په کي اصل دي بله فرع په کي داده چي هر فعل مشتق وي د مشتق منه نه نو مشتق فرع ده دمشتق منه او مشتق منه خلاف فرع ده یعني اصل دي پس په فعل کي دوه فرعي موجود دي یوه فرع د احتیاج او بله فرع په کي اشتقاق دي یعني مشتق کیدل. او په غیرمنصرف کي فرعي دادي چي دوه سببونه یعلونه په کي راځي د اسباب تسعونه او هر سبب فرع ده نو ګویا په غیرمنصرف کي دوه فرعي راجمع شوي لکه عدل فرع دمعدول عنه ده او وصف فرع دموصوف ده وغیره نو غیرمنصرف مشابه دفعل دي په وجود دفرعیتینو سره

**سوال** هرکله چي غیرمنصرف مشابه دفعل سره سو نو بکار ده چي غیرمنصرف عامل او مبني شي ځکه چي کوم شی د فعل سره مشابهت لری نو هغه شی به عمل هم کوي او مبني به هم وي ځکه چي فعل عامل هم دي او مبني هم دي نو پس فعل بي مسبه به دي او غیرمنصرف یي مشبه دي حالانکه غیر منصرف نه عامل دي او نه مبني دي څه وجه ده؟

**جواب** دمشابهت دپاره دری درجی دي (۱) مشابهت اعلی (۲) مشابهت وسطی (۳) مشابهت ادنی

(۱) **مشابهت اعلی**: داهغه مشابهت دي چي یو اسم دفعل سره په اقتران دزماني او معنی

مصدري کې مشابه وي (مثلاً اسماء افعال)

(۲) **مشابهت وسطي**: داهغه مشابهت دې چې يو اسم دفعل سره صرف په معنی مصدري کې مشابه وي لکه اسم فاعل او اسم مفعول پدې دواړو کې اقتران بالزمان نشته او معنی مصدري په کې شته ضَارِبٌ ضرب

(۳) **مشابهت ادنی**: داهغه مشابهت دې چې يو اسم دفعل سره په دغه دواړو امرينو کې مشابه نوي بلکه به نورو خصوصياتو کې مشابهت دفعل سره لري لکه غير منصرف چې مشابهت يې دفعل سره په وجود دفرعيتينو دې او به اقتران او معنی مصدري کې مشابه نه دي دفعل سره.

**خلاصه**: چې کوم اسم مشابهت دفعل سره اعلی وي نو دغه اسم به عامل هم وي او مبني به هم وي او چې کوم مشابهت وسطي وي يعني فقط به معنی مصدري کې مشابه وي دفعل سره نو دغه اسم به عامل وي فقط او مبني به نوي. او چې کوم مشابهت په ادنی درجې سره وي يعني نه په اقتران بالزمان کې وي او نه په معنی مصدري کې وي بلکه په نورو خصوصياتو کې وي نو پس دغير منصرف مشابهت ادنی دي.

**سوال** حکم دغير منصرف منقوض دې په لفظ دنُعمان باندې نعمان غير منصرف دې يو سبب په کې علميت دې او بل سبب پکې الف و نون زائدتين دې او حکم دغير منصرف پرې منقوض څکه دې چې کسره او تنوين پرې راغلي دي پدې شعر دامام شافعي ؓ کې مذکور دې.

أَعِدْ ذِكْرَ نُعْمَانٍ لَنَا أَنَّ ذِكْرَهُ هُوَ الْمِسْكُ مَاكَرَّرْتَهُ يَتَضَوَّعُ

او دغه شان حکم دغير منصرف منقوض دې په مَصَائِبٌ باندې حالانکه داصيغه دمنتهی الجموع ده قائم مقام ددوه سببونو ده يعني غير منصرف ده او دغير منصرف حکم پرې منقوض دې څکه چې تنوين پرې راغلي دې او تنوين او کسره په غير منصرف ممنوع دي اولفظ دمَصَائِبٌ واضح مذکور دې په يو شعر کې او داهغه شعر دې چې دپيغمبر عليه السلام دوفات په وخت کې حضرت فاطمةؓ ويلی وو

**اشعار فاطمه اول بيت**

صُبَّتْ عَلَيَّ مَصَائِبٌ لَوْ أَنَّهَا صُبَّتْ عَلَى الْأَيَّامِ صِرْنَ لَيَالِيَا

**ترجمه** راغلل په ما باندې مُصيبتونه کچرې دغه مُصيبتونه به ورځو راغلي وی نوشپې به

ترې جوړې شوي وې

**دویم بیت**

مَاذَاعَلَی مَنْ شَمَّ تُرْبَةَ اَحْمَدَ اَنْ لَّاَیَشُمَّ مَدَالزَّمَانِ غَوَالِیًا

اودغه شان لفظ داَحْمَدُهم غیرمنصرف دي حالانکه دلته پری کسره راغلی ده نودي درېواړو الفاظو داعراباتوڅه وجه ده چې حکم دغیرمنصرف پری منقوض دي.

**جواب** دادرېواړه الفاظ په اشعاروکي مستعمل دي نودذوي اعراب دضرورت شعری دوجی نه مخالف راغلی دي یعني دحفاظت دوزن اودقافیي دبرابرتیادپاره داسی کیدل جائزدي۔

**سوال** دضرورت شعری نه علاوه داسی یولفظ دي به قرآن کي چې په هغه تنوین راغلی دي لکه سَلٰسِلاَوَاَغْلاَلاً غیرمنصرف دي صیغه دمنتهاالجموع ده قائم مقام ددوه سببونوده.

**جواب** دغیرمنصرف حکم دادي چې کسره اوتنوین به پری نه راځی لیکن کله کله به پری دمناسبت دوجی نه راغلی وي نوپه سَلٰسِلاً باندي تنوین دمناسبت دغیردوجی نه راغلی دي څکه چې په اغلالاًهم تنوین راغلی دي

**نوټ** په سَلٰسِلاً باندي تنوین نشته لیکن بعض قاریان پری تلفظ دتنوین کوي درس

# بيان دعَدَل

اَمَّاالْعَدْلُ فَهُوَتَغْيِيْرُاللَّفْظِ مِنْ صِيْغَتِهِ الْاَصْلِيَّةِ اِلٰى صِيْغَةٍ اُخْرٰى تَحْقِيْقًا اَوْتَقْدِيْرًا.

**ترجمه** هرچه عدل دے پس دا بدلیدل دا صل شکل ئ بل شکل ته تحقیقاً وی او که تقدیراً وی

**تشریح** هرکله چې مصنف فرغ شو دا جمال دا سباب تسعو نه پس شروع یې او کړه په تفصیل دا سبابو تسعو کښې

**سوال** مصنف عدل ولی مقدم کړو په نورو اسبابو باندې ؟

**جواب** ددې دپاره دوه وجې دي اوله وجه عدل په اجمال کې مقدم وو نو یکاره ده چې په تفصیل کې هم مقدم شي ددې دپاره چې تفصیل موافق داجمال سره او ګرزی.

**دویمه وجه** عدل بمنزله دمفرد ده او نور تول اسباب بمنزله مرکب دي (یعنې عدل مفید نه دي ونور اسباب مقید دي) او داضابطه ده چې مفرد مقدم وي په مرکب باندې نو چې کوم شي بمنزله دمفرد وي نو هغه به هم مقدم وي په بمنزله مرکب باندې نو عدل ګوره دوه وجوهاتو سره مقدم دي.

**فائده** عدل بمنزله مفرد ځکه دي چې عدل مشروط بشرط نه دی یعنې دی بلاشرط تاثیر کولی شي بخلاف دنورو اسبابو نه یعنې دنورو اسبابو تاثیر مع الشروط دي یعنې بغیر دشروطو نه تاثیر نه شي کولی عدل به لغت کې په پنځو معنو سره مستعمل دي اودغه پنځه واړه معنی دتغیر دحروف جارو دوجی نه راځی پیدی شان سره چې دعدل صله: جارمجرور، به کله الی وي کله به واو وي کله فی کله بَیْنَ او کله مِنْ (۱)، کچرې دعدل نه بعد الی راشي: یعني دعدل صله چې الی واقع شي، نو عدل به په معنی دمیلان کیدل مائله کیدل سره وي لکه مثال فُلَانٌ عَدَلَ اِلَيْه اى مَالَ اِلَيْهِ (بمعنی میلان)

(۲) دعدل صله چې کله عَنْ راشي نو عدل به سه معنی داعراض سره وي لکه عرب مثال پیشکښ اَعْدَلَ عَنْهُ اى اَعْرَضَ عنه

(۳) دعدل صله چې کله فِیْ راشي نو دعدل معنی به تصرف وي لکه زَيْدٌ عَدَلَ فِىْ مَالِهِ اى زيدٌ تَصَرَّفَ فِىْ مالِه

(۴) دعدل صله چې مِنْ راشي نو معنی به سې بُعد وي لکه عرب مثال پس کوي عَدَلَ الجِنَازَمِنْ اَلْبُغْيَرِ (اسه جنس، اوبت ی) اى بَعُدَ الحمار الخ

(۵) دعدل صله چي بَيْن راشي نو بيا به دعدل معنى انصاف وي لكه عَدَلَ الْأَمِيْرُبَيْنَ رَعِيَّتِهٖ اى انصاف الامير... دا پنځمه معنى (انصاف) مشهوره ده

**اصطلاحي تعريف** اما العدل الخ ماشرطيه ده اوفاجزائيه ده پس عدل خُروج دلفظ دي دخپلى اصلي صيغى نه بلى صيغى ته ، خلاف القياس. مَعَرِفَاءُالْمَادَّةِالْأَصْلِيَّةِخِلَافُالْمُشْتَقَّاتِ برابره خبره ده كه دغه خُروج دلفظ حقيقتاًوي اوكه (گوياعدل په دوه قسمه سو حقيقي اوبل تقديري حقيقي دينه وايي چي معدول عنه حقيقتاًموجودوي لكه ثُلثُ دي اصل موجود دي ثلاثه ثلاثه ده . عدل تقديري دينه وائي چه معدول عنه ني حقيقتاًموجود نوي يعني تقدير اوي لكه عُمَرُاوزُفَرُ دَ دوى اصل عامرٌاوزافرٌ دي ليكن دافرض كړى شوي يعني حقيقتاًنه وي بلكه تقديري وي) تقدير اًوي لكه مثال عُمَرُ اصلي صيغه ي عامرٌده اوبيا تري عُمَرُ جوړ شوي دي نو پس عامرٌاصلي صيغه معدول عنه دي اوچي كوم لفظ تري جوړ شوي ده عُمَرُ دي ته معدول وايي اودغه خُروج ته عدل وايي . په طوالت دتعريف سره دفع ديوخواعتراضاتواوشوه اعتراضات دادي

**اعتراض** تعريف دعدل مانع نه دي دَدُخول دغيرنه خكه چي داصادر دي په تولو مشتقاتو باندي كه ضَرَبَ اوضاربٌ وغيره داخارج شوي دصيغى اصلي نه دي يعني دضَرَبٌ نه ددوي خروج شوي دي اوضربٌ مشتق منه اصلي صيغه ده اوضَرَبَ مشتق دي نو گويادا معدول شو اوضربٌ بي معدول عنه دي اودا وسه پوري چاديته عدل نه دي ونيلي څه وجه كبد يشي .

**جواب** په صيغته كي ضاضميرعدل ته راجع دي يعني خُروج دي ولفظ دخپلى اصلي صيغى نه بلى صيغى ته كيدل (يعني معدول اومعدول عنه به دوه صيغه وي) پس داتعريف مانع شو دُخول دغيرنه خكه چي مشتقات مشتق دي دمصادرونه اومصادر جُدا صيغى دي اومشتقات جُدا صيغى دي . كه چيرى دَضَارِبٌ خُروج دخپلى اصلي صيغى (ضارب) نه اوشي نو بيا به عدل ثابت شي حلانكه ضاربٌ دمصدر ضَرْبٌ نه خارج شوي دي نو ديته خو عدل هيچرى نه ونيلي كيږي.

**اعتراض** تعريف دعدل بيامانع دَدُخول دغيرنه دى خكه چي مُغيرات قيا سيه يا مغيرات صرفيه (چي دصرفي قاعدي مطابق پكي تغيرراغلى وي) پكښي داخل شول لكه قَالَ اوبَاعَ چي ددوي اصلي مادي (صيغى) قَوَلَ اوبَيَعَ دي نو گويا اوس دوله معدول عنه شو اوقال اوباع بي معدول شو اوخروج دقول اوبيع نه عدل شو . نو دوى ته خو چاعدل نه دي ونيلى

**جواب** تغيردلفظ به خلاف القياس وي يعني عدل لره دقاعدي دصرفي قوانينو موافق اعتبارنشته اوقَالَ وبَاعَ دقاعدي موافق تبديل شوي دي پس تعريف دعدل مانع دي.

**اعتراض** تعریف دعدل بیامانع نه دي دد خول دغیر نه خکه چي اسمايي محذُوفة الأعْجازپه کې داخل شو ، اعجاز جمع دعُجزده اوعجزلکی ته وایي نو داهغه اسماء دي چي آخری حرف تري حذف شوي وي اوآخری حرف بمنزله دلکي وي ، مثلاً دغوا لکی وروسته وی لفظ دیدٌ او دمٌ دابه اصل کی یدوٌ اودموٌ وو آخری حرفونه تري خلاف القیاس حذف شوي دي یعني خروج دیدٌ او دمٌ خلاف القیاس شوی دي او اصلي صیغی یې موجود دي ، یدوٌ دموٌ ، نو تعریف دعدل پری صادق شو ؟

**جواب** خروج دلفظ دي دخپلی اصلي صیغی نه بلی صیغی ته مَعَ بَقَاءِ الْمَادَّةِ الْأَصْلِيَّةِ یعنی سره دبقی دحروف اصلیه نه یعني داصلي صیغی حروف اصلیه به باقي وي .

**تحقیقاً او تقدیراً**: دا دواړه منصوب بنابر خبریت دي او د چي مفعول مطلق واقع شي نولفظ دتغیر اللفظ به ترمخکي مقدّر وي یعني تغیر اللفظ تحقیقاً اوتقدیراً ، نو معنی به دا شي چي خروج دلفظ به یا حقیقي وي او یا به تقدیري وي نو گویا عدل په دوه قسمه شو

**عدل تحقیقي**: داهغه عدل دي چي دلیل موجود وي به اصل باندي ( معدول عنه ) ماسوي دمنع صرف نه دیته عدل تحقیقي وایي .

**عدل تقدیري**: داهغه عدل دي چي دلیل موجود نه وي په اصل معدول عنه باندي ماسوي دمنع صرف نه

**تفصیل** کمه صیغه چي په کلام عرب کي غیر منصرف نه وي نو دهغی دپاره به ماسوي د منع صرف نه بل دلیل به اصل موجود وي لکه صیغه دثُلٰثُ په دی کي ماسوي دمنع صرف نه دلیل ددی په اصل یعني معدول عنه باندي موجود دي چي ثَلٰثَةٌ ثَلٰثَةٌ دي ، دا نه عدل حقیقي دی او س خبری ته خیال کوه کچرته په کلام عرب کي صیغه دغیر منصرف بیدا کري شي نو دغه صیغی ته به خیال کوی کچرته ماسوي دمنع بې به اصل باندي دلیل موجود نوي نو دغه دلیل به ورله فرضی اختلي کیږي دپاره دقانون نحوي دمُحافظت . او دغه فرضي دلیل به اصل باندي ، به ورله ماسوي د اسباب ثمانونه صرف یو سبب چي عدل دي . اختلی کیږي لکه مثال عُمَرْ به کلام عرب کي غیر منصرف دي پیدا کي یو سبب موجود دي چي علمیت دي او بل سبب ورله عدل معلوم شو یدي شان سره چي عامرٌ عُمَرْ دپاره معدول عنه فرض کري شو او عمر ورله معدول شو او د عُمَر خروج دعامرٌ نه تقدیري ثابت شو نو عُمَرْ او زُفَرْ دواړه عدل تقدیري دي

وَلَا يَجْتَمِعُ مَعَهُ وَزْنُ الْفِعْلِ أَصْلًا وَيَجْتَمِعُ مَعَ الْعَلَمِيَّةِ كَعُمَرَ وَزُفَرَ وَمَعَ الْوَصْفِ كَثُلَاثَ

**وَمَثْلَثَ وَاُخَرَ وَجُمَعَ:**

**ترجمه** او عدل وزن فعل سره بالکل نه جمع کېږی او عدل جمع کيږی علميت او وصف سره. علميت مثال لکه عُمَرَ او زُفَرَ د وصف مثال لکه ثُلاثَ او مثلث او اُخَرَ او جُمَعَ

**تشریح** واو عطف دي په عدل باندي. اونه به جمع کېږي عدل دوزن الفعل سره. اصلاً به معنی بالکل یعني بالکل به نه جمع کېږي او وجه يې دا ده چې اوزان دعدل مخالف دي دفعل اوزانونه (اوزان دفعل بوخو مشهور دي هغه دادی افضل پروزن اکرم افضل لکه اَكْرِمْ ضُرِبَ. دخرج ندخرج ندخرج وغیره) یعني په دواړو کې مُنافات دی. اوزان دعدل دادی

اوزان عدل را بتمامی تو رشش شمر مَفْعَل وفُعَل مثالها مَثْلَث وعُمَرْ
فعل ست همچو امس فُعال است چون ثُلاثْ دیگر فعال دان تو قطام وفعل سحر

**ويجتمع مع العلمية كعُمَرْ وزُفَرْ:** واو عطف دي په عدل باندي. او جمع کيږي عدل دعلميت سره او دوصف سره. ځکه چې دعدل دعلميت او وصف سره هيڅ منافات نشته وجه يې دا ده چې په عُمَرْ او زفر کې يو سبب علميت دی او بل سبب په کې عدل تقديری دي په دي شان سره چې دواړو معدول عنه عامرٌ او زافرٌ دي او په معدول عنه باندی دليل دمنع صرف دادي چې عمر او زفر کله پيدا کړی شو په کلام عرب کې او نه وو به کې مگر سبب واحد چې علميت دي او يو سبب نه کافي کيږي دغير منصرف دپاره نو دوی (نحويان) دقانون نحوي دمُحافظت دپاره تقدير دبل سبب اوکړو او دغه تقدير او فرضيت دنورو اسبابو نه نشي کيدی ځکه چې دنورو اسبابو دپاره خپل شروط دي مثلاً دتانيث دپاره ماء التانيث ده وغيره. او دغه تا، په عُمَر کی نشي راتلی. نو پس په عُمَر کې فقط عدل فرض کړی شو او عدل حروج سه وايي نو ددي دپاره به اُوس معدول عنه عامرٌ او زامرٌ فرض کړی شي او دی فرضيت او تقدير نه دليل دمنع صرف وايي نو پس به عمر او زفر کې دوه دوه سببين راجمع شو يو به کې خپل وو : علميت ، او بل به کې عدل تقديري شو.

**ومع الوصف الخ:** واو عطف دي په عدل باندي او عدل جمع کيږي دوصف سره ځکه چې منافات به کې نشته په ثلث او مثلث کې يو سبب وصف دي او بل سبب په کې عدل تحقيقي دي ځکه عدل تحقيقي دي چې دليل بری ما سوی دمنع صرف نه تکرار معنوي دي يعني دثلث معنی دری دری ده او دمثلث معنی دوه دوه ده او دربع معنی خلور خلور ده او تکرار دمعنی دلالت په تکرار دلفظ کوی نو دا معلومه سوه چې ثلث او مثلث دواړه معدول

دي دالفاظو مکررونه یعني دثلث معدول عنه ثلاثه ثلاثه دی او دغه شان مثلث معدول عنه مثلثة مثلثة دي دا ورله په اصل باندي دلیل دمنع صرف موجود دی نو پس داعدل تحقیقي دي.

**احترازی نکته** که څوک داسوال اوکړی چې دثلاث معنی دفقط دري او ګرزي او مثلث ده فقط په دوو دلالت اوکی څکه چې بو بو لفظ دی او دتکرار دپاره دوه چنده بل لفظونه استعمالیږی ددي دپاره محکم او مضبوط دلیل په قرآن پاک کی موجود دی لکه الله پاک تمام اُمت ته خبرداری ورکوي.

**فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ** پاره ۴ رکوع ۱۰- ۱۲ سورة النساء

کچري دلته په معنی کې تکرار اونه کړي شی نو بیا به آیت کی خلل راځی یعني بغیر دتکرار نه به معنی داسی شی چې پس نکاح اوکړه هغه چې طبیعت بې خوښه وي ستاسو تول اُمت ته اشاره ده دښځونه ددوه سره او دریو سره او دڅلورو سره داخو بالکل غلط ده څکه چې دټول امت ددوو ښځو سره نکاح نه کیږي. او داغلطی به په تکرار معنیو سره ختم کیږي چې دوه دوه او دري دري او څلور څلور نو پس معنی به صحیح شی. چې تاسو نکاح اوکړی ددوو دوو سره الخ

**وَأُخَرُ وَجُمَعُ**: دادعدل تحقیقي او دوصف مثالونه دی تفصیل د اُخَرُ لفظ د اُخَرُ غیر منصرف دی څکه چې دوه سببین په کې راجمع دي یو سبب په کې وصف دي او بل سبب په کې عدل تحقیقي دي اُخَرُ عدل تحقیقي دي وجه یې داده چې د اُخَرُ په معدول عنه باندي ماسوي دمنع صرف نه دلیل موجود دي هغه داچې اُخَرُ معدول د الاُخَرُ یا اُخَرُ مِن نه دي او دلیل دمنع صرف بری دادی چې اُخَرُ جمع د اُخری ده، په وزن دفُعلی، او اُخری مونث د اٰخَرُ دي اٰخَرُ صیغه دمذکر اسم تفضیل ده

**قانون کلی**: او داسم تفضیل داستعمالیدو دری طریقی دي (۱) دالف لام سره به مستعمل وي لکه اَلْاَفْضَلُ زَیْدٌ (۲) دمِن سره به مستعمل وی لکه اَضْرَبُ مِنْ عَمْرٍو (۳) داضافت سره به مستعمل وی لکه اَفْضَلُ الْقَوْمِ پس اسم تفضیل به مستعمل وي په یو طرق ثلاثو سره او دلته لفظ داُخَرُ، اخَرُ صیغه داسم تفضیل نه ده مستعمل په یو د طرق ثلاثه سره نو پس معلومه شوه چې لفظ د اُخَرُ معدول دی د الاُخَرُ یا د اٰخَرُ مِن نه اُسری دلیل دادی چې اٰخَرُ صیغه داسم تفضیل ده او نه ده مستعمل په یو د طرقو ثلاثه سره لیکن دا په اصل کی مستعمل دو دمعرف باللام سره یا دمِن سره.

**فَاِنْ قِیْلَ**: نا سو خو به دوه طریقو باندي اکتفی اوکړه او طریقه داضافت دترک کړه.

**قُلْنَا**: لفظ د اُخَرُ به طرق ثلاثه کې د اضافت سره نشي معدول کیدي څکه چې

اضافت به تری سافطیږی ، یعني مضاف الیه به یې حذف کیږي ، او مضاف الیه چې کله سافطیږی نو دي د بره دري جیږي دي (۱) اضافت به یې د بل سره وی (۲) یابه مضاف مبنی برضمه وي لکه لفظ «بعدُ» دوه مضاف الیه جملی ثلاثه ، بسملة ، والحمد ، وتسلیمة ، دي (۳) یابه د مضاف الیه په بدل کي تنوین عوضی راځي لکه

**یَوْمَئِذٍ** : دابه اصل کي یَوْمَ اذْکان کذا ویوم مضاف اذ وکان کذا مضاف الیه پس مضاف الیه حذف شوا و دهغه په عوض کي تنوین راغلی نو یومئذ شو ـ پس په آخر کي دادریوارو جیبري نشته یعني نه یې اضافت د بل سره دی اونه په کي تنوین عوضی شته اونه مبنی برضمه ده پس داضافت نه معدول کیږي

**جُمَعُ** : داغیرمنصرف دي ځکه چي دوه سببین په کښي جمع دي یو وصف ده اوبل عدل تحقیقي ده اوپه جمع کي عدل تحقیقي ځکه دي چي ددي په اصل باندي ماسوي د منع صرف نه دلیل موجود دي لفظ د جُمَعُ معدول دی دجُمْعُ یاجُمَاعَی ب د جَمْعَاوَاتٌ نه ، بروزن فُعْلٌ ، فَعلی ، فعلاوات ، دلیل پری دادي حي جَمْعٌ جمع د جَمْعَاءُ دہ ، بروزن فعلاء ، اوجمعاء مؤنث داجمعُ دي بروزن افعل ، اوقانون دادي چي کومه صیغه دفعلاء په وزن راځي نو دوه احتماله دي یابه فعلاءُ صفتي وي ، یعني صفت به واقع شوی وي اویابه اسمي وي ، یعني به ذات به دلالت کوي : که صفتي وي دهغي جمع به په وزن دفُعْلٌ راځي لکه دحُمْرَاءُ جمع حُمْرٌ ده ، برروزن فُعْلٌ ، که اسمي وي نو دفعلاء جمع به په وزن فُعلى یافعلاوات راځي لکه دصحراء ، جمع صحاري یاصحراوات ده نو پس جمعاء که چیرته صفتي شي نو به کرده چي جمع ئي جُمْعُ په وزن دفُعلٌ راشي او که چیرته اسمي شي نو پکار ده چي جمع ئي جماعی یاجُمْعَاوَات په وزن دفعالي یافعلاوات راشي ـ پس لفظ دجُمَعُ په دي کي په یووزن هم نه دي راغلی نو معلومه شوه چي جُمَعُ معدول دي دجُمْعُ نه یادجُمَاعَی نه اویادجُمْعَاوَات نه یعني په دي دریواروکي دیونه معدول دي.

## وصف

(۲) أَمَّا الْوَصْفُ فَلَا يُجَامِعُ مَعَ الْعَلَمِيَّةِ أَصْلًا وَشَرْطُهُ أَنْ يَكُوْنَ وَصْفًا فِيْ أَصْلِ الْوَضْعِ فَأَسْوَدُ وَأَرْقَمُ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَإِنْ صَارَ اسْمَيْنِ لِلْحَيَّةِ لِأَصَالَتِهِمَا فِي الْوَصْفِيَّةِ:

**ترجمه** پس وصف د عالمیت سره بالکل نه جمع کیږی : لپاره شرط دا دی چه به اصل وضع کښ به دا وصف وی پس لفظ اسود او ارقم غیر منصرف دی اگرچه دا د ضرلیاره نومونه جوړ شوی دی،

خکه چه د دې دواړو اصل وصفیت لپاره وو. او اربع به مررت بنسوة اربع کښې منصرف دې باوجود د دې نه چه دا پرې مثال کښې صفت واقع شوی او وزن فعل هم دې خکه چه وصف کښې اصل ندی

**تشریح** دویم سبب د اسباب تسعونه وصف دې او وصف مصنف په عدل پسې متصل خکه ذکر کړو چې دا اکثر د عدل سره جمع کیږي یعنې دویم سبب سره کې اکثر وصف دې.

## وصف په لغت او اصطلاح کښې

**وصف په لغت** کې ستودن او تعریف کولو ته وایي: ستودن کسی را گویند،

**په اصطلاح کې** كَوْنُ الْإِسْمِ دَالًّا عَلٰى ذَاتٍ مُبْهَمَةٍ مَاْخُوْذَةٍ مَعَ بَعْضِ صِفَاتِهَا.

یعنې وصف کیدل د اسم دې چې دلالت او کې په ذات مبهم باندې سره دبعضو صفتونو. لکه لفظ د احْمَرُ او اَسْوَدُ به ذات مبهم دلالت کوي یعنې معین نه وي لکه احمر هر سور سري ته وایي او دغه شان اسود هم هر تور سري ته وایي. او بعضی صفاتو سره هم مخصوص دې یعنې سور والی سور والی وصف د علمیت سره نه جمع کیږي بالکلیه خکه چې د دوی ذیول سره منافات دی. منافات دا دې چې وصف دلالت کوي په ذات مبهم باندې او علم دلالت کوي په ذات معین باندې او مبهم او معین دواړه په یوه کلمه کې نشي جمع کیدي

**وشرطه:** او شرط د تاثیر د وصف دا دی یعنې هغه وصف حې دهغې په وجه کلمه غیرمنصرف گرزي نو دهغه وصف دپاره شرط د تاثیر د وصف دا دي چې دغه وصف به په اصل وضع کې وي.

پس خلاصه دا شوه چې وصف په دوه قسمه دي یو وصف اصلي یا وضعي او بل وصف عارضي

(۱) **وصف اصلی یا وضعی**: داهغه وصف دې چې د تمع وضع کړی وي دپاره دیو ذات مبهم او برابره خبره ده که دغه وصف بیا دیو ذات معین دپاره گرزېدلی وي او که مبهم باقي پاتې شي لکه ضَارِبٌ او مَضْرُوْبٌ د ادواړه ذات مبهمه دي یعنې هرضارب سړی مراد دي او دغه شان لفظ د اَحْمَرُ هم ذات مبهم دی خکه چې صفت د سور والي په کوم سړي کې موجود وي نو هغه ته اَحْمَرُ وایي. اگرکه دیو خاص او معین ذات دپاره اسم او گرزي خو بیا به هم وصف اصلي یا وضعي وي.

(۲) **وصف عارضي**: داهغه وصف دې چې واضع اللغة وضع کړی د یو ذات معین دا سی دپاره وي لیکن په استعمال کې د ذات عارضي په وجه صفت گرزېدلی وي لکه لفظ د اَرْبَعٌ دې نو دا په اصل وضع کې خاص د خلورو د پاره وضع شوی دی، مافوق الثلاثة ماتحت الخمسة، نو بیدې کې معنی وصفي نشته لیکن کله کله عارضي صفت واقع کیږي لکه مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ اَرْبَعٍ زه تیر شوم په

ښخو سره هسې ښځې چې څلوروي. پدې ترکیب کې اربع منصرف دي ولې چې دلته وصف عارضي دي څکه چې اربع دعدد معین دپاره وضع کړی شوي دي او نعیین دوصف منافي دي او دصفت عارض دپاره وجه داده چې اربع په ترکیب کې صفت دي او نسوة موصوف دي او قاعده داده چې صفت هغه پکاروي چې په موصوف باندي محمول شي

**فإن قيل**: چې دلته خو داسې نه ده ولې چې داربع په نسوة باندي حمل راشي نو بیا به دعدد او معدود یو کېدل لازم شي او دا باطل دي.

**قلنا**: لامحاله به لفظ موصوف محذوف شي نو تقدیر د عبارت به داسې شي چې ای مررت بنسوة موصوفة باربع پس لفظ موصوف حذف شو او اربع قائم مقام دموصوف شو نو په دې اعتبار سره په اربع کې دوصف عارضي معنی پیدا شوه دا پری دلیل شو . اُس خیال کوه وصفین په دوه قسمه او گرزیدل یو وصف اصلي یا وضعي او بل وصف عارضي او پدې دواړو کې قوي سبب دغیر منصرف دپاره وصف اصلیه وضعیه دي او دا قوي څکه دي که چرته به خیل ابهام باقي پاتې شي نو بیا به هم تاثیر کوي به غیر منصرف کې

**فلا تضرُّهُ غلبةُ الإسميةِ**: ددې دپاره مثالونه لکه اسود . ارقم پدې دواړو کې وصف اصلي وضعي دي څکه چې اسود تورته وائي او ارقم برگ ته وائي او دا اوصاف دي اُس خیال کوه فلا تضر الخ پدې دواړو اسمیت غالب شوي دي او س اسود تور مرته وایي او ارقم برگ مارته وایي اگرکه دوی دپاره دافعل سه طرزدې پس معنی د تور والي او برگوالي به کې باقي ده نو داخکه سبب نو به دي او دعدم انصراف دپاره هم قوی سبب به کاروي څکه چې اصل به اسماء کښې انصراف دی او داصل نه غیر اصل ته اړول ډیر مشکل کار دي یعنی ډیر قوت غواړي نو وصف اصلي یا وضعي هم ډیر قوي دي نو به دي وجه مصنف" دوصف اصلي قید اولگو

## تانیث

۳. أَمَّا التَّأْنِيثُ بِالتَّاءِ فَشَرْطُهُ أَنْ يَكُونَ عَلَماً كَطَلْحَةَ وَكَذٰلِكَ الْمَعْنَوِيُّ ثُمَّ الْمَعْنَوِيُّ إِنْ كَانَ ثُلَاثِيًّا سَاكِنَ الْأَوْسَطِ غَيْرَ أَعْجَمِيٍّ يَجُوزُ صَرْفُهُ وَتَرْكُهُ لِأَجْلِ الْخِفَّةِ وَوُجُودِ السَّبَبَيْنِ كَهِنْدٍ لَا يَجِبُ مَنْعُهُ كَزَيْنَبَ وَسَقَرَ وَمَاهَ وَجُوْرَ وَالتَّأْنِيثُ بِالْأَلِفِ الْمَقْصُورَةِ كَحُبْلَى وَالْمَمْدُودَةِ كَحَمْرَاءَ مُمْتَنِعٌ صَرْفُهُمَا الْبَتَّةَ لِأَنَّ الْأَلِفَ قَائِمٌ مَقَامَ السَّبَبَيْنِ التَّأْنِيثِ وَلُزُومِهِ.

**توجمه** بهر حال تانیث بالتاء پس دی لپاره شرط دا دی چه دا به علم وی لکه طلحة

او دغه رنګی تانیث معنوي هم بیا معنوي کچرته ثلاثي او سـاکن الاوسط وي او عجمي نه وي بیا دی منصرف کیدل او نه منصرف کیدل دواړه جائز دي د وجه د خفت نه او دوه سببه موجود کیدلو د وجه نه لکه هندٌ. او کچرته ثلاثي ساکن الاوسط او غیر عجمي نه وي نو بیا غیر منصرف کیدل واجب دي لکه زینَبُ و سقرُ او ماهُ وجور او تانیث په الف مقصوره سره لکه حبلی او په الف ممدوده سره لکه حمراء د دی دواړو منصرف کیدل ممتنع دي خکه چه الف قائم مقام د سببینو ده اول تانیث او دویم لزوم تانیث

**تشریح:** دریم سبب د اسباب تسعونه تانیث دي او د تانیث نه مراد هغه تانیث ده چي حاصل شوي وي په تاء سره برابره خبره ده که دغه تاء لفظي وي او که مقدري وي سره احترازراغي د هغه تانیث نه چي حاصل شوي وي په کلمه کي د الف مقصوره او الف ممدوده د وجي نه.

**فان قیل** ت، تانیثي څه ته وایي؟

**قلنا** ت، تانیثي عبارت ده دهغه تاء زائدي نه چي ملحق کیږي په آخرد اسم پوري ومافبل نري مفتوح وي او دغه ت، په حالت دوقف کي په هاء سره بدلیږي لکه طلحةٌ سه حالت دوقف کي طلحه وبلي شي په دغه ت، سره احترازراغلی د اختٌ اوبنتٌ نه خکه چي دهغه ت، نه ده چي ماقبل نري مفتوح وي او په حالت دوقف کي په هاء نه بدلیږي او مونږ د عدم انصراف دپاره هم هغه تاء تانیثي ده چي ماقبل مفتوح وي او په حالت دوقف کي په هاء بدلیږي.

## تانیث لفظي ومعنوي

خلاصه دا، تانیث داسوه چي کوبا تانیث په دوه قسمه سو یو تانیث لفظي بل تانیث معنوي

**تانیث لفظي:** چي علامه دتانیث په کي ظاهره وي لکه په طلحةٌ کي تاء ظاهره ده.

**تانیث معنوي:** چي علامه دتانیث په کي مقدره وي لکه زینبُ کي تاء مقدره ده. پس دادواړه داسباب منع صرف دپاره موثر دي او دا تانیث لفظي او معنوي دواړو دپاره علمیت شرط دي البته دتانیث لفظي دپاره علمیت شرط دي وجوباً. یعني عدم انصراف په بې واجب وي، او دتانیث معنوي دپاره علمیت شرط دي جوازاً. یعني انصراف او عدم انصراف په بې دواړه جائزوي.

**فان قیل** دتانیث دپاره علمیت شرط ولې دي؟

**قلنا** علمیت دتانیث لفظي دپاره خکه شرط دي چي دغه اسم محفوظ اوګرزي دتغیراوتبدیل نه غالباً بابقدر الامکان.

**ضابطه** په سامولف تو کې اعلام دتغیر او تبدیل نه محفوظ وي بقدرالامکان باغالبا کوم لفظ دزید اسم دي او سره هر ژبه کې لفظ دزید استعمالیږي یعني په عربي کښې زَیْد دي او په اردو کښې زیدي او په انګلش کې (zid) دي او په چینې ژبه (#F !ψ≠) کې هم زید دي

**وکذلك المعنوي اوالمعنوي**: کذلك کښې کاف تشبیهي دي په معنی د مثل سره او په ذالك کې ضمیر تانیث لفظي ته اشاره ده نو معنی به داشي چې به شان د تانیث لفظي بانديتانیث معنوي هم دي یعني ته نیث معنوي په اشتراك دعلمیت کې د تانیث لفظي سره مشابه دي نو ځکه به غیرمنصرف وي .لیکن په اشتراك دعلمیت کي فرق فقط دومره دي چې په تانیث لفظي کې علمیت شرط الوجوب دی او په تانیث معنوي کې علمیت شرط الجوازدي.

**فان قیل** دتنیث معنوي دباره علمیت شرط وجوبی څنګه کیدی شي؟

**قلنا**: شرط د وجوب دتانیث معنوي دپاره دادی چې موجود شي په کې یو دامور ثلاثه نه امورثلاثه دادي

(۱) رباعی ۲، متحرك الاوسط ۳، عجمي بس کچری په تانیث معنوي کې یو ددي دریو اړونه موجود وي نوبیابه تانیث معنوي دپاره هم علمیت شرط الوجوب شي یعنی که رباعي څلور حرفز وي یا ثلاثي وي خو متحرك الاوسط وي یا عجمي وي پس که یو د امورثلاثه نه موجود شي نو بیابه تانیث معنوي عدم انصراف واجب وي او کچرته یو په کې هم موجود نوي نو بیابه جوازي وي یعني انصراف او عدم انصراف به یې دواړه جائزوي لکه مثال لفظ دهِنْد رباعي هم نه دي ثلاثي دي خو متحرك الاوسط نه دي بلکه ساکن الاوسط دي او عجمي هم نه دي بلکه عربي لفظي دي او دوه سببین په کې راجمع دي یو علمیت دي او بل تانیث معنوي دي نو دهندٌ انصراف او عدم انصراف دواړه جائزدي او دواړو دپاره وجې دادي .که اسباب نه اوګوري نو عدم انصراف یې جائزدي

**لِأَجْلِ الخفة**: دوجې دخفت او ضعف نه یعني داد واړه اسباب خفیف دي پس که د اسباب خفت نه اوګوري نو داعدم انصراف دپاره قوي نه دی نو منصرف کیدل یې هم جائزدي.

**والامتنعُه الخ**: الاحرف استثناء دي یعني الامتوجه دي امورثلاثوته اومنعهٗ په معنی د منع صرف سره دي بس دعبارت معنی به داسې شي او کچرته موجود شي یو د امور ثلاثو نه نو د غه تانیث معنوي به غیرمنصرف وي سره دشرط الوجوب نه او مصنف ددریواړو امورو دپاره مثالونه ذکر کړي دي داول دپاره مثال لکه زینب رباعي دي او حرف رابع قائم مقام دتاء تانیثي لفظي دي

نوددي عدم انصراف واجب دي دثاني امرد پاره مثال لکه سقر ددوزخ ديوي طبقې نوم دي پس دانلاثي کلمه ده خومتحرك الاوسط دوجې نه په دغه کلمه کې نوسب د انسوي نه نوځکه عدم انصراف واجب دی اودساکن الاوسط دوجې نه په کلمه کې خفت راغي نوبه دی صورت کې دواړه جائزدي که عدم انصراف وي اوکه انصراف وي نوددي عدم انصراف واجب دي. اودثالث امرډېره مثالونه ماه اوجُوْر د دواړه دقبيلتونونومونه دي اولفظ قبيله مؤنث ده نو ځکه تانيث معنوي ده او امرثالث په کې موجوددي چي عجمه دي يعني عربي الفاظ نه دي نوځکه ددوی عدم انصراف جائزدي.

**والتانيث بألالف المقصورة.......الخ**: پدې عبارت کې مصنف هغه سبب ذکرکوي چي قائم مقام ددوه سببونو دي يعني په تمامو اسبابو دمنع صرف کې فقط دوه سببه دي چي قائم مقام ددوه سببونو دي يو سبب صيغه دمنتهى الجموع ده بحث بې راتلونکې دی. اوبل سبب الفين علامات دتانيث دي اوالفين دوه دي يو الف مقصوره دي لکه حبلى اوبل الف ممدوده لکه حمراء نو پس دالفين چي په کوموکلموکې راغلي وي نوهغه به غيرمنصرف وي.

**فان قيل** دادواړه الفين علامات دتانيث دي اوتانيث دېو سبب قايم مقام دي څه وجه ده ؟

**قلنا** بيه الفينو کې دوه احتماله دی نوګوياداځکه قايم مقام ددوه سببونو دي اول احتمال دادي چي دادواړه الفين وضع شوی دپاره دتانيث دي اوتانيث په مستقل سبب دی داسبابو دمنع صرف نه

**دويم احتمال** دادي چي الفين لازم دي دکلمې سره پدې اعتبارچي کلمه بغيردددوي نه نشي مستعملی دی يعني که دوي ساقط شي نوکلمه پرې ناقصه کيږي لکه حبلى چي الف تري حذف شي نوحُبله نشي ويلی کيدي نوګوياداويم احتمال بکي لزوم دکلمي سره بمنزله دتانيث اخرئ اوګرزيد .نوپس معلومه شوه چي داالفين په دوه احتمالونو سببونو دلالت کوي نوداځکه قائم مقام ددوه سببونودي

**الف مقصوره**: مقصوره دقصرنه ماخوذ ده اوقصرمعنى نه رايي نوګويا په ده اعراب منع دي.

**الف ممدوده**: ممدوده دامتدادنه ماخوذ ده او امتداد خکلوته وايي نوګويا په ده سره امتداد الصوت کيږي.

## معرفه

۴، اَمَّاالْمَعْرِفَةُفَلَايُعْتَبَرُفِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ بِهَا اِلَّا الْعَلَمِيَّةُ وَشَرْطُهَا مَعَ غَيْرِالْوَصْفِ:

**ترجمه** هرچه معرفه ده نو د دي په اقسامو کښي نه ده معتبر لپاره د سببيت د منع حرف

مګر علمیت معتبر ده. او دا علمیت هر سبب سره جمع کیږي علاوه د وصف نه.

**تشریح** خلورم سبب د اسبابو تسعو نه معرف ده.

**معرف په لغت کې** معلوم ول ته ویلی شي. معلوم ول د یو شي ته ویلي شي.

**او په اصطلاح کې** المعرفة ماوُضع لشئ مُعین او د دې تضاد نکره ده (غیر معین)

پس د کلام خلاصه دا ده چې معرفه په اوه قسمه ده یعني ټول معارف اووه دي.

(۱) اعلام (۲) مضمرات (۳) اسمائ اشارات (۴) موصولات (۵) معرفه باللام (۶) معرفه باالنداء (۷) معرفه باالاضافت لفظ د معرفې دې ټولو له شامل دی نو پس په دې کې فقط اعلام د عدم انصراف دپاره معتبر دی او نور غیر معتبر دی ځکه چې مضمرات. اشارات او موصولات د مبنیاتو نه دی او کوم سببونه چې مونږ ته معتبر نشي جوړیدی د عدم انصراف دپاره او د دې نه علاوه معرفه باللام او معرفه بالاضافت ځکه نه دی معتبر چې د دوی په وجه غیر منصرف منصرف ګرزي او دا بحث به د غیر منصرف به آخر کې راشي.

او باقي یو معرفه باقي شوه چې معرفه بالنداء ده دا ځکه نه ده معتبره چې په حکم د معرفه باللام کې ده نو ګویا دا هم معتبره نه ده د عدم انصراف دپاره.

**ویجتمع مع غیرالوصف:** معرفه یا علمیت نه جمع کیږي د وصف سره ځکه چې د دوی په مابین کې منافات دی او د منافاتو ذکرمخکې شوی دی بیا ذکر کولو ته ضرورت نشته.

## عُجمه

،٥، اَمَّا الْعُجْمَةُ فَشَرْطُهَا اَنْ تَكُوْنَ عَلَمًا فِي الْعُجْمَةِ وَزَائِدَةً عَلٰى ثَلٰثَةِ اَحْرُفٍ كَـ اِبْرَاهِيْمَ اَوْ ثُلَاثِيًّا مُتَحَرِّكَ الْاَوْسَطِ كَـ شَتَرَ فَلِجَامٍ مُنْصَرِفٌ لِعَدَمِ الْعَلَمِيَّةِ وَنُوْحٌ مُنْصَرِفٌ لِسُكُوْنِ الْاَوْسَطِ:

**ترجمه** هرچه عجمه ده پس عجمي لپاره شرط دا دی چه دا به په علم وی او دری حروفو نه به زیات وی لکه ابراهیم. یا به ثلاثي متحرك الاوسط وی لکه شتر پس لجام منصرف دی خکه علمیت په کښې موجود نه دہ او نوح منصرف دہ خکه چه ساکن الاوسط دہ

**تشریح** پنځم سبب د اسبابو تسعو نه عجمه دہ

**عجمه په لغت کښې** لُکْنَتْ نه ویلی کیږي اولکنت سګین ژبان ته ویلی کیږي په وخت دتکلّم کې یعنې یو سړی چې خبرې کوي او کله کله په کې بند یږي لکنت دیته وایي.

**په اصطلاح کې** العجمة کون اللفظ وضعه غیرالعرب یعنې عجمه هغه لفظ ته ویلې شي چې هغه جوړشوي وي ماسوی دعرب نه یعني انګلش . اردو . پښتو . جاپانه . فارسي وغیره دا ټول عجمي دي

**فشرطها الخ:** شرط دتاثیر دپاره دادي چې ان تكون علماً الى اخره پس خلاصه داده چې شرط دتاثیر دعجمي دپاره دوه دي یو علمیت او بل احد الامرین دی .اول شرط علمیت دي برابره خبره ده که علمیت حقیقي وي او که حکمي وی.

**علمیت حقیقي:** علمیت حقیقي هغه دي چې یو لفظ علم ګرزیدلی وي په نعت عجمي کې او بیایې عرب نقل کړي خپل ژبان ته په حال دعلمیت کې، یعنې چې علمیت په کې باقي وي.

**علمیت حکمي:** علمیت حکمي هغه ده چې یولفظ علم نه وي په نعت عجمي کې او بیایې عرب نقل کړي دعلمیت په شکل کې لکه مثال په طوریه نعت عربي کې ک نشته نو چې په کوم اسم کې ګ راغلی وي، یعنې عجمي اسم، نوچې عرب یې خپل ژبان ته نقل کوي نو ګ اکثر په جیم بدلوي لکه نرګس دګل نوم دي او په ژبان عرب کې دغه اسم نرجس اسم جنس، معین، ګرزیدلی ده.

**فان قیل** شرط دتاثیر دعجمي دپاره علمیت ولې دی؟

**قلنا** شرط دتاثیر دعجمي دپاره خکه دي چې عجمه محفوظ شي دتغیر او تبدل نه او دعجمي دمحافظت دپاره موثر علمیت دي او علمیت مونږ دعدم انصراف دپاره خکه دي چې اعلام ټول محفوظ دي دتغیر او تبدیل نه

(۲) دویم شرط د تاثیر دعجمي لپاره احد الامرین دي یعني دوه امره دي او یو به په کي خامخا موجود یږي سره د علمیت (حقیقي او حکمي) امرین دادي یا به زائد علی الثلاثه وي او یا به ثلاثي متحرك الاوسط وي . پس چي په عجمه کي یو سبب علمیت او بل داحد الامرین نه موجود شي نو دا به سبب قوي جوړیږي دعدم انصراف دپاره لکه مثال ابراهیم . دا غیر منصرف دي ځکه چي یو سبب په کي علمیت دي او بل په کي احد الامرین دي یعني زائد علی الثلاثه دي نو په ده به کسره او تنوین نه راځي . دامرثاني دپاره مثال لکه شتر عجمه ده دبوي قلعه نوم دي یو سبب په کي بشرط العلمیت دي او بل احد الامرین دي یعني متحرك الاوسط دي .

**فلجام منصرف لعدم العلمية ونوح منصرف لسكون الاوسط:** فاء تفریحیه ده دادشرط اول په عدم باندي تفریح دي یعني لجام په نعت عجم کي لګام وو پس دامنصرف دي ځکه چي علمیت په کي نشته اګرچي عجمه ده خو سبب دعدم انصراف نشي جوړیدي ځکه چي داپه نعت عجم کي دبو شي معین دپاره نه دي وضع شوي بلکه دهراس واګي نه لګام ویلی کیږي او دعربو په نزهم علم نه دي ځکه چي کاف په جیم بدل کړی دي نولجام جوړ شوي دی اولجام هم دهراس واګی ته ویلی کیږي نو پس به لجام کي یو شرط موجود دي دامرینو نه چي زائد علی الثلاثه دي خو علمیت په کي نشته نو منصرف دی (او دا ضابطه ده ، به انتفاء دشرط سره انتفاء دمشروط لازمیږي)

**نوح:** یدي سره مصنف دشرط ثاني به عدم باندي تفریح کوي چي لفظ دنوح منصرف دي اګرچي عجمه ده او شرط اول په کي هم موجود دي چي علمست دي یعني دپیغمبر معین نوم دي لیکن احد الامرین په کي نشته نو دانتفاء دشرط ثاني په وجه انتفاء دمشروط راغلی ده نو ځکه منصرف دي دبولو پیغمبرانو په اسماء کنبی فقط شپږاسماء منصرف دي او باقی ټول غیرمنصرف دي یو شاعر دخیالاتو په اشعارو کي ترتیب وارذکر کړی دي

**شعر**

ګر همبخواهی که دانی نام هر پیغمبری تاکدام ست ای برادرنزدنحوي منصرف

صالحٌ ، وهودٌ ، ومحمدٌ ، باشعیبٌ ، ونوحٌ ، ولوطٌ منصرف دان ودیګرباقی همه لاینصرف

# جمع

(۶) اَمَّا الْجَمْعُ فَشَرْطُهٗ اَنْ یَّكُوْنَ عَلٰی صِیْغَةِ مُنْتَهَی الْجُمُوْعِ وَهُوَ اَنْ یَّكُوْنَ بَعْدَ اَلِفِ الْجَمْعِ حَرْفَانِ كَمَسَاجِدَ اَوْ حَرْفٌ مُشَدَّدٌ مِثْلُ دَوَابَّ اَوْ ثَلٰثَةُ اَحْرُفٍ اَوْسَطُهَا سَاكِنٌ غَیْرُ قَابِلٍ لِلْهَاءِ كَمَصَابِیْحَ فَصَیَاقِلَةٌ وَفَرَازِنَةٌ مُنْصَرِفٌ لِقَبُوْلِهِمَا الْهَاءَ وَهُوَ اَیْضًا قَائِمٌ مَقَامَ السَّبَبَیْنِ الْجَمْعِیَّةِ وَلُزُوْمِهَا وَامْتِنَاعِ اَنْ یُّجْمَعَ مَرَّةً اُخْرٰی جَمْعُ التَّكْسِیْرِ فَكَاَنَّهٗ جُمِعَ مَرَّتَیْنِ:

**ترجمه**. هرچه جمع ده پس دی لپاره شرط دا ده چه دا به په وزن د صیغې د منتهی الجموع وی او منتهی الجموع دبنه ونیلی شی چه پس د الف د جمع نه دوه حرفان وی لکه مساجد یا یو حرف مشدد وی لکه دَوابّ یا دری حروف وی خو ساکن الاوسط وی او آخر کښې ها نه قبلوی لکه مصابیح پس صَیاقِلَةٌ او فَرازِنَةٌ دواړه منصرف دی ځکه چه دا په آخر کښې ها، قبلوی او دا جمع د دوو سببونو قائم مقام ده او جمع کیدل دوبم لزوم د جمعیت دی. په دی جمع کښې دا خبره ممتنع ده چه دا د دویم ځل جمع شی په جمع تکسیر سره نو دا داسې ده لکه چه دوه ځله جمع شوی وی

**تشریح**. شپږم سبب د اسبابو د منع صرف نه جمع ده

**جمع په لغت کښې** جمع کولو دشي ته ویلی کیږي

**او په اصطلاح کښې** مادل علی احاد مقصودة بحروف مفرده. د احاد جمع دا خذده په معنی مفرد یا بو) شرط د تاثیر د جمعي د پاره دادی چي ان یکون علی صیغة منتهی الجموع. یعني هغه جمع سبب دي د عدم انصراف د پاره چي هغه صیغه د منتهي الجموع وي

**دمنتهي الجموع لفظي تشریح**: منتهي صیغه داسم مفعول ده او دا د انتهاء نه ماخوذ ده او انتهاء په معنی آخري حد ته رسیدل د بوشي. او د منتهی اضافت جموع ته شوي ده. جموع د جمعي نه ماخوذ دي په معنی د جمع والی سره نو پس معنی به د صیغې د منتهی الجموع داشي چي هغه جمع چي دهغې جمع والي انتهاء ته رسیدلی وي نو مطلب دا شو چي یو لفظ جمع شوي وی په یو پېره یا دوه پېرې پدیشان سره چي بیاني جمع کیدل نه راځي په جمع تکسیر سره نو گویا چي په دغه جمع کي جمعیت انتهاء ته رسیدلی وي.

**دمنتهي الجموع اصطلاحي تعریف**: دمنتهي الجموع اصطلاحي تعریف مصنف بخپله ذکر کړی دي یعني هغه صیغه چي دهغي اول او دویم حرف مفتوح وي او دریم حرف په کي الف وي او د الف نه بعد به په کي یا دوه حرفه وي چي اول به مکسور وي او یا به د الف نه ورستو یو حرف

مشدّد وي او بابه دالف نه ورستو دري حرفه وي چې اول به مکسور وي او دويم به ساکن وي (يعني اوسطها ساکن) مثالونه يې مصنفٌ ذکرکړي دي مساجد داجمع دمسجدٌ ده او تعريف دمنتهي الجموع پرې صادق دي نو پس دا غير منصرف دي .دوابٌ داجمع ددابةٌ ده او تعريف دمنتهي الجموع پرې صادق ده نو پس دا غير منصرف دي مصابيح داجمع دمصباحٌ ده او تعريف دمنتهي الجموع پرې صادق دي نو پس دا غير منصرف دي

**فان قيل** دجموع معنی داده چې يوه جمع بيا جمع شي نو دمنتهي الجموع معنی داشوه چې يو لفظ کم از کم دري پيرې جمع شوي وي او که جمع نعتاتري مراد واخلو نو بيا پکار ده چې کم از کم دوه پيرې جمع شوي وي نو پس لفظ دمساجد او مصابيح په يوه پيره جمع شوي دي آيا دا صيغه دمنتهي الجموع نشي جوړيدی او تعريف پرې صادق دي نو څه وجه ده ؟

## ( اعتراضات )

**قلنا** دمنتهي الجموع نه مراد عامه جمع ده که حقيقتاً وي او که حکماً وي لکه لفظ اکالبُ داجمع داکلبٌ ده او اکلبُ جمع دکلبٌ ده او کلب سپي ته ويلی کيږي او دغه شان لفظ داساورُ جمع داسورة ده او اسورة جمع دسوار ده نو پس په اکالب او اساور کې تکرار د جمعې حقيقي دي او په مساجد او مصابيح کې تکرار د جمعې حکمي دي پدې شان سره چې دا په اوزانو دمنتهي الجموع باندې محمول کړی شوي وي.

**فان قيل** لفظ دسراويل او سرابيل.

ټکرې م دزرگۍ تابه تسرُو چوره کوبيلې کړې دوينو به سيلاب کې خيال کوه چرته غوُپه نشي دابه په کافيه کې راشي او دلته خکه ترک کړی شۀ چې په دې کې تفصيل ډيردي.

**غيرقابل للهآ**: دهاء نه مراد تائ مُدوّرَه ده يعني هغه ئ، تانيثي چې هغه په حالت دوقف کې په هابدليږي نو مصنف خکه هاء ذکرکړه . پس ددې عبارت خلاصه داده چې صيغه دمنتهي الجموع به دوه قسمه ده (۱) چې خالي وي دتائ مدوره نه (۲) حې تائ مدوره پورې ملحق شوي وي لکه حياقلت او فرازنة نو ګويا د منتهي الجموع دپاره دتاثير دعدم انصراف دابل شرط شو چې تائ مدوره به پرې نوي راغلي نو پس دابه غير منصرف ګرزي.

**فصياقلة**: داصيغه دمنتهي الجموع ده ليکن دانتفاء دشرط ثاني په وجه غير منصرف نشي جوړيدي صياقله دصيقلٌ جمع ده او صيقل رنګمال کولو ته ويلی شي. يو خيز مرل په رنګمال.

**فرازله:** علی هذ القیاس فرازنه جمع دفرزین ده لوږوته وبلی شي. (لدو) چکه

**فان قیل** مصنفؒ صیغه دمنتهی الجموع مع التاء ولی ردکړه ؟

**قلنا** دغه تاء مدوره په اکثرووختونوکې په مفرداتوکی ملحقه کیږي لکه طوعیة اوکراهیة (په معنی دطاعت اوکراهت) دادواړه مفردات دي نوپه کومه صیغه دمنتهی الجموع کې چې تاء راغلي وي دهغې مشابهت دمفرداتوسره راځی اودمشابهت دمفرداتو دوجی نه په صیغی دمنتهي الجموع کې معنی دجمعیت ضعیفه کیږي یعني جمعیت بې کمزوری کیږي اودعدم انصراف دپاره قوي اومضبوط اسباب درکاروی نومصنف څکه اکتفی نه منتهی الجموع بدون التاء باندي اوکړه . لفظ دجمعی قائم مقام ددوه سببونو دي لکه څنګه چې په الفینو دتانیث کې یوسبب وضعٌبت دتانیث دي اوبل به کې لُزوم دکلمي دي نوګویاایضاً یعني دغه شان جمع هم قائم مقام ددوه سببونو ګرزي یعني په جمع کې یو سبب نفس جمعیت دي اوبل به کې لُزومُ الجمعیت دي.

**نفس جمعیت:** دنفس جمعیت نه مراد دادي چې پخپله جمع ده یعني بذات خود جمع ده.

**لزوم الجمعیت:** یعني جمع والی ورسره په هرحالت کې لازم دي (علی هذالقیاس الالفین) نوګویاپه جمع کې دوه جمعي شوي نوداځکه قائم مقام دسببونو ده .

## بیان د ترکیب

(۷) اَمَّا التَّرْكِيْبُ فَشَرْطُهَا اَنْ يَّكُوْنَ عَلَمًا بِلَا اِضَافَةٍ وَلَا اِسْنَادٍ كَبَعْلَبَكَّ فَعَبْدُاللهِ مُنْصَرِفٌ وَمَعْدِيْكَرِبَ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَشَابَ قَرْنَاهَا مَبْنِيٌّ :

**ترجمه:** هرچه ترکیب ده پس د لپاره شرط دا دی چه دا به علم وی خو بغیر د اضافت نه او بغیر د اسناد نه لکه بعلبک پس عبْدالله منصرف دی او معدیکرب غیر منصرف دی او شاب قرناها مبنی دی

**تشریح** اُووم سبب د اسبابو دمنع صرف نه ترکیب دي.

**ترکیب په لغت کي** مرکب کړلو دیوشي نه وایي. په ازدوکې ېې لغوي معنی جوړولو ده

**په اصطلاح کي** جعل الكلمتين اواكثركلمةواحدةيُّاجعل الكلمتين اواكثركلمة بحيث يطلق عليه الاسم الواحد ګرزول ددوه کلمودي یادزیاتو په دي شان سره چې اطلاق پې په اسم واحدباندي کیږي. پس داتعریف چې په کوم اسم صادق وي هغه په معتبروي دعدم انصراف دپاره.

**فشرطها الخ:** شرط دتاثیردترکیب دپاره دادي چې علم به وي څکه چې اعلام محفوظ دي

دتغیر او تبدیل نه نو پس د ترکیب دپاره : دوه شرطه دي یو علمیت اوبل بلااضافة ولااسناد . ددې عبارت خلاصه داده چې د ترکیب شپږ اقسام دي .

نو پس د مرکب په ټولو اقسامو کې فقط یو قسم چې امتزاجي (ای مرکب امتزاجي ، دی ، معتبر دي دعدم انصراف دپاره اونور ټول غیرمعتبر دي . امتزاج په معنی داتصال سره ، نو ګویا داهغه مرکب ده چې ګرزیدلی وي دوه کلمونه بغیر دربط ، عطف نه لاجزء حرف یعنې حرف به په کې جز ، نوي لکه بصری پدې کې اګرچې دوه کلمې دي لیکن اخری جز ، یا په کې حرف دي .

**فان قیل** مصنف اکتفی فقط په مرکب امتزاجي اوکړه اونورئ ترک کړل څه وجه ده ؟

**قلنا** باقي پنځه مرکبات غیرمعتبر دي څکه چې مرکب اضافي دغیرمنصرف نه منصرف جوړوي نو داځکه ترک دي . او مرکب توصیفي په حکم د مرکب اضافي کې دي یعنې په داورو کې دویم جزء قید داول دپاره او دېته مرکب تقیدي هم وایې نو ګویا داهم ترک دي یعني غیرمعتبر دي . او به مرکب اسنادي کې دوه احتماله دي یو داچې مرکب اسنادي قبل العلمیت وي اودویم داچې بعد العلمیت وي اوهرچې بعد العلمیت وي نو دغه مبني وي او مبنیات معتبرنه دي دعدم انصراف دپاره نو ګویا مرکب اسنادي هم غیرمعتبر دي . مرکب تعدادي اومرکب صوتي دادواړه څکه غیرمعتبر دي چې دادواړه مبني دي او مبنیات دمنصرف او غیرمنصرف مقابل دي یعنې نه منصرف دي اونه غیرمنصرف دي .

**فان قیل** مصنفؒ فقط بلااضافة واسنادذکرکړی دي نودعبارت نه دامعلومیږي چې ددي نه علاوه

نوراقسام دمرکب نومعتبر دي دعدم انصراف دپاره ؟

**قلنا** کوم اقسام چې ترک شوي دي هغه مندرج دي په د مزکوره وو کښ یعنې په انتفاء دمرکب اضافي کې انتفاء دمرکب توصیفي راغله اوپه انتفاء دمرکب اسنادي کښې انتفاء دتعدادي اوصوتي دواړو راغله نو اعتراض دفع شو . مصنفؒ مثالونه ذکر کوي لکه

**بعلبك**: داغیرمنصرف دي څکه چې یو سبب په کې علمیت دي اوبل په کې امتزاج دي تفصیل یې دادي چې بعل دیوبت نوم وو اوبك دقرئي نوم وونو دواړه یوعلم او ګرزید دقرئي دپاره .

**قعبدالله**: دامنصرف دي په انتفاء دشرط ثاني په وجه اګرچې علمیت په کې موجود دي خواضافت په کې راغلی دي دعبداضافت الله ته شوي دي . داالله بنده . نو څکه منصرف دي .

**معدیکرب**: داغیرمنصرف دي څکه چې ترکیب بلااضافت اواسناد به کې د سره دعلمیت نه ،

**شابعَرنٰاهـا:** دامبني دي يعني مقابل دانصراف او عدم انصراف دي خکه چي دااسم بعدالعلميت دي پدي شان سره چي شاب صيغه دفعل ماضي ده په معنی سپين والي اوقرنان تثنيه دقرن ده اوقرن ښکر ته وايي پس دادواړه کلمتين علميت دهغه بوډئ ښځي دپاره گرزيدلی دي چي دهغې دسر دواړه جانبين سپين شوي وو ـ پس دامرکب اسنادي دي.

## الف والنون زائدتان

(۸) اَمَّـا الْاَلِفُ وَالنُّوْنُ الزَّائِدَتَانِ اِنْ كَـانَتَا فِيْ اِسْمٍ فَشَرْطُهُ اَنْ يَكُوْنَ عَلَمًا كَعِمْرَانَ وَعُثْمَانَ فَعَدْنَانُ اِسْمُ نَبِيّ مُنْصَرِفٌ لِعَدَمِ الْعَلَمِيَّةِ وَاِنْ كَانَتَا فِيْ صِفَةٍ فَشَرْطُهُ اَنْ لَايَكُوْنَ مُؤَنَّثُهُ عَلٰى فَعْلَانَةٍ كَسَكْرَانَ فَنَدْمَانُ مُنْصَرِفٌ لِوُجُوْدِ نَدْمَانَةٍ

**ترجمه** بهر حال الف او نون زائدتان کچرته دا دواړه په اسم کښي واقع شوي وي نو دلپاره شرط داده چه دا اسم به علم وي لکه عمران او عثمان پس سعدانٌ دا د وانبو نوم ده منصرف ده دي وجه نه چه علميت نه دی او که چرته دا دواړه صفت واقع شي نو ببا د لپاره شرط داده چه دا به په وزن د فَعْلَانَةٌ به نه راځي لکه سَكْرَانٌ پس نَدْمَانٌ منصرف دی خکه چه د دې مونث په وزن د فعلانة باندي راځي

**تشريح** اتم سبب د اسبابو دمنع صرف نه الف اونون زائدتين دي يعني داهغه الف اونون دي چي راځي دکلمي په آخرکي اوزائدوي په حروف اصليه باندي .نو پس دايو مستقل سبب دي دپاره دمنع صرف . او په سببيت ددي کي اختلاف دي او دوه قوله دي

**يو قول** دادي .دوی وايي چي دا سبب دمنع صرف خکه ده حي دازائدوي په حروف اصليه باندي نو گويادا فرع او گرزيده دحروف اصليه .لکه څنگه چي په نورو اسبابو کي فرعيت دي يعني تادتانيث دپاره فرعه ده وغيره وغيره .پس دا خکه سبب دی.

**دويم قول** .دوی وايي چي داالف اونون زائدتين مشابه د الفينو الف مقصوره الف ممدوده، دتانيث دي نو دوجي دمشابهت نه داهم سبب اوگرزيد .

**فان قيل** مشابهت بي دالفينو سره څنگه دی"

**قلنا** مشابهت بي دادي چي څنگه الفين دتانيث دکلمي په آخرکي راځي دغه شان الف اونون زائدتين هم دکلمي په آخرکي راځي اوبله وجه يې داده چي په عدم انفكاك کي يعني څنگه چي الفين دکلمي نه جدا کيږي دغه شان الف اونون زائدتين هم نه جدا کيږي دکلمي نه. الف اونون

زائدتین نه الف اونون مضارعتین هم وابي یعني دوجي دمشابهت نه دالفینو سره . کچرته الف اونون زائدتین په آخر داسم کي راشي نودهغي دتاثیرد پاره شرط دادي چي علم به وي یعني شرط العلمیت به وي.

**فان قیل** علمیت ورله ولی شرط دي ؟

**قلنا** ځکه چي داالف اونون زائدوي په کلمه کي او کوم شي چي زائدوي هغه محل دتزلزل وي یعني تغیراوتبدیل په کي واقع کیدي شي اودتغیرنه دساتلودپاره علمیت شرط اوګرزید ځکه ان العلم محفوظمن التغیر

**فان قیل** فشرطه کي دضمیرالف اونون نه راجع دي اودراجع اومرجع په مینځ کي مطابقت نشته ځکه چي دضمیرمفردمذکرنه کیږي اوالف اونون تثنیه ده یعني دوه څیزونه دي.

**قلنا** جواب چي داهغه اسم نه راجع دي چې کوم اسم کي الف اونون زائدتین راغلی وي، اواسم مفرد دي پس معنی به يي داشي چي شرط دتاثیردهغه اسم دپاره دادي چي الف اونون په کي زائدراغلی وي

**دويم جواب** مطابقت دراجع اومرجع په مینځ کي شته خوبعد التاويل . یعني باعتبارالمسبب واحدیعني الف اونون زائدتین سبب ته راجع دي او سبب هم مفرددي اومذکردي نومعنی به يي داشي چي شرط دتاثیر دسبب دد غه الف اونون زائدینو دادي چي بشرط العلمیت به وي

**فسعدان** فاتفریعیه ده سره سعدان منصرف ده ځکه چي دا اسم جنس ده دبوټی نوم دي په صحرا کښ پیدا کیږي یعني علمیت په کي نشته اګرکه الف اونون زائدتین په کښ راغلی دي . کـه چیرته الف اونون زائدتین بـه اسم صفت کي راغلی وي نـو دهغي دتاثیردپاره شـرط دادي چـي مؤنث بـه يي د فعلانـة پـه وزن نـه وي لکـه لفظ دسـكران غیرمنصرف دي ځکه چي مؤنث يي په وزن دفعلی دي ، سکری ، نه دفعلانة په وزن .

**فان قیل** شرط دعدم فعلانة داسم صفت دپاره ولي دي ؟

**قلنا** داځکـه چـي الـف اونـون زائدتـین ملحـق کیـږي بـه آخردکلمـي کـي اودامشـابهت دالفینو دتانیث سره ساتي اوهرکله چي تا، تانیثی داسم صفت په مؤنث کي داخله شي نودغه مشابهت به ضعیف شي لهذا انتفاء دفعلانة شرط ځکه دي چي مشابهت يي ضعیف نشي.

**سکران** :(دنشي حالت) داغیرمنصرف دي ځکه چي دوسبب په کي الف ونون زائدتین دي اوبل په کي انتفاء دفعلانة ده یعني دسکران مؤنث به وزن فعلی دي چي سکرای دي

**ندمان**(ندمان دوست نه وايي): دامنصرف دي ځکه چي مؤنث يې په وزن دفعلانة دي چي ندمانة دي په عدم فعلانة کي اختلاف دي بعض وايي چي اسم صفت مع الالف والنون زائدتان به په هغه وخت غیرمنصرف وي چي مؤنث يې دفعلانة په وزن نه وي راغلی اوبعض وايي چي په هغه وخت بـه غیرمنصرف وي چي مؤنث يې دفعلی بـه وزن وي . نـو پـس لفظ دسکران ددواړومذهبینو په نزد باندي غیرمنصرف دي اولفظ دعدنان هم ددواړوپه نزد منصرف دي. لیکن اختلاف په رحمان کي دي نوځوك چي انتفاء دفعلانة کوي نو دهغوپه نزد غیرمنصرف دي ځکه چي مؤنث يې دفعلانة وزن نشته اوځوك چي انتفاء دفعلی کوي نو دهغوپه نزد منصرف دي ځکه چي مؤنث يې بالکل نشته (بلکه داد الله صفتي نوم اسم مبالغه ده)

## وزن الفعل

(۹) أَمَّا وَزْنُ الْفِعْلِ فَشَرْطُهُ أَنْ يَخْتَصَّ بِالْفِعْلِ وَلَا يُوجَدُ فِي الْإِسْمِ إِلَّا مَنْقُوْلًا عَنِ الْفِعْلِ كَشَمَّرَوَضُرِبَ وَإِنْ لَمْ يَخْتَصَّ بِهِ فَيَجِبُ أَنْ يَكُوْنَ فِيْ أَوَّلِهِ إِحْدٰى حُرُوْفِ الْمُضَارِعَةِ وَلَايَدْخُلُهُ الْهَاءُ كَـأَحْمَدَ وَيَشْكُرَ وَتَغْلِبَ وَنَرْجِسَ فَيَعْمَلُ مُنْصَرِفٌ لِقُبُوْلِهَا الْهَاءَ كَقَوْلِهِمْ نَاقَةٌ يَعْمَلَةٌ.

**توجمه** هر چه وزن فعل دی د لپاره شرط دا دی چه دا سه خاص وی فعل سره او اسم کښی به موجود نه وی اسم کښی به موجود وی سه هغه وخت حکله د فعل نه منتقل شوی وی لکه شَمَّرَ وَضُرِبَ کچرته فعل پوری خاص نه وی نو بیا واجب ده چه د دی په اول کښی به د حروف مضارعیتو نه یو حرف راغلی وی او ها، به ورباندی نه داخلیږی لکه أَحْمَدَ وَيَشْكُرَ وَتَغْلِبَ وَنَرْجِسَ پس يَعْمَلُ منصرف دی ځکه چه ها، قبلوی لکه پدی قول کښی نَاقَةٌ يَعْمَلَةٌ.

**تشريح** نهم سبب داسبابو دمنع صرف نه وزن فعل دی (او ددي نه مراد هغه وزن دي چي کوم مختص وي په افعالو پوري اوپه اسمـؤ کي نه موجود يږي مگربعدالنقل.) چي په اصل وضع کي مختص وي په فعل پوري اوبيا نقل شي اسم ته، اوزان به دري قسمه دي . (دفعل اوزان په صفحه ۴۸ ملاحظه دي)

(۱) هغه وزنونه چي هغه مختص وي په افعالو پوري.

(۲) داسي وزنونه چي هغه مختص وي په اسماؤ پوري.

(۳) داسي وزنونه چي هغه مشترك وي په مابين داسم او فعل دواړو کي.

دلته مراد هغه وزن دي چي مختص بالفعل وي نو دا به مؤثر د منع صرف دپاره گرزي.

**فان قيل** اختصاص بالفعل شرط ولي دي؟ اختصاص بالاسم ولي نه شرط کيږي؟

**قلنا** اختصاص بالفعل شرط ځکه دي چې تمام اسباب فرعي دي مثلاً تانيث هم فرع دمزکر ده او دغه شان جمع فرع د تثني ده او معرفه فرع د نکري ده وغيره پس وزن الفعل هم فرع پکار ده نو اختصاص بالفعل فرع ده د اختصاص بالاسم په دي شان سره چې اسم اصل اسم اصل دي يعني مستقل في المعني ده يعني په کلام کي فعل او حرف ته محتاج نه دي . او فعل فرع ده ځکه چې مستقل في المعني نه ده په خلاف د اسم نه، دي او فعل فرع ده نو ګويا اوزان د فعل هم فرع دي د اوزانو د اسم نه پس دنورو اسبابو شان وزن الفعل فرع ده د وزن الاسم.

**ولايوجد في الاسم الامنقولاعن الفعل كشمّروضُرِبَ**: خلاصه د عبارت داده چې دغه وزن به په اسم کي موجود يږي ليکن به اصل وضع کي به دغه وزن مختص په فعل پوري وي. او بيا به نقل شوي اسم ته وي يعني بعد النقل يوجد في الاسم. نو ګويا وزن الفعل په دوه قسمه شو

(۱) هغه چې مختص بالفعل وي

(۲) هغه چې مختص بالاسم وي بعد النقل. لکه مثال شمّر دا په اصل کي فعل دي صيغه دفعل ماضي معروف د باب تفعيل ده په معني دامن پچيدن.

## اعتراضات په تعريف دجمعي

يعني لمَن راغونډول (جنګ ته تياري کړي ده هغه يو کس)، بعد النقل دا د آس نوم ګرزيدلي دي او دهغه اس نوم دي کوم چې دحجاج بن يوسف وو. پس دا غير منصرف دي.

**ضُرِبَ**: دا صيغه دفعل ماضي مجهول ده ليکن دفعليت نه اسميت ته نقل شوي ده يعني دا دهغه چا نوم ګرزيدلی ده چې وهل يې خورلي وي. نو ضُرِب ورته خلق وايي پس دا هم غير منصرف دي يو سبب په کي وزن الفعل دي او بل علميت دي. او کچرته مختص نه شي په فعل پوري نو بيا دهغي د تاثير د پاره شرط دادي چې په اول کي يې دحروفو مضارعتينو نه يو راشي او حروف مضارعتين دادي (اتين). وجه يې داده چې اتين دخواصو دفعل مضارع نه دي پس چې کوم لفظ مشتمل وي په يو د اتين نو ګويا هغه به مشابه دفعل او ګرزي او ور سره به دا شرط هم وي چې په آخر کي يې تاء مدوّره نه وي: مابحال الوقف جعل الهاء، يعني چې په حالت د وقف کي په هاء بدليږي.

**فان قيل** تاء مدوّره ولي ممنوعه ده په هغه وزن فعل چې مشتمل به بو د اتين (حروف

مضارعت ا ت ی ن مجموعه اتین وي؟

**قلنا** دغه قسم تاء پرې ممنوعه څکه ده چې تاء خاصه داسم ده نوبیابه جانب داسمیت راجع شي دجانب دفعلیت نه او چې اسمیت ته راجع شي نوبیابه دغه کلمه غیر منصرف وي څکه چې اسم اصل دي او اصل په اسماؤکې انصراف دي. پس مصنف څکه ولایدخل الهاء.

**فان قیل** ولایدخله الهاء. ددې نه دامعلومیږي چې ها، بې په آخرکې نوي

**قلنا** داپه اعتبارد مَایَئُولُ اِلَیْهِ سره مجازاً لکه مثال طالب ته خلق مولوي صاحب وائي نوپه اعتبار دمایئول الیه سره مجازاًځکه چې دي لاعالم نه دي بلکه چې کله فارغ شي نوبیابه مولوي صاحب شي نو دغه شان دها، نه مراد هغه ت ، ده حې کله پرې وقف اوشي نو هله به ها، شي.

**امثله: اَحْمَدُ. یَشْکُرُ. تَغْلِبُ. نَرْجِسُ**: داټول غیرمنصرف دي څکه چې په اول کې يې اتين راغلي دي او داخلور واړه اعلام دي ،سرواومصنف خلور مثالونه څکه ذکرکړي دي چې اتين هم خلوردي ، پس په نرجس باندې سوال دې حې عرب خو ددې په آخرکې تاء مدوره وایي یعني نرجس وایي **جواب** دادی چې کله پرې تاء داخله شي نوپه هغه وخت کې اسم جنس وي.

**فیعمل الخ**: داغیرمنصرف دي څکه چې یعمل قابل دتاء دی لکه عرب قوي اوښې ته ناقة یعملة وایي پس کچرته یعمل ديوسړي نوم اوګرزي پشان دنرجس نوبیابه غیرمنصرف وي.

وَاعْلَمْ اَنَّ کُلَّ مَاشُرِطَ فِیْهِ الْعَلَمِیَّةُ وَهُوَالْمُؤَنَّثُ بِالتَّاءِ وَالْمَعْنَوِیُّ وَالْعُجْمَةُ وَالتَّرْکِیْبُ وَالْاِسْمُ الَّذِیْ فِیْهِ الْاَلِفُ وَالنُّوْنُ الزَّائِدَتَانِ اَوْ لَمْ تُشْتَرَطْ فِیْهِ ذٰلِكَ وَلٰکِنْ اِجْتَمَعَ مَعَ سَبَبٍ وَاحِدٍ فَقَطْ وَهُوَالْعَلَمُ الْمَعْدُوْلُ وَوَزْنُ الْفِعْلِ اِذَانُکِّرَ صُرِفَ اَمَّا فِی الْقِسْمِ الْاَوَّلِ فَلِبَقَاءِ الْاِسْمِ بِلَاسَبَبٍ وَاَمَّا فِی الثَّانِیْ فَلِبَقَائِهٖ عَلٰی سَبَبٍ وَاحِدٍ تَقُوْلُ جَاءَنِیْ طَلْحَةٌ وَطَلْحَةٌ اٰخَرُ وَقَامَ عُمَرُ وَعُمَرٌ اٰخَرُ وَضَرَبَ اَحْمَدُ وَاَحْمَدُ اٰخَرُ وَکُلُّ مَالَایَنْصَرِفُ اِذَا اُضِیْفَ اَوْ دَخَلَهُ اللَّامُ دَخَلَهُ الْکَسْرَةُ نَحْوُ مَرَرْتُ بِاَحْمَدِکُمْ وَبِالْاَحْمَدِ.

**ترجمه** پوهه شه چه هر هغه غیر منصرف چه په کښې علمیت شرط وی او دا اسم عبارت ده له مؤنث بالتاء، نه اوله مؤنث معنوی، او عجمه اوله ترکیب نه او د هغه اسم نه چه په کښې الف او نون زائد تان وی او هغه غیر منصرف چه په کښې علمیت شرط شوی نه وی خو لیکن جمع شوي وی د یو سبب سره فقط او غیر منصرف عبارت ده د هغه اسم نه چه په کښې عدل وی او هغه علم نه چه په کښې وزن فعل وی نو چکله غیر منصرف کښې

علمیت شرط ده او یا په کښی د بل سبب سره جمع شوی ده نکره کړي شی نو منصرف کړی هرچه قسم اول د منصرف والی ده نو داد دی وجه نه چه بلا سبب پاتي کیږي چه نکره کړی شی او هرچه منصرف والی د دویم قسم ده نو داد دی وجه باقي پاتي کیږي چه سبب واحد ده لکه ته اوواتی جاء نی طلحة و طلحة اخر وقام عمر و عمر آخر و ضرب احمد و احمد آخر هر هغه اسم چه منصرف نه وی چه کله مضاف شی او یا وربانديِ الف لام داخل شی نو بیا به وربانديِ کسره داخلیږی لکه مررت باحمد کم و بالاحمد

**تشریح**: پدي علم کي د غیر منصرف نه د منصرف جوړولو طریقه او ضابطه بیانیږي. خلاصه د عبارت داده چي په ټولو اسبابو د منع صرف کي بعض اسباب داسي دي چي علمیت په کي راغلی وي او علمیت د راتلو دوه حیثیتونه دي (۱) یو داچي علمیت په کي شرط د تاثیر د عدم انصراف وي او دویم سبب په کي هم ګرزي یعني جمع کیږي، بعني علمیت ورسره جمع کیږي، هم (۲) دویم داچي علمیت په کي بغیر د شرط تاثیر نه جمع کیږي. یعني دویم سبب وي فقط پس چي کوم علمیت شرط د تاثیر وي نو هغه اسباب څلور دي (۱) تانیث لفظي ومعنوي (۲) عجمه (۳) ترکیب (۴) الف او نون زائدتین. او کوم علمیت چي شرط د تاثیر د پاره نه وي بلکه همسي جمع کیږي د بل سبب سره نو هغه دوه دي فقط یو عدل دي او بل وزن الفعل دي. پس زده کړه داخبره چي د کومو اسبابو سره علمیت شرط دي نو د هغي د منصرف جوړولو طریقه داده چي د هغي نه نکره جوړه کړي شي نو پس منصرف به او ګرزي.

**فان قیل** په نکري سره انصراف ولي موجود یږي؟

**قلنا** داځکه چي په کوم سبب کي علمیت شرط وی سره د سببیت (یعني په جمع کیږي ورسره او شرط د تاثیر هم وي. نه نو پس دغه علمیت منتفي شي د نکري په وجه یعني غیر معین شي او هرکله چي علمیت منتفي شي نو یو سبب تري ختم شو چي علمیت وو او س خبري ته خیال کوه داعلمیت شرط د تاثیر وو د باقي سبب لپاره نو هر کله چي علمیت منتفي شو نو به انتفاء د شرط سره انتفاء د مشروط راځي نو دغه سبب بلا سبب پاتي شو نو ځکه منصرف او ګرزید. یعني دواړه سببین په کي د نکري د وجي نه ختم شو. او د کومو سببونو سره چي علمیت شرط نه وي مګر سبب وي نو د نکري په وجه به فقط علمیت غورزیږي پس چي علمیت تري لار شي نو یو سبب به باقي شي او یو سبب نه کافي کیږي د عدم انصراف د پاره. نو ځکه به منصرف وګرزي. ددي ورستوي زده کړه داخبره چي د نکري د جوړولو دوه طریقي دی

(۱) يوه ضابطه داده چې دعلميت نه به تعبيرد جمعت په هرسوفرد اوګرزي يعني شان سره لکه زيد يوذات معين ، معرفه ، دي اوپه(ق : جماعت دزيد مشتمله ده په افرادو يسې چې دهرفردنه تعبيرپه زيد سره اوکړي شي نوزيد اوس غيرمعين شوځکه دلالت په ټولو افرادو باندي کوي . يعني نکره شوه .

(۲) دويمه ضابطه داده چې علميت عبرت اوګرزي دوصف نه اوداسي وصف چې شامل وي افرادولره لکه مثال لِكُلِّ فرعونٍ موسى ، هريوفرعون دپاره موسى دي . پس چې دفرعون نه تعبيرپه مُبْطِلْ سره اوکړی شي او دموسى نه تعبيرپه مُحِقْ سره اوکړی شي او اوويلى شي چې . لکل مبطل محق . دهربيته ونکي دپاره حق پرست شته . پس ځکه منصرف دي چې کسره بې قبوله کړې ده : دوچې دعلم والي نه . مصنفٌ دعبارت په آخرکې دعدم انصراف نه دانصراف دوه طريقې نوري بياني .

(۱) يو داده چې اضافت بې اوکړی شي لکه مررت باَحْمَدِ كُمْ داحمداضافت کوم ته شوي دي اوکسره بې قبوله کړې ده

(۲) دويمه داچې کله په غيرمنصرف لام التعريف داخل شي لکه بالاحمد

**فان قيل** داضافت اولام التعريف په داخليدوسره کسره دولې قبلوي ؟

**قلنا** په غيرمنصرف باندي کسره اوتنوين ممنوع دوځکه چې دي مشابه دفعل وو او په فعل هم ممنوع وو پس چې کله پري الف لام داخل شوبا اضافت بيل نه اوشونوجانب داسميت په کي راجح شودجانب دفعليت نه ځکه چې اضافت اولام التعريف داسم خواص دي پس جانب دفعليت په کې ضعيف شواوضعيف فرع : قوي ده نوګوياسميت نه راجع شواوس به پري کسره اوتنوين راځي اګرکه سببين په کې موجود وي .

**فان قيل** چې سببين په کې موجود وي نوبياخوپکار ده چې غيرمنصرف وي ؟

**قلنا** ستاخبره صحيح ده چې سببين په کې موجود دي ليکن داضافت اولام دوجې نه په سببينوپرده راغله اوسببين په کې ګوياپټ شو .

# اَلْمَقْصَدُالاَوَّلُ فِی الْمَرْفُوْعَاتِ

اَلْاَسْمَاءُ الْمَرْفُوْعَاتُ ثَمَانِيَةُ اَقْسَامٍ اَلْفَاعِلُ وَمَفْعُوْلُ مَالَمْ يُسَمَّ فَاعِلُه وَالْمُبْتَدَاُ وَالْخَبَرُوَخَبَرُاِنَّ وَاَخَوَاتِهَا وَاِسْمُ كَانَ وَاَخَوَاتِهَا وَاِسْمُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ وَخَبَرُلَا الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ:

**ترجمه** د مرفوعاتو اته اقسام دي (۸) قسمه دي (۱) فاعل (۲) مفعول مالم يسم فاعله (۳) مبتداء (۴) خبر (۵) انّ او ددی د اخواتو چه کوم خبروی (۲) انّ او ددی د اخواتو اسم (۷) ما ولا چه کوم د لیس سره مشابه وی د هغی اسم (۸) او د هغی لا خبر چه کوم جنس نفی دپاره راځی

**تشریح** هرکله چې مصنفؒ فارغ سو د مقدمې نه نو شروع یې او کړه په مقاصدو ثلاثو کې. اول مقصد په مرفوعاتو کې دویم په منصوباتو کې او دریم په مجروراتو کې.

**ترکیب** المقصد موصوف الاول یې صفت موصوف سره د صفت نه مبتداء في جار المرفوعات مجرور جار سره د مجرور نه د امتعلق شو په ثابتٌ مقدر پوري ثابت سره د خپل متعلق نه خبر شو د مبتدا مبتدا سره د خبرنه جمله اسمیه خبریه.

**فان قیل** د مقاصدو په بیان کې مصنفؒ بحث د مرفوعاتو ولې مقدم کړو په د نورو باندې؟

**قلنا** داځکه چې مرفوعات په نسبت د منصوباتو او مجروراتو باندې اصل دي او د اصلیت دپاره یې دوه وجې دي (۱) بوداچې مرفوعات تول په ضمې سره دي او ضمه قوي ترحرکت دی په نسبت د فتحې او کسرې سره. (۲) بله داچې تول مرفوعات یا فاعل وي او یا غالباً مسند الیه وي په کلام کې یعنې مرفوعات عمده في الکلام وي او منصوبات او مجرورات فضله في الکلام وي نو پس د دوه وجو هو په بناء سره بیان د مرفوعاتو مقدم دي په د نورو باندې.

**فان قیل** په المقصد کې دوه احتماله دي او دواړه غیرصحیح دي یو احتمال دادی که المقصد صیغه د ظرف شي نو ظرف په دوه قسمه دي یو ظرف مکان دی او بل ظرف زمان دی نو معنی به یې داسې جې دابه زمان یا مکان د مرفوعاتو قصدشي نو دامعنی باطله ده یعنې غیرصحیح ده.

دویم احتمال دادي چې المقصد صیغه د مصدر میمي شي نو معنی به یې داشي چې قصدٌ مرفوعاتو دادی نو داهم غیرصحیح ده یعنې غلط ده؟

**قلنا** القصد په معنی د مفعول په سره اوتقدیر د عبارت داسې دي چې المقصود الاول (ثابت) في المرفوعات پس چې کومه صیغه د ظرف او مصدر میمي سره غیرصحیح وي نو هغه صیغه به په معنی د مفعول به سره ګرزي او ددي دپاره په عربو کې ډیر نظائر موجود دي لکه د ظرف دپاره مثال

مشربٌ عذبٌ دلته معنی په ظرف سره غیرصحیح ده نو مشرب په معنی دمشروبٌ سره مستعملیږي او دمصدر میمي دپاره مثال لکه هذا ضرب الامیر دلته ضرب په معنی دمضروبٌ سره تعبیر کړي شوي دي پس دیته نظائر دلغت عربي وایي.

**فان قیل** مرفوعات صیغه دجمعي مؤنث سالمي ده او مفرد یې مرفوع ده مذکر ده نو پکار ده چې دمرفوعات په ځای مرفوعون یا مرفوعین راغلی وي ؟

**قلنا** اول جواب دادي چې دیته جمع شاذه وایي لکه سُنُون جمع دسُنَةٌ ده نو پکار ده چې دسنته جمع په الف او تا سره راغلي وي نو پس دیته جمع شاذه وایي -یعني شاذه (شاذه دیته وایي چې دقاعدي خلاف وي)

**تفصیلی جواب** المرفوعات جمع جائزه ده ځکه چې مرفوع غیرذي عقل دي او داضابطه ده چې دغیر ذي عقل جمع په الف او تا، سره جائزه ده دوچي دمشتهت دمؤنث سره یعني مؤنثات په نسبت دذکورو ناقص العقل والدین دي نو نحویان عدیم العقل قیاس کوي په ناقص العقل باندي نو ځکه مرفوعات جمع مؤنث سالمه ذکر شوي ده.

**فان قیل** تقسیم فرع دتعریف ده نو مصنفٌ له پکار وو چې اول یې دمرفوع تعریف ذکر کړی وی ځکه چې معرفت دیوشي باندي بیان دیوشي موقوف وي .(ضابطه په تحریر کولو کې الته لکلی شوي ده او دلته صحیح ذکر ده یعني بیان دیوشي موقوف وی په معرفت دیوشي باندي)

**قلنا** په تعریف نه راوړلو سره مصنفٌ دمبتدئینو رعایت کړی دي ځکه چې مبتدیان دجزئیاتو طرف ته نظر کوي نه دکلیاتو طرف ته یعني دمبتدي فهم کمزوری وي او حصول دجزئ اسان وي په فهم کې په نسبت دکلي. او تعریف دمعقولاتو نه دي نو ځکه مصنفٌ تعریف دمرفوع ذکر نه کړو. تعریف دمرفوع په کافیه کې داسي مذکور دي المرفوع کلٌ اسم مشتمل علم الفاعلیة.

**الفاعلیة**: یعني هرهغه اسم ته ویلي کیږي چې مشتمل وي په علامې دفاعلیت باندي.

**فان قیل** الاسماء المرفوعة. اسماء جمع داسم ده او مرفوعٌ واحد ده نو په صفت او موصوف کې مطابقت نشته ؟

**قلنا** په المرفوعة کې ضمیر اسماء ته مستند دي او هر کله چې صفت مشتقه دغیر جمعي طرف ته مستند وي نو پیدي صورت کې واحد او جمع راوړل دواړه جائزدي لکه عرب مثال پیش کوي لکه الایام الخالیات والخالیة. دصفت مشتقه حکم دافعالو ماننددي)

# د فاعل تعریف

**فَصْلٌ:** اَلْفَاعِلُ كُلُّ اِسْمٍ قَبْلَهٗ فِعْلٌ اَوْصِفَةٌ اُسْنِدَ اِلَيْهِ عَلٰى مَعْنٰى اَنَّهٗ قَامَ بِهٖ لَا وَقَعَ عَلَيْهِ نَحْوُ قَامَ زَيْدٌ وَزَيْدٌ ضَارِبٌ اَبُوْهُ عَمْرًا وَمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا

**ترجمه** فاعل هغه اسم ده چه د هغی نه مخکښ فعل یا د اسی صفت وی چه اسم طرفته نې اسناد شوی وی په اسی طریقې سره چه دا فعل یا صفت دی سره قائم وی نه په ده باندی واقع وی لکه قَامَ زَيْدٌ وَزَيْدٌ ضَارِبٌ اَبُوْهُ عَمْرًا وَمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا

**تشریح** هر کله چې مصنفؒ فارغ شو د اجمال د مرفوعاتو نه نو شروع یې په تفصیل د هر واحد سره او کړه. مرفوعات مصنفؒ اته (۸) ذکر کړی دی او د هغې نه اول قسم فاعل ده.

(۱) **اسم فاعل:** فان قیل مصنفؒ فاعل ولی مقدم کړی دې په نورو اقسامو باندې؟

**قلنا** د اسم فاعل د تقدیم دپاره وجه داده چې فاعل جزء د جملې فعلیې ده او جمله فعلیه اصل ده په نسبت سره جملې اسمیې ته چې کله جمله فعلیه اصل شوه نو جزء د جملې فعلیې هم اصل شو نو اسم فاعل خکه مقدم دې په نورو باندې. او د جملې فعلیې د اصالت دپاره وجه داده چې په جملې فعلیې سره مقصود حاصلیږی او مقصود د جملې نه اخبار و کول دې د هغه کار نه چې په یو زمانه کې واقع شوي وي نو دیته مقصد د جملې وایې. **په فاعل او اسم فاعل کې فرق** په مابین د دوي کې فرق په یو نکتې سره دې هغه دا چې فاعل جامد وي او اسم فاعل مشتق وي لکه د فاعل مثال زیدٌ او د اسم فاعل مثال ضاربٌ پس زده کړه د اخبره چې فاعل په لغت کې کار کننده ته وایې او په اصطلاح کې فاعل (شبه فعل دیته وایې چې فعل وي لیکن مشابه وي په عمل کې د فعل سره او مصنفؒ تری تعبیر په صفت سره کړی دی) هر هغه اسم دې برابره خبره ده که حقیقتاً وي او که تقدیراً وي مخکې دده نه فعل وي یا شبه فعل وي چې هغه مسند شوي وي په اسناد ایجابی یا سلبی سره په دې شان سره چې دغه فعل یا شبه فعل قائم وي په معنی کې د دغه فاعل سره او واقع نه وي لکه قام زیدٌ مثال د فعل دې زید فاعل دی. زیدٌ ضارب ابوهٗ عمراً د امثال د شبه فعل دې پس زید مبتداء او ضارب شبه فعل دې ابوه فاعل دې او عمراً یې مفعول به دی. ضرب زید عمراً د امثال د ایجابی دې او ما ضرب زید عمراً د امثال د سلبي دې یعنې زید د ماضرب دپاره فاعل دې.

**فان قیل** د تعریف نه د امعلومیږی چې فاعل به همیشه اسم وي پس په مثال مذکور کې

خو اسم نه دي بلکه فعل دي لکه اعجبني ان يضرب زيد۔ اعجبني فعل دي او ان يضرب زيد يې فاعل دي پس تعريف منقوض دي په مثال مذکور باندي.

**قلنا** زمونږ مراد عام دي که حقيقتاً وي او که تقديراً وي؛ يعني تاويلاً، پس مثال مذکور کي ان يضرب راغلی ده ليکن دا تاويلاً دي پدي شان سره چي ديضرب مصدر ضربٌ دي چي کله پري ان داخل شو نو بيا په معنی د مصدر سره او ګرزيد او مصدر نو وي مګر اسم وي، (اسم مشتقي)

**فان قيل** په اسند کي ضمير مفرد دي او دا راجع ده فعل او شبه فعل ته (صفة) يعني مثنی ته راجع دي پس د راجع او مرجع په مينځ کي مطابقت نشته؟ پکار ده چي اسندو يلی شوي وي.

**قلنا** دلته ضمير واحد دي ليکن په تاويل او په اعتبار د کل واحد او احد سره دي پس معنی به دعبارت داشي چي اسناد بې شوي وي ذهر واحد فعل نه په اسناد ايجابی يا سلبی سره. په لاوقع عليه سره احتراز راغلی د صفت مشبه نه او د اسم تفضيل وغيره نه. يعني پدي سره احتراز راغلی د مفعول به نه خکه چي په اسم فاعل پوري فعل قائم وي او واقع شوي وي په مفعول به باندي.

**وَكُلُّ فِعْلٍ لَابُدَّ لَهُ مِنْ فَاعِلٍ مَرْفُوْعٍ مُظْهَرٍ كَذَهَبَ زَيْدٌ اَوْ مُضْمَرٍ بَارِزٍ كَضَرَبْتُ زَيْدًا اَوْ مُسْتَتِرٍ كَزَيْدٌ ذَهَبَ وَاِنْ كَانَ الْفِعْلُ مُتَعَدِّيًا كَانَ لَهُ مَفْعُوْلٌ بِهٖ اَيْضًا نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا.**

**ترجمه** هر فعل لپاره ضروري وی فاعل داسی فاعل چه هغه به ظاهر وی لکه ذَهَبَ زَيْدٌ يا به ضمير بارز وی لکه ضَرَبْتُ زَيْدًا يا به ئې ضمير مستتر وی لکه زَيْدٌ ذَهَبَ کچرته فعل متعدی وی نو د لپاره به مفعول به وی لکه ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا

**تشريح:** او هر فعل لره لابُدي ده د فاعل نه يعني بغير د فعل نه فاعل نشي موجود کيدي برابره خبره ده که دغه فاعل اسم ظاهر وي او که اسم ضمير وي او بيا برابره خبره ده که دغه ضمير بارز وي او که مستتر وي دي دپاره وجه دا ده چي په اصل کي افعال اعراض (اعراض د عرض جمع ده او عرض دبته وايي لکه مثلاً چونه عرض دي او د دي دبارزمقام به ضروري وي يعني ديوال) دي او دهر عرض دپاره ما قام په پکار وي نو ګويا فاعل مقام به د فعل عرض ياحد دپاره دي. نو فاعل خکه ضروري وي د فعل دپاره. دالفاعل کل اسم نه تعبير يدی سره ده که فعل لازمي وي او که متعدي وي (وان کان الفعل متعديا) يعني په هر واحد دي د او کي به ور سره فاعل ضروري دي البته فرق په د او کي د و مره ده چي فعل لازمي تماميږي په فاعل فقط او نوي ضروت ورته د مفعول به. او فعل متعدي به عکس دي چي نه تماميږي بغير د مفعول به نه نو پس د فعل متعدي سره مفعول به ضروري شو سره د فاعل نه.

وَاِنْ كَانَ الْفَاعِلُ مُظْهَرًا وُحِّدَ الْفِعْلُ اَبَدًا نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ وَضَرَبَ الزَّيْدَانِ وَضَرَبَ الزَّيْدُوْنَ كَ كَانَ مُضْمَرًا وُحِّدَ لِلْوَاحِدِ نَحْوُ زَيْدٌ ضَرَبَ وَثُنِّيَ لِلْمُثَنّٰى نَحْوُ الزَّيْدَانِ ضَرَبَا وَجُمِعَ لِلْجَمْعِ نَحْوُ الزَّيْدُوْنَ ضَرَبُوْا

**ترجمه** كچرته فاعل اسم ظاهر وى نو فعل به هميشه واحد راوړلي شي لكه ضَرَبَ زَيْدٌ ضَرَبَ الزَّيْدَانِ اوضَرَبَ الزَّيْدُوْنَ كچرته فاعل مضمر وى نو بيا به فعل واحد راوړلي شي كه فاعل واحد وى او كه فعل تثنيه وى نو فعل به هم تثنيه راوړلي شي او كچرته فاعل جمع وو نو فعل به هم جمع راوړلي شي د تولو مثالونه لكه زَيْدٌ ضَرَبَ او اَلزَّيْدَانِ ضَرَبَا او اَلزَّيْدُوْنَ ضَرَبُوْا

**تشريح** د دي قاعدي مفهوم دا سي دي چي فاعل په دوه قسمه راتلى شي يعني كله به ظاهروي او كله اسم ضميروي بس چي كله فاعل اسم ظاهروي نو دغه فاعل فعل به هميشه واحد ذكر كولى شي يعني برابره خبره ده كه دغه فاعل اسم ظاهر واحد وي او كه تثنيه وي او كه جمع وي نو فعل به يي واحد وي لكه امثله دادي د واحد مثال ضرب زيدٌ د مثنى مثال ضرب الزيدان د جمعي مثال ضرب الزيدون. او كه فاعل اسم ضميروي نو فعل به د فاعل موافق راخي لكه مثالونه يي دادي. وحد للواحد نحو زيد ضرب اوفعل (دفعل نه مراد هغه فعل دي چي منسوب وي دغه فاعل ته) به ذكر كولى شي واحد دهغه فاعل دپاره چي اسم ضمير واحد وي.

وثُنّي للمثنى نو الزيدان ضربا وجمع للجمع نحو الزيدون ضربوا

**فان قيل** څه وجه ده چي فاعل اسم ظاهروي نو فعل به يي هميشه واحد ذكر كيږي.

**قلنا** يو وجه داده چي د فعل تثنيه والى او جمع والى ته حاجت نشته څكه چي فعل واحد تثنيه او جمع راخي نو دادي وجه چي تعين د فاعل اوشي چي واحد دي كه تثنيه ده او كه جمع ده. كله چي فاعل اسم ظاهروي نو پيدي وجه دفاعل تثنيت او جمعيت ته حاجت نشته څكه چي ظاهروي دويمه وجه داده چي په وخت د تثنيت او جمعيت كي به لازميږي تكرار د فاعل په بناء د ضمائر و مستتر و سره لكه ضربوا زيدون پدي مثال كي زيدون فاعل اسم ظاهر دي لېكن په ضربو كي هم فاعل مستتر دي چي ضمير دهم دي نو بس تكرار لازم شو د فاعلينو او دا باطل دي نو څكه به د فاعل اسم ظاهر فعل هميشه واحد راخي. هغه فعل چي منسوب وي فاعل ته.

وَاِنْ كَانَ الْفَاعِلُ مُؤَنَّثًا حَقِيْقِيًّا وَهُوَ مَا بِاِزَائِهٖ مُذَكَّرٌ مِنَ الْحَيْوَانِ اُنِّثَ الْفِعْلُ اَبَدًا اِنْ لَمْ تَفْصِلْ بَيْنَ الْفِعْلِ وَالْفَاعِلِ نَحْوُ قَامَتْ هِنْدٌ وَاِنْ فَصَلْتَ فَلَكَ الْخِيَارُ فِي التَّذْكِيْرِ وَالتَّانِيْثِ نَحْوُ ضَرَبَ الْيَوْمَ هِنْدٌ وَاِنْ شِئْتَ قُلْتَ ضَرَبَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ وَكَذٰلِكَ فِي الْمُؤَنَّثِ الْغَيْرِ الْحَقِيْقِيِّ نَحْوُ طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَاِنْ شِئْتَ قُلْتَ طَلَعَ الشَّمْسُ هٰذَا اِذَا كَانَ الْفِعْلُ مُسْنَدًا اِلَى الْمُظْهَرِ وَاِنْ كَانَ مُسْنَدًا اِلَى الْمُضْمَرِ

اَبْدًا نَحْوُ الشَّمْسِ طَلَعَتْ.

**ترجمه**: کچرته فاعل مونث حقیقي وی او مونث حقیقي هغې ته وئیلې شي چه په خپله هم حیوان وی خو په مقابله کښې مزکر حیوان وی نو فعل به همیشه مونث راوړلې شي، کچرته د فعل او فاعل په مینځ څه شې فاصل نه وی لکه قَامَتْ هِنْدٌ، کچرته فعل او فاعل په مینځ کښې فاصل وو بیا تا ته اختیار دې چه فعل مذکر راوړې او که مونث لکه ضرب الیوم هند کچرته ستا خوخه وی ضربت الیوم هندٌ هم وئیلې شي. همدغه رنګې په مونث غیر حقیقي کښې هم وی لکه طلعت الشَّمْسُ هم وئیلې شي او طلع الشَّمْسُ هم وئیلې شي. داپه هغه وخت کښې چه کله د فعل اسناد اسم ظاهر طرف ته شوی وی او کچرته د فعل اسناد ضمیر طرف ته شوی وی نو بیا به فعل همیشه مونث راوړلې شي لکه اَلشَّمْسُ طَلَعَتْ

**تشریح**: دا یوه بله قاعده ده پس مفهوم یې دادي چې کله فاعل اسم ظاهر مؤنث وي نو دا به خالي نه وي یا به دغه فاعل اسم ظاهر مؤنث حقیقي (مؤنث حقیقي دېته وایي چې یې مقابله ددغه مؤنث کې مذکر حیوان موجود وي لکه هندٌ اورجل) وي یا به غیر حقیقي. پس چې هرکله فاعل اسم ظاهر مؤنث حقیقي وي نوبیا به خالي نه وي یابه دفعل اوفاعل په مابین کې فاصل وي یا به نوي پس که په مابین ددواړو کې فاصل نه وي نو فعل به یې همیشه مؤنث ذکرکولی شي لکه ضَرَبَ هِنْدٌ .هند مؤنث حقیقي دي اوفاعل دي او مخکې ترې فعل مؤنث ذکر شوي دي .اوکه ددواړو په مابین کې فاصل وي نو بیا په کې اختیار دي که فعل مذکر ذکرکړې شي یا مؤنث لکه ضرب الیوم هند-ضرب مذکر دي اویوم په کې فاصل دي او داسې هم جائزده ضربت الیوم هندٌ .پس که فاعل اسم ظاهر مؤنث غیر حقیقي وي نو بیا په کې اختیار دي که فعل یې مذکر ذکرکړې شي اوکه مؤنث لکه طلعت الشمس یاطلع الشمس .شمس مؤنث غیر حقیقي دي. که فاعل اسم ضمیر وي نو بیا به فعل همیشه مؤنث ذکر کولی شي لکه الشمس طلعت .الشمس مبتداء ده او په طلعت کې تاء ضمیر د مؤنث دي. دتانیث دفعل دپاره دري شرطه دي

(۱) یوداچې فاعل مؤنث حقیقي وي چې دانسانانو نه وي نو فعل به یې مؤنث وي همیشه

(۲) یوداچې دفعل اوفاعل په مابین کې فاصله نه وي نو فعل به یې همیشه مؤنث راځي

(۳) یوداچې فاعل متصرف وي نو فعل به یې همیشه مؤنث راځي پس کچرته جامد وي نوبیاتانیث دفعل لازم نه ده لکه نعم داجامد دي نو پس نعمة هند واجب نه ده بلکه جوازي ده که نعم هند اوویلی شي نو هم صحیح دي.

وَجَمْعُ التَّكْسِيْرِ كَالْمُؤَنَّثِ الْغَيْرِ الْحَقِيْقِيِّ تَقُوْلُ قَامَ الرِّجَالُ وَاِنْ شِئْتَ قُلْتَ قَامَتِ الرِّجَالُ وَ الرِّجَالُ قَامَتْ وَيَجُوْزُ فِيْهِ الرِّجَالُ قَامُوْا.

**ترجمه** او جمع تکسير به شان د مونث غير حقيقي دي په حکم کښې که قَامَ الرِّجَالُ او که قَامَتِ الرِّجَالُ او که اَلرِّجَالُ قَامَتْ او اَلرِّجَالُ قَامُوْا وائي، ټول صحيح دي

**تشريح** ددې قاعدې خلاصه داده چې دجمعي مکسرې حکم او طريقه په تذکير او تانيث کې پشان دمؤنث غير حقيقي ده يعني که فاعل دفعل جمع مکسره واقع شي نو دفعل تذکير او تانيث دواړه جائزدي لکه قـام الرجال او قامت الرجال هم صحيح دي ددې دپاره وجه داده چې پو لفظ ظاهر د رجال مذکر دي نو فعل به ورله هم مذکر ذکر شي لکه قام الرجال او بل داچې د رجال نه تعبير په جُماعَةٌ سره او کړی شي نو بيا به فعل مؤنث ذکر کولی شي لکه قامت الرجال پس خلاصه دا شوه چې تذکير دفعل پدې صورت کې په اعتبار دلفظ ظاهر سره دی او تانيث دفعل په اعتبار دلفظ تاويلي سره دي. په جمع تکسير سره احتراز راغی دجمعي مذکر سالمې نه ځکه چې دهغې فعل به مذکر وي فقط لکه قامو مُسلمون.

**فان قيل** ددې دپاره څه وجه ده چې فقط مذکر به ذکر کيږي؟

**قلنا** داځکه چې دجمعي مذکر سالمې نه تعبير په لفظ دجماعةٌ سره نه کيږي يعني تاويل ځکه نه قبلوي چې په هغې خپل حيثيتونه موجودي او ظاهر ده چې واو او نون او يا او نون دي په آخر دغه جمع کې الرجال قامت پدې باندې **سوال** دي چې په قامت کې هي راجع دي رجال ته نو د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت نشته ځکه چې ضمير مؤنث دي او رجال مذکر دي.

**جـواب** دادې چې د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت بعد التاويل دي يعني چې کله د رجال نه تعبير په جماعةٌ سره او کړي شي نو بيا به مطابقت صحيح شي ويجوز فيه الرجل قامو. رجال مبتدا قامو فعل او ضمير دهُم په کې فاعل دي چې راجع دي الرجال ته پس دا جائز دي او واجب نه دي ځکه چې په رجال کې دواړه احتماله موجود دي (ظاهري او تاويلي).

## القواعد الفاعل

وَيَجِبُ تَقْدِيْمُ الْفَاعِلِ عَلَى الْمَفْعُوْلِ اِذَا كَانَا مَقْصُوْرَيْنِ وَخِفْتَ اللَّبْسَ نَحْوُ ضَرَبَ مُوْسَى عِيْسَى.

**ترجمه** او فاعل په مفعول باندې مقدم کول واجب دي چه کله دا فاعل هم اسم مقصور وي او دا مفعول هم اسم مقصور وي او حذف د التبس د فاعل وي لکه ضَرَبَ مُوْسَى عِيْسَى

**تشريح** ددې قاعدې خلاصه داده چې تقديم دفاعل په مفعول باندې واجب دي په هغه

صورت کې چې قرينه (لفظيه . معنويه) موجوده نه وي په فاعليت د فاعل باندي او په مفعوليت دمفعول باندي نو په دي صورت کې چې کوم مقدم وي هغه به فاعل واجب وي.

**فان قيل** قرينه څه ته وايي ؟

**قلنا** قرينه په دوه قسمه ده (۱) قرينه لفظيه عبارت دي د اعراب لفظي نه هر کله چه په يو اسم باندي اعراب لفظي جاري وي نو دهغي نه دا معلوميږي چي مرفوع وي نو هغه به فاعل وي او منصوب وي نو هغه مفعول به وي لکه زيدٌ عَمراً . زيد مرفوع دي نو دا فاعل واقع شوي دي او عمراً منصوب دي او نصب علامت د مفعول به دي . (۲) قرينه معنويه عبارت دي دهغه شي نه چي دلالت په تعين د مراد لفظ باندي کوي مثال ضرب موسى عيسى په دي مثال کي چي مقدم وي هغه به فاعل وي او فاعليت به يې واجب وي ځکه چي قرينه موجوده نه ده او دواړه مقصورين دي او اسمين دي او ذکر شن دي نو په دي صورت کي تقديم د فاعل واجب دي چي موسى دي او عيسى به مفعول به شي چي کله په تعين د فاعليت او مفعوليت باندي قرينه موجوده شي نو بيا تقديم د فاعل په مفعول به باندي واجب نه ده بلکه جائز دي لکه ضرب موسى عيسى الظريفُ . په دي صورت کي تقديم د مفعول به هم جائز دي ځکه چي قرينه موجوده شوه چي الظريف دي **قاعده خارجي** چه کله فعل مؤنث واقع شي او بعد تري لفظ د مذکر وي او مذکر نه بعد لفظ د مؤنث وي نو بيا هم تاخير د فاعل جائز دي لکه ضَرَبَت موسى حُبلى . حبلى فاعل دي .

**وَيَجُوْزُ تَقْدِيْمُ الْمَفْعُوْلِ عَلَى الْفَاعِلِ:**

**ترجمه** . او جائز دي مقدم کول د مفعول به فاعل باندي

**تشريح** . او جائز دي مقدم کول د مفعول به فاعل باندي په دي صورت کي چي قرينه موجوده ده په تعين د فاعل باندي لکه اکل الکمثرى يحيى اکل فعل دي کمثرى امرودته وايي او يحيى اسم دي . نو مفعول به مقدم دي جوازاً او فاعل مؤخر دي جوازاً . ضرب عمراً زيدٌ . دلته قرينه لفظيه موجوده ده عمراً مفعول به مقدم ده په قرينې سره او فاعل مؤخر ده

**وَيَجُوْزُ حَذْفُ الْفِعْلِ حَيْثُ كَانَتْ قَرِيْنَةٌ نَحْوُ زَيْدٌ فِيْ جَوَابِ مَنْ قَالَ مَنْ ضَرَبَ:**

**ترجمه** . او فعل حذف کول جائز دي چه کله قرينه موجوده وي لکه زيدٌ د هغه سړي جواب کښې چه کوم سړي او وائي مَنْ ضَرَبَ (چا او وهلي) (کُنتُ به معنى دوجد سره دي ۱۲)

**تشريح** . ددي قاعدي خلاصه داده چي کله د فاعل نه فعل حذف کيږي او د فعل نه

مراد عامل رافعه دي برابره خبره ده كه فعل وي او كه شبه فعل وي . او دفعل حذف په دوه قسمه دي (۱) حذف جوازي (۲) حذف وجوبي (۱) حذف جوازي په هغه صورت كي دي چي كله قرينه موجوده وي په حذف دفعل باندي.

حذف وجوبي په هغه صورت كي ده چي كله قرينه هم موجوده وي او نائب ددغه فعل قائم مقام هم موجود وي دجوازي دپاره مثال لكه سائل تپوس او كري چي مَن ضَرَبَ نو پدي كي مطابق دسائل داوي چي فاعل دضرب او بنايه نو جواب مخاطب فقط به زيدٌ سره او كري . او فعل ضرب به تري حذف شي جوازا او پدي باندي قرينه او علامه سوال د سائل دي چي تپوس يي دضرب دفاعل كري دي نو جواب په طريقه دفريني سره وركري شو چي زيد وهل كري دي دوجوبي دپاره مثال لكه ايت قرآني دى وإن احد من المشركين استجارك ددى است تقديرداسي دي وان استجارك احد من المشركين نو اول استجارك فعل عامل رافعه سري حذف شوي دي په حذف وجوبي سره يعني داحذف واجب دي په دليل قوله سره چي ان شرطيه دى او احد اسم دي او ان نه داخليږي مگر په فعل . نو معلومه شوه چي فعل تري حذف شوي دي يعني مقدر دى وجوبا نو دلته قرينه موجوده ده چي آخري فعل استجرك دي يعني قائم مقام او نائب ددي دفعل مقدر دپاره

وَكَذَا يَجُوزُ حَذْفُ الْفِعْلِ وَالْفَاعِلِ مَعًا كَنَعَمْ فِي جَوَابِ مَنْ قَالَ أَقَامَ زَيْدٌ:

**ترجمه** همدغه رنگي فعل او فاعل دواړه په يو ځاى حذف كول جائز دى لكه نَعَمْ د هغه كس په جواب كښ او وائي اقام زيدٌ (آيا زيد ولاړ دى).

**تشريح** دايوه بله قاعده ده پدي كي حذف دفاعل او فعل دواړو جائز دي لكه سائل تپوس او كري چي اقام زيد نو مخاطب جواب فقط په نَعَم سره وركري او جمله فعليه ترينه نو له حذف شي په حذف جوازي سره او داځكه چي دلته قرينه موجوده ده چي سوال دسائل دي يعني سائل دزيد دقامت تپوس كوي نو مخاطب به يا جواب فقط په نَعَم سره كوي يا به (نفي) لا سره نو جواب مطابق دسوال دي

وَقَدْ يُحْذَفُ الْفَاعِلُ وَيُقَامُ الْمَفْعُوْلُ مَقَامَهُ إِذَا كَانَ الْفِعْلُ مَجْهُوْلُ نَحْوُ ضُرِبَ زَيْدٌ وَهُوَ الْقِسْمُ الثَّانِيْ مِنَ الْمَرْفُوْعَاتِ:

**ترجمه** . او به بعضو مواضعو كښي به فاعل حذف كيږي او قائميږي به مفعول په مقام دفاعل باندي په هغه وخت كي چه كله دا فعل مجهول وي لكه ضُرِبَ زيدٌ او دى نه قسم

ثاني د مرفوعاتو ونيلي شي .

**تشریح** خلاصه داده چي هر کله فعل متعدي مجهول کړی شي نو فاعل به حذف شي اومفعول به قائم مقام دفاعل اوګرزي اوداقسم مفعول مسمی کړی شوي دي په مفعول مالم يسم فاعله باندي ‹لم يسمّ په معنی دلم يذکر سره دي›، پس دمفعول مالم يسمّ فاعله معنی داشوه چي هغه مفعول چي دهغه فاعل نه وي ذکرشوي لکه ضَرَبَ زيدٌ عمراً : وهلی دی زيد عمرلره ، پس پدي مثال کي ضَرَبَ فعل متعدي معروف دي اوزيدٌ يي فاعل دي اوعمراً يي مفعول به دي طريقه يي داده چي ضَرَبَ فعل مجهول شي اوزيدتري حذف شي نوضُرِبَ عمراً به شي.، وهلی شویدي عمر›

**وهوالقسم الثاني من المرفوعات:** يعني هغه مفعول چي هغه نائب فاعل وي دفاعل محذوفه نودادمرفوعاتو دويم قسم دي چي مسمّی دي په مفعول مالم يسم فاعله باندي

# بحث دتنازع

**فَصْلٌ** : إِذَاتَنَازَعَ الْفِعْلَانِ فِيْ اِسْمٍ ظَاهِرٍ بَعْدَهُمَااَيْ اَرَادَكُلُ وَاحِدٍ مِنَ الْفِعْلَيْنِ اَن يَعْمَلَ فِيْ ذٰلِكَ الْإِسْمِ فَهٰذَااِنَّمَايَكُوْنُ عَلٰى اَرْبَعَةِ اَقْسَامٍ:

**ترجمه** هر کله چي تنازع د فعلين راشي به اسم ظاهر کښي ورسته لدي نه چي هر کله اراده وکړي هريو فعل دفعلانو نه چي عمل اوکړي په دغه اسم کي پس داتنازع دفعلانو په څلور قسمه ده.

**تشريح** بحث دفاعل شروع دي اوفاعل دوه حيثيتونه لري يوداچي په هغې کښي دافعالو تنازع نه وي شوي اودويم داچي په هغې کي دافعالوتنازع شوي وي دفصل نه مخکي بيان داوو چي دافعالوتنازع په کي نه وه شوي نومصنفؒ دتنازع دپاره جدا فصل راوړو

**فان قيل** بحث دتنازع پدي مقام کي مناسب نه دي څکه چي بحث دفاعل شروع دي اومصنفؒ بحث دتنازع دافعالوراوړو نوداخيره مناسبه نه ده ددي مقام سره ؟

**قلنا** دتنازع دفعلينونه بحث مختص دي په فاعل پوري پدي شان سره چي کله فعلين تنازع کوي نودغه تنازع دوجي دفاعل واحدنه راغلی وي اوبغير دفاعل ( اسم ظاهربعدهما) نه فعلين تنازع نشي کولی۔

**فان قيل** دتنازع نسبت فعلانوته غيرصحيح دي څکه حي تنازع يو فعل دي چي صادريږي دذوي الروحونه ( دتنازع معنی پخپله داده چي دوه کسان بايوبرکسان جګړه اوکړي) اوفعلان ذوي

الروح نه دي بلکه الفاظ المعنی دي.

**قلنا** نسبت د تنازع فعلانو ته شوي مجاز اُخکه چي د اتنازع به حقیقت کي د فاعل او متکلم نه جوړیږي یعني فعلان غیر ذوی الروح دی او طاقت د دي خبري نه لري چي جګړه او کي مګر متکلم او فاعل نو دیته نسبت مجازي وایي. د عبارت خلاصه دا ده چي کله به یوه جمله یا کلام کي دوه عامله راشي او دهغي بعد یو اسم ظاهروي پس دغه اسم ظاهر به معمول ګرزي د پاره دعاملانو او هر عامل د اتقاضا کوي چي دغه اسم ظاهر خه معمول جوړ شوي

**فان قیل** فعلان تثنیه ده او تثنیه دلالت فقط به دوه باندي کوي نو د عبارت نه دا معلومیږي چي تنازع به فقط به دوه فعلینو، عاملینو، کي کیږي نو دا عبارت منقوض دي په اللهمّ صلّی علی محمّدٍ وعلی آلِ محمّدٍ کما صلّیتَ وسلّمتَ وبارکتَ ورحمتَ علی ابراهیم:

په مذکوره درود شریف کي پنځه عاملان ذکر دي ما قبل د اسم ظاهر نه چي ابراهیم دي یعني پنځه عاملان د یو معمول د پاره ګرزیدلي دي.

**قلنا** تنازع به د یرو افعالو کي هم راتلی شي لیکن د مصنف د عبارت مطلب دا دي چي کم از کم به دوه عاملین وي او زیات چي خومره کیدي شي. نو بس فعلان تصریح ده په عدد اقل باندي.

**فان قیل** د عبارت نه دا معلومیږي چي تنازع به فقط په افعالو کي وي نو ډیر د اسي دي چي تنازع په اسماء کښي هم راغلی ده لکه مُعْطٍ ومُکْرِمٌ عمر اُ معطی یو اسم فاعل دي او مکرمٌ بل اسم فاعل دي او عمر اً اسم ظاهر دي پس تنازع په اسمینو کي راغله یعني معطي تقاضا کوي چي عمر اُ خما معمول شوي او مکرم هم دغه شان.

**قلنا** ذکر د فعلان دي او مراد تري نه عاملان دي یعني هر عامل ته شامله ده بغیر د مصادر و نه

**فان قیل** مصنفؒ له یکار وو چي عاملان یې ذکر کړی وي ؟

**قلنا** مصنف اکتفی به اصل باندي کړیده او فعل اصل دي فی المعنی به اسم ظاهر سره احتراز راغی د اسم ضمیر نه خکه چي اسم ضمیر په دوه قسمه دي یو ضمیر متصل دي او بل ضمیر منفصل دي نو ضمیر متصل عامل د هغه جادي چي متصل دي په جایوري او ضمیر منفصل قیس او محمول دي په ضمیر متصل باندي نو ګویا دا ولړه مستثنی دي بقول مصنف به بعد هما سره احتراز راغی د هغه صورتونو نه چي اسم ظاهر یه کي مقدم وي یا متوسط وي. د فعل نه مراد عام دي که فعل متعدی وي که فعل لازمي دي اوکه متعدی د یو مفعول طرف ته وي یا د ډیرو خواه که فعل تعجب وي یا نه په تعجب او متعدی الی ثلثه مفاعیل کي عصوا اختلاف کړی دي وایي چي په فعل تعجب کي تصرف ډیر کم کیږي او متعدي الی ثلثه مفاعیل د عربو نه نقل نه دي تر اوسه پوري.

# دتنازع متجانسين متخالفين صورتونه

اَلْاَوَّلُ اَنْ يَّتَنَازَعَا فِي الْفَاعِلِيَّتِ فَقَطْ نَحْوُ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ اَلثَّانِيْ اَنْ يَّتَنَازَعَا فِي الْمَفْعُوْلِيَّتِ فَقَطْ نَحْوُ ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا اَلثَّالِثُ اَنْ يَّتَنَازَعَا فِي الْفَاعِلِيَّتِ وَالْمَفْعُوْلِيَّتِ وَيَقْتَضِي الْاَوَّلُ الْفَاعِلَ وَالثَّانِيْ الْمَفْعُوْلَ نَحْوُ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا اَلرَّابِعُ عَكْسُهٗ نَحْوُ ضَرَبْتُ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ.

**ترجمه** اول دادي چه دواړه فعله خپل خان لپاره د فاعل تقاضا کوی لکه ضَرَبَنِيْ وَ اَکْرَمَنِيْ زَيْدٌ. دوم داد چه دواړه فعله د مفعول تقاضا کوی لکه ضَرَبْتُ وَ اَکْرَمْتُ زَيْدًا. دریم داد چه دواړه فعله په فاعلیت او مفعولیت کښ تنازع کوی اول فعل د فاعل او دویم فعل د مفعول تقاضا کوی لکه ضَرَبَنِيْ وَ اَکْرَمْتُ زَيْدًا. څلورم قسم ددی برعکس دی لکه ضَرَبْتُ وَ اَکْرَمَنِيْ زَيْدًا

**تشریح** تنازع دفعلنو په څلورو صورتونو کې منحصره ده اول دواړه صورته مسمی دي په متوافقين باندي او باقي دواړه مسمی دي په متخالفين باندي. دمتوافقين صورتونه دادي چې اول قسم موافق وي په اقتضاء. دفاعليت کې او دويم قسم چې موافق وي، دواړه فعلان، په اقتضاء. دمفعوليت کې پس دمتوافقين خلاصه داشوه چې په اول قسم کې دواړه فعلين تقاضا، دفاعليت داسم ظاهر کوي. او په دويم قسم کې دواړه فعلين تقاضا، دمفعوليت داسم ظاهر کوي. مثالونه. ضربني واکرمني زيدًا ضربني او اکرمني دواړه متنازعين فعليت دي او دواړه تقاضا دفاعليت دزيد کوي دثاني مثال ضربت واکرمت زيدًا. دادواړه تقاضاء دمفعوليت دزيد کوي اوفاعلين په کې ضمائر مستتره دی

**دمتخالفين صورتونه دادي** په تنازع دفعلينو کې دريم صورت دادي چې اول فعل په کې تقاضا دفاعليت داسم ظاهر کوی اوفعل ثاني په کې تقاضا دمفعوليت کوي: يعني مخالف دي نو داځکه مسمّى دي په متخالفين باندي. اوڅلورم صورت دادي چې فعل اول په کې مقتضى دمفعوليت داسم ظاهر وي اوثاني په کې دفاعليت مقتضى وي. داول دپاره مثال لکه ضربني واکرمت زيدًا په ضربني کې ضمير د متکلم مفعول به دی نو دي مقتضى دفاعليت او اکرمت دمفعوليت مقتضى دي دثاني دپاره مثال په عکس داول لکه ضربت واکرمني زيدًا. اول تقاضا دمفعوليت کوي اوفاعل يې ضمير دی مستتر دي پس ددي شکل نه دتنازع صورتونه واضحه معلوميږي.

## تنازع دفعلینو







اوس مسئله داده چې سه تنازع دفعلینو کې اسم ظاهر دچا د پاره معمول گرزي نو دابحث مصنفؒ په اعلم کې بیانوي

وَاعْلَمْ اَنَّ فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهِ الْاَقْسَامِ يَجُوْزُ اِعْمَالُ الْفِعْلِ الْاَوَّلِ وَاِعْمَالُ الْفِعْلِ الثَّانِيْ خِلَافًا لِلْفَرَّاءِ فِي الصُّوْرَةِ الْاُوْلٰى وَالثَّالِثَةِ اِنْ اُعْمِلَ الثَّانِيْ وَدَلِيْلُه لُزُوْمُ اَحَدِ الْاَمْرَيْنِ اِمَّا حَذْفُ الْفَاعِلِ اَوِ الْاِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ وَكِلَاهُمَا مَحْظُوْرَانِ.

**ترجمه** پوهې شه چه مزکوره تمام قسمونو کښې اول فعل ته عمل ورکول او دويم فعل ته عمل ورکول جائز دی. په اول او دريم صورت کښې د فراء نحوی اختلاف دي چه بدي دواړو صورتونو کښې به عمل فعل ثاني لره ورکول کيږي د دوی دليل دادي چه فعل ثاني ته عمل ورکولو سره لزوميت د احدالامرين راځي يا حذف د فاعل راځي او يا اضمار قبل الذکر به راځي او دا دواړه صورتونه ناجائز دی

**تشریح** عمل دتنازع دفعلانو په دوه قسمه دي يو عمل جوازی دي او بل عمل مختاری دي پس عمل جوازی ديته وايي چې په تنازع دفعلينو کې فعل اول جوړشي عامل دپاره دااسم ظاهراو يافعل ثاني عامل اوگرزي دپاره د اسم ظاهريعني دادواړه جائزدي عند العلماء نوپس په جواز دواړو فعلانو باندي ټول علماء متفق دي چې هريو عامل جائزدي ليکن په عمل جوازي کې امام فراء مولوي صاحب خلاف دي دمتفقينونه چې په صورت اول اوثالث کې به فعل اول عامل گرزي وجوباً (وجوباً معنی داده چې فقط فراء واجب گرزولی دي په خلاف دنورو علماؤنه مگرجائزدي) اوپه دويم اوځلورم صورت کې دواړه عامل يعني که

هرو فعل عامل اوګرزي، جوړيدل جائزدي.

**دلائل دفراء** فراء په صورت اول او ثالث کي ترجيح ورکړيده فعل اول ته خکه چي په صورت اول کي اول فعل تقاضاء دفاعليت داسم ظاهر کوي او دغه شان په صورت ثالث کي هم فعل اول مقتضي دفاعليت دي نو خکه به فعل اول عامل وي په دغه دوه صورتونو کي او فرض که فعل ثاني ته په دغه صورتونو کي عمل ورکړي شي نو بيا به احد الامرين لازميږي بوداچي دفعل اول دپاره به فاعل محذوف اوګنړلي شي او يا داچي په فعل اول کي ضمير فاعل شي او راجع کړي شي اسم ظاهر ته نو دغه به فعل اوګرزي دپاره دفعل اول پس دا دواړه غير صحيح دي خکه اول صورت يعني فاعل محذوف اوګرزي نو بيا ورله نائب فاعل پکار دي لکه په مفعول مالم يسم فاعله چي دي نو حذف دفاعل بغير دنب فاعل نه غير صحيح دي او که صورت ثاني يعني ضمير فاعل اوګرزي دفعل اول دپاره نو دا اضمار قبل الذکر راغي يعني ضمير راجع کول شو مخکي د مرجع نه نو دا هم غير صحيح دي نو معلومه شوه چي په صورت اول او ثالث کي به فعل عامل ګرزي . عند الفراء ؛ دساره داسم ظاهر که په صورت ثاني کي اضمار قبل الذکر اشي نو دا صحيح دي صرف لفظ لاربنتا او داجائز دي او که په صورت رابع کي د فعل اول دپاره مفعول حذف شي نو داهم صحيح دي خکه چي فعل اول تقاضد دمفعوليت داسم ظاهر کوي نو که مفعول حذف اوګنړل شي خردی

وَهٰذَا فِي الْجَوَازِ وَاَمَّا الْاِخْتِيَارُ فَفِيْهِ خِلَافُ الْبَصْرِيِّيْنَ فَاِنَّهُمْ يَخْتَارُوْنَ اِعْمَالَ الْفِعْلِ الثَّانِيْ اِعْتِبَارًا لِلْقُرْبِ وَالْجِوَارِ وَالْكُوْفِيُّوْنَ يَخْتَارُوْنَ اِعْمَالَ الْفِعْلِ الْاَوَّلِ مُرَاعَاةً لِلتَّقْدِيْمِ وَلَا اسْتِحْقَاقِ فَاِنْ اَعْمَلْتَ الثَّانِيَ فَانْظُرْ اِنْ كَانَ الْفِعْلُ الْاَوَّلُ يَقْتَضِي الْفَاعِلَ اَضْمَرْتَهُ فِي الْاَوَّلِ كَمَا تَقُوْلُ فِي الْمُتَوَافِقَيْنِ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ وَضَرَبَانِيْ وَاَكْرَمَنِي الزَّيْدَانِ وَضَرَبُوْنِيْ وَاَكْرَمَنِي الزَّيْدُوْنَ وَفِي الْمُتَخَالِفَيْنِ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبَانِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبُوْنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ :

**ترجمه** . او د اختلاف په جواز کښ دی بلکه جائز اختلاف دبصريون او د کوفيون په اختيار کښ دی بصريان فعل ثاني ته عمل ورکول اختيارووی دوجه د قرب او جوار نه او کوفيان فعل اول ته عمل ورکول اختيار کړي دوی د تقديم او د استحقاق رعايت کړي دی، پس که چرته عمل په فعل ثاني کښ وکړي بيا به کتل غواړي چه اولني فعل د فاعل تقاضا کوي او که، که تقاضا کوی نو بيا به فاعل ضمير راوړی لکه په متوافقينو کښ يعني دواړه د فاعل تقاضا کوي.

متـل ،، ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ،، ضَرَبَانِيْ وَاَكْرَمَنِي الزَّيْدَانِ وَضَرَبُوْنِيْ وَاَكْرَمَنِي الزَّيْدُوْنَ، همدغه رنګې به متخالفـنو کښې (يعني اولنى فعل د فاعل تقاضا کوى او دويم فعل د مفعول تقاضا کوي) مثال ،، ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبَانِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبُوْنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ،

**تشريح** خلاصه داسې ده چې خلاف دافضليت کې دې مذهب دبصريانو دادې چې عمل دفعل ثاني بهتردي

**اول دليل** عمل دفعل ثاني افضل او بهتر دي دقرب د جواز دوجې نه يعني فعل ثاني قريب او ګوندې دي .اسم ظاهر ته نو بندي اعتبار سره بهتر دی

**دويم دليل** کچري عمل فعل اول ته ورکړو نوبيابه په مابين دعامل او معمول کې اتصال پاتې نشي او اتصال اصل دي به مبين دعامل او معمول کې او اتصال نه راځي مګربه فعل ثاني سره اسم ظاهر ته

**دريم دليل** مذهب زمونږه يعني دبصريينو ،متفق دقرآن پاك سره دی لکه آيت شريف آتُوْنِيْ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْراً

**قطراً**: اتونى بو فعـل دي او افرغ فعـل ثاني دي او قطرا تنازع عليه دي او س خيال کوه دواړه فعلين تعاضد دفاعليت دا سم ظاهر کوى يعني به فعل اول کې تقاضا دفاعليت ده او په فعل ثانى (افرغ) کې ضمير دمتکلم فاعل دى او تقاضا دمفعوليت کوي نو پس کچري فعل اولي بهتروي نوپکاره چې دلته فعل اولى عمل ګرزيدلى وى نوپس عمل دفعل ثاني افضل دى په حواله قرآنى سره.

**مذهب دکوفيينو اول دليل** عمل دفعل اول ځکه بهتر دي چې دامقدم دي او کوم شي چې مقدم وي هغه مستحق وي دعمل دپاره يعني فعل اول ' سبق الطالب دي يعني تقاضا يې مقدمه ده نو ځکه افضل دى دفعل ثاني نه

**دويم دليل** کچري عمل دافضليت فعل ثاني ته ورکړی شي نو بيا اول کې به ضمير فاعل کيږي او دا اضمار قبل الذکر دي نو ځکه عمل دفعل اول افضل دي دفعل ثاني نه.

**فَاِنْ أَعْمَلْتَ الثَّانِي فَانْظُرِالخ**: که دبصريينو مذهب ته ترجيح ورکړی شي نو فعل اول ته به خيال او کې کچرى فعل اول تقاضا دفاعليت کوي نو بيابه ثنى ته خيال او کې کچري فعل ثاني تقاضا د مفعوليت کوي نو مفعول به غواړي او س تنازع واقع شو په دواړو فعلينو کې ځکه چې فعـل اول تقاضا د فاعل کـوي او فعـل ثـاني تقاضا د مفعول کـوي بـس داتنـازع يعنـي جګـړه دفعلينو ختمول غواړي نو د تنازع دقطعې دپاره دری طرق دی.

(۱) يوه طريقه دا چې فعل اول دپاره فاعل ذکرشي مستقلاً

(۲) دويم طريقه داده چې دفعل اول دپاره فاعل محذوف او مقدر او ګڼرلى شي

(۳) اضمار قبل المذكر دي يعني به فعل اول كې به ضمير مستتره اوګڼلى شي يس په دې طرفو سره به تنازع دفعلانو ختميږي او س طريقه اوله غير صحيح ده خكه چې لازميږي دفاعل خكه چې بوفاعل بې مستقلاً ذكرشي او بل فاعل بې اسم ظاهر اوګرزي نو بدي وجه دا شنيع ده او دويمه طريقه يعني حذف دعمده بغير د قائم مقام نه خلاف قانون دي ـ بغير د سد مسد (سد مسد قائم مقام ته وئيل كيږي) نه خلاف قانون دي او طريقه ثالثه پاتي شوه يعني اضمار قبل الذكر نو په فعل اول كې به ضمير مستتره راشي او هغه به راجع شي اسم ظاهر ته نو فعل اول د پاره به فاعل محذوف نه شي او دفعل ثاني د پاره به فاعل اسم ظاهر اوګرزي . او اضمار قبل الذكر في العمده دي ناجائزنه دي خكه چې په څو مقاماتو او مواضعو كې راتلى شي مثلاً په افعل مدح وذم كې راتلى شي او دغه په ضمير الشان كې هم جائز دي.

وَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ الْأَوَّلُ يَقْتَضِي الْمَفْعُوْلَ وَلَمْ يَكُنِ الْفِعْلَانِ مِنْ أَفْعَالِ الْقُلُوْبِ حَذَفْتَ الْمَفْعُوْلَ مِنَ الْفِعْلِ الْأَوَّلِ كَمَا تَقُوْلُ فِي الْمُتَوَافِقَيْنِ ضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ وَفِي الْمُتَخَالِفَيْنِ ضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِيْ الزَّيْدَانِ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِي الزَّيْدُوْنَ وَإِنْ كَانَ الْفِعْلَانِ مِنْ أَفْعَالِ الْقُلُوْبِ يَجِبُ إِظْهَارُ الْمَفْعُوْلِ لِلْفِعْلِ الْأَوَّلِ كَمَا تَقُوْلُ حَسِبَنِيْ مُنْطَلِقًا وَحَسِبْتُ زَيْدًا مُنْطَلِقًا إِذْ لَا يَجُوْزُ حَذْفُ الْمَفْعُوْلِ مِنْ أَفْعَالِ الْقُلُوْبِ وَإِضْمَارُ الْمَفْعُوْلِ قَبْلَ الذِّكْرِ هٰذَا هُوَ مَذْهَبُ الْبَصْرِيِّيْنَ.

**ترجمه** كچرته اول فعل د مفعول تقاضا كوى او دواړه فعل د افعال قلوبو نه دى، نو مفعول به حذف كړل د فعل اول نه . لكه د متوافقينو مثال ﴿ضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ﴾، او متخالفينو مثال ﴿ضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِيْ الزَّيْدَانِ وَضَرَبْتُ وَأَكْرَمَنِي الزَّيْدُوْنَ﴾، كچرته دواړه فعل د افعال قلوبونه وو نو اول فعل لپاره مفعول ظاهر ول واجب دي لكه ﴿حَسِبَنِيْ مُنْطَلِقًا وَحَسِبْتُ زَيْدًا مُنْطَلِقًا﴾ خكه چه د افعال قلوبو نه مفعول حذف كول او اضمار قبل الذكر راوړل نه جائز دي دا مذهب د بصريين دي

**تشريح** به مخكې عبارت كې فعل اول تقاضا د فاعلت كوله او بدي عبارت كې فعل اول تقاضا د مفعوليت كوي پس دافعلان به خالي نه وي يا به دواړه د افعال قلوبونه وي يا به نه وي پس دوه احتماله شو كچرته دافعال قلوبونه نه وي او حال داوي چې فعل اول تقاضا د مفعول به داسې

ظاهرکوي نو بدي صورت کي دتنازع دقطعي دباره طرق ثلاثه دي
۱. به فعل اول کی چي ضمير دمفعول به او مثلي شي
۲. حي داول دپاره مفعول به مستقلا ذکرشي
۳. حذف دمفعـول بـه دفعـل اول دپـاره ،ولـي دو ه طريقـي غيرصـحيح دي ځکه کې ضمير دمفعول به و مثلي شي نو لازميږي اضمار في الفضله او که ذکر دمفعول به راشي نو لازميږي تکرار دمعمولينو . دريمه طريقه صحيح کيدي سي يعني حذف دمفعول به لکه ضربت واکرمت زيداً دا په اصل کي ضربت زيداً واکرمت زيدا او وس دفعل اول نه مفعول به حذف سو نوتنازع قطع سوه.

کچري دواړه فعلان دافعال قلوبونه وي او فعل اول تقاضا دمفعول به داسم ظاهرکوي نو بدي صورت کي هم دغه طرق ثلاثه دي حي کوم ذکر شو، فرق به کي فقط دومره دي چي پدي صورت کي اول او دريمه طريقه متعيني نه دي ځکه کچري حذف به کي لازم کري شي نو افعال دافعال قلوبونه دي او داقانون دي حي فعل دافعال قلوبونه وي او حذف ديو دمفعولينو دافعال قلوبونه نه جائز دي ځکه چي داننس دسوي کلمي کبري . اضمار هم نشي متعين کيدي ځکه لازميږي اضمار فـي الفضله فقط ذکر دمفعول به متعين شو يعني دفعل اول دپاره به مستقلاً مفعول به متعين کبري لکه حسبني منطلق وحسبت زيدا منطلقا . بدي مثال کي فعل اول حسبني دي او فعل ثاني به کي حسبت دي داد واړه فعلين متنازعين دي او منطلقا متنازع فيه اسم ظاهر دي . حسبني تقاضا دمفعول ثاني کوي يو مفعول به کي موجود دي او حسبت زيداهم تقاضا دمفعول ثاني کوي بس دفعل اول دپاره منطلقا مستقل ذکرشو.

تردي ځاى پوري مذهب دبصريينوو.

## مذهب دکوفينو

وَاَمَّا اِنْ اَعْمَلْتَ الْفِعْلَ الْاَوَّلَ عَلٰى مَذْهَبِ الْكُوْفِيِّيْنَ فَانْظُرْ اِنْ كَانَ الْفِعْلُ الثَّانِيْ يَقْتَضِي الْفَاعِلَ اَضْمَرْتَ الْفَاعِلَ فِي الْفِعْلِ الثَّانِيْ كَمَا تَقُوْلُ فِي الْمُتَوَافِقَيْنِ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَانِيْ الزَّيْدَانِ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمُوْنِي الزَّيْدُوْنَ وَ فِي الْمُتَخَالِفَيْنِ ضَرَبْتُ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمَانِي الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمُوْنِي الزَّيْدِيْنَ وجب الاظهار:

**ترجمه** بهر حال کچرته د کوفيانو په مذهب باندي عمل وکړو يعني اول فعل ته عمل

ورکړو، بیا به وګورو دويم فعل ته کچرته دی د فاعل تقاضا کوی نو بیا به دویم فعل کښې فاعل د ضمیر به راوړو لکه ته اووائي په متوافقينو کښې (ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ) او (ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَانِيْ الزَّيْدَانِ) او (ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمُوْنِيْ الزَّيْدُوْنَ)، او په متخالفينو کښې ته اووائي لکه (ضَرَبْتُ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدًا) او (ضَرَبْتُ وَاَكْرَمَانِيْ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمُوْنِيْ الزَّيْدِيْنَ)

وَاِنْ كَانَ الْفِعْلُ الثَّانِيْ يَقْتَضِي الْمَفْعُوْلَ وَلَمْ يَكُنِ الْفِعْلَانِ مِنْ اَفْعَالِ الْقُلُوْبِ جَازَ فِيْهِ الْوَجْهَانِ حَذْفُ الْمَفْعُوْلِ وَالْاِضْمَارُ وَالثَّانِيْ هُوَ الْمُخْتَارُ لِيَكُوْنَ الْمَلْفُوْظُ مُطَابِقًا لِلْمُرَادِ اَمَّا الْحَذْفُ فَكَمَا تَقُوْلُ فِي الْمُتَوَافِقَيْنِ ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ وَفِي الْمُتَخَالِفَيْنِ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدٌ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَانِ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدُوْنَ وَاَمَّا الْاِضْمَارُ فَكَمَا تَقُوْلُ فِي الْمُتَوَافِقَيْنِ ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُمَا الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُمُ الزَّيْدِيْنَ وَفِي الْمُتَخَالِفَيْنِ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُ زَيْدٌ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُمَا الزَّيْدَانِ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُمُ الزَّيْدُوْنَ.

**ترجمه** کچرته فعل ثانی تقاضا کوی د مفعول او دواړه فعله د افعال قلوبونه وی پدې کښې بیا دوه وجې جائز دی (۱) د مفعول حذف کول (۲) ضمیر راوړل او دویم صورت راوړل به خبره ده د دپاره چه ملفوظ مطابق راشی مراد سره. د حذف مثال په متوافقینو کښې لکه (ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدِيْنَ) او په متخالفینو کښې مثال لکه (ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدٌ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدَانِ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ الزَّيْدُوْنَ) د ضمير راوړلو مثال لکه په متوافقینو کښې (ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُ زَيْدًا وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُمَا الزَّيْدَيْنِ وَضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُهُمُ الزَّيْدِيْنَ) په متخالفینو کښې مثال لکه (ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُ زَيْدٌ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُمَا الزَّيْدَانِ وَضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُهُمُ الزَّيْدُوْنَ).

وَاَمَّا اِذَا كَانَ الْفِعْلَانِ مِنْ اَفْعَالِ الْقُلُوْبِ فَلَا بُدَّ مِنْ اِظْهَارِ الْمَفْعُوْلِ كَمَا تَقُوْلُ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا مُنْطَلِقَيْنِ الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا وَذٰلِكَ لِاَنَّ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا تَنَازَعَا فِيْ مُنْطَلِقًا وَاَعْمَلْتَ الْاَوَّلَ وَهُوَ حَسِبَنِيْ وَاَظْهَرْتَ الْمَفْعُوْلَ فِي الثَّانِيْ فَاِنْ حَذَفْتَ مُنْطَلِقَيْنِ وَقُلْتَ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا يَلْزَمُ الْاِقْتِصَارُ عَلٰى اَحَدِ الْمَفْعُوْلَيْنِ فِيْ اَفْعَالِ الْقُلُوْبِ وَهُوَ غَيْرُ جَائِزٍ وَاِنْ اَضْمَرْتَ فَلَا يَخْلُوْ مِنْ اَنْ تُضْمِرَ مُفْرَدًا وَتَقُوْلَ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا اِيَّاهُ الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا وَحِيْنَئِذٍ لَا يَكُوْنُ الْمَفْعُوْلُ الثَّانِيْ مُطَابِقًا لِلْمَفْعُوْلِ الْاَوَّلِ وَهُوَ هُمَا

فِيْ قَوْلِكَ حَسِبْتُهُمَا وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ اَوْ اَنْ تُضْمِرَ مُثَنًّى وَتَقُوْلَ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا اِيَّاهُمَا الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا وَحِيْنَئِذٍ يَلْزَمُ عَوْدُ الضَّمِيْرِ الْمُثَنّٰى اِلَى اللَّفْظِ الْمُفْرَدِ وَهُوَ مُنْطَلِقًا الَّذِيْ وَقَعَ فِيْهِ التَّنَازُعُ وَهٰذَا اَيْضًا لَا يَجُوْزُ وَاِذَا لَمْ يَجُزِ الْحَذْفُ وَالْاِضْمَارُ كَمَا عَرَفْتَ وَجَبَ الْاِظْهَارُ.

**ترجمه** بهر حال چكله دوه فعله د افعال قلوب نه وي نو بيا مفعول ظاهرول ضروري دي لكه ته اووائې (حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا مُنْطَلِقَيْنِ الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا)، دا خكه چه فعل (حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا) دي دواړو په (مُنْطَلِقًا) كښ نزاع كړې او تا په اول كښ عمل اوكړو چه حسبني دی او دويم مفعول ظاهر كړو. او كچرته تا منطلقين حذف كړو او اودوئيلي چه (حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا مُنْطَلِقَيْنِ الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا) نو بيا به افعال قلوبو كښ دوو مفعول كښ په يو باندې به اقتصار لازم شي او دا نا جائز دی كچرته ته ضمير رواړې نو دی نه به خالي نه وي چه مفرد به ئې راوړې اووائې چه (حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا) اياه (الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا) نو پدې صورت كښ دويم مفعول دی اول مفعول په شان رانشي او اول مفعول هما ستا په حسبتهم قول كښ او دا ناجائز ندی يا به ته د تثنيه ضمير به راوړې اووائې به چه (حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا اِيَّاهُمَا الزَّيْدَانِ مُنْطَلِقًا) نو بدې صورت كښ به د تثنيه ضمير مرجع به مفرد راشي چه هغه منطلقا ده چه ندی كښ تنازع واقع شوی او د هم جائز نده ،لهذا چكله حذف كول او ضمير راوړل جائز نه دي نو ظاهرولې واجب دي

**تشريح** هركله چې مصنف فارغ شو دبصريينو نه نو شروع يې په مذهب دكوفيينو اوكړه كوفيين وايي چې عمل دفعل اول بهتر دي دفعل ثاني نه هركله چې عمل فعل اول كوي نو فعل ثاني ته به اوګورې يا به تقاضا دفاعليت كوي يا به تقاضا دمفعوليت كوي كچرې فعل ثاني تقاضا دفاعليت دا اسم ظاهر كوي نو پدې صورت كې هم درې طريقې دي دقطعې دتنازع دپاره (۱) ذكر دفاعل (۲) حذف دفاعل دفعل ثاني نه (۳) اضمار دفاعل ندی طرق ثلاثه سره به تنازع ختميږي پس اولې دواړه طريقې متعين نه دي خكه چې به ذكر دفاعل سره لازميږي تكرار او حذف دفاعل بغير د مسند نه هم غير صحيح دي فقط اضمار دفاعل صحيح كيږي چې په فعل ثاني كې ضمير مستتر فاعل شي او راجع وي اسم ظاهر ته نو قطع دتنازع به راشي په مابين دفعلانو كې.

**فان قيل** اضمار قبل الذكر مخكې دمرجع نه راغی او دا غير صحيح دي ؟

**قلنا** دا اضمار قبل الذكر لفظاً دي لا رتبتاً يعني اسم ظاهر چې مابعد واقع دي هغه دفعل اول دپاره معمول ګرزيدلی دی نو مرتبه يې سه فعل ثاني باندې مقدم ده نو دا اضمار قبل الذكر لفظاً دي

لارتبـاً . داطریقـه دمتوافقینـوده کچـري فعـل اول تقاضـا دمفعولیت کـوي اوفعـل ثـاني تقاضادفاعلیت کوي اوس کچري فعل ثاني مقتضی دمفعولیت وي نونظر به اوکي کچري فعلان دافعال قلوبو نه وي نودتنازع دقطعی دپاره مذکوره طرق ثلاثه دي اودلته ماسوی داظهار نه دواړه طریقي متعین دي پس ذکرياظهار ځکه ناجائزدي چې لازمیږي تکرارباقي دواړه جائزدي حذف ځکه جائزدي چې دافعلان افعـل قلوبو نه دي او اضمار ځکه جائزدي چې دااضمار قبل الذکرلفظاًدي لارتبتاً البته بقول مصنف اضمار بهتردي دحذف نه وجه یې داده چې ضمیر مطابق اوګرزي دمراداومقصود دمتکلم نه اوضمیر عبارت دی دمرجع نه چې اسم ظاهردي کچري فعلان دافعال قلوبو وي نوپدي صورت کې فقط ذکراواظهار دمفعول به متعین دي اوباقي دواړه طریقي غیرمتعین دي حذف ځکه نشي کیدی چې لازمیږي حذف یو دمفعولینو د افعال قلوبو نه اودا ناجائزدي ځکه چې دا یه شان دیو کلمي دي او اضمار ځکه نشي متعین کیدي چې دا ضمیر به خالي نه وي یابه دمفرد ضمیر وي یابه دمثنی وي کچري ضمیر دمفرد راجع کړی شي نودراجع اومرجع په مابین کې به مطابقت راشي لیکن په افعالو دافعال قلوبو کې به مطابقت نه وي او کچري ضمیر دمثنی راجع کړی شي نوبیا به دافعالو مطابقت راشي لکین دراجع اومرجع په مابین کې به مطابقت پاتي نشي ( اوضمیر دجمعي خوپه طریقه اولی سره غیرصحیح دي) لکه مثال حسبني وحسبتُما منطلقین زیدان منطلقا پدي مثال کې اولني دواړه فعلین متنازعین دي اوآخري منطلقا په کې متنازع فیه دي حسبني فعل اول مقتضی دمفعول ثاني دي او مفعول اول په کې ضمیر دیاء متکلم دي دغه شان حسبتماهم دمفعول ثني مقتضی دي اومفعول اول په کې هما دي الزیدان دحسبني دپاره فاعل دي اوپه مذهب دکوفیینو باندي دفعل اول دپاره منطلقا مفعول ثاني شو او دحسبتهما دپاره یې مستقلاً ذکرکړوچې منطلقین دي-

اوس مثال ته خیال کوه کچري منطلقین تري حذف شي نو یلزم الاقتصار (اکتفی) علی احدالمفعولین فی افعال القلوب وهو غیرجائز او کچري اضمار په کې متعین نشي نویابه مفرد وي یا مثنی کچري ضمیر دمفرد په کې متعین شي اوداسي اووائی حسبني وحسبتما ایاه الزیدان منطلقا - پدي صورت کې دراجع اومرجع په مابین کې مطابقت نشته لیکن دفعل اول دفعل ثاني سره مطابقت نشته ځکه چې حسبني مفرددي اوحسبتهما تثنیه ده اوضمیر دایاه هم مفرددی پس دا ناجائز دي او کچري ضمیر دمثنی متعین کړی شي اوداسي اووائی چې حسبني وحسبتهما ایاهما الزیدان منطلقا پدي صورت دافعال مطابقت شته لیکن دراجع اومرجع په مابین

کي مطابقت نشته یعني ضمیر د متنی راجع دي منطلقانه او د او احدي او داهم ناجائز دي پس ځکه تـاداخیره معلومـه کـړه نـو فقط اظهـار متعین شـو یعني منطلقین ورلـه مسـتقلاً ذکرشـو ورسته دحسبتهمانه پس ذکر د مفعول پدې صورت کې واجب دی

## مفعول مالم یسمّ فاعله

مَفْعُوْلُ مَالَمْ یُسَمَّ فَاعِلُه وَهُوَ کُلُّ مَفْعُوْلٍ حُذِفَ فَاعِلُه وَاُقِیْمَ هُوَ مَقَامَه نَحْوَ ضُرِبَ زَیْدٌ وَحُکْمُه فِيْ تَوْحِیْدِ فِعْلِه وَتَثْنِیَتِه وَجَمْعِه وَتَذْکِیْرِه وَتَانِیْثِه عَلٰی قِیَاسِ مَا عَرَفْتَ فِي الْفَاعِلِ:

**ترجمه** مفعول مالم یسم فاعله هغه مفعول ده چه فاعل ددې به حذف کړی شوي وی او مفعول به د فاعل په ځاې قائم کړی شوی وی لکه ضُرِبَ زَیْدٌ او حکم دا دي چه فعل واحد راوړل تثنیه راوړل جمع راوړل مذکر راوړل او مونث راوړل لجمعه به قیاس کړی به هغی باندی چه کوم تا د فاعل به بحث کښ پیژندلی

**تشریح** هرکله چي مصنفؒ فارغ شو د مرفوعاتو د قسم اول نه پس شروع یې اوکړه په قسم ثاني کی چی هغه مفعول مالم یسم فاعله دی او دته نائب فاعل هم وایي

**لفظي تشریح** لفظ د ما موصوله ده په معنی دلفظ" سره ده اولم یسم په معنی دلم یذکر سره دي او په فاعله کي ء ضمیر مفعول ته راجع دي پس معنی یې مجموعه داشوه یعني دو یم قسم د مرفوعاتو نه مفعول دهغه لفظ دی ، برابره خبره ده که دغه لفظ صراحتاً وي او که تاویلاً وی ، چي دهغې فاعل ذکر نه وی په کلام کې .

**اصطلاحي تعریف** داهر هغه مفعول به ده چي حذف شوی وي فاعل دده نه او قائم شوي وي دامفعول به ځایي دفاعل یعني قائم مقام گرزیدلی وي دفاعل په اسناد دفعل کې او په اعراب درفع کي سره دتغیر دفعل معروف نه فعل مجهول ته.

**فان قیل** په فاعله کي ء ضمیر مفعول ته راجع دي او دا غیر صحیح دی ځکه چي فاعل په حقیقت کي دفعل دپاره وی نه دمفعول دپاره ؟

**قلنا** د ضمیر مفعول ته راجع دي دادادنی ملابست د وجي نه یعني کله چي فعل صادر د فاعل اینه پس واقع شي به مفعول به باندي نو د بته ادنی ملابست وایي .

**فان قیل** به لم یسم فاعله او حذف فاعله کي تقابل دی ځکه چي لم یسمی دلالت کوي به

نښوالی دیوشي باندي اوحذف دلالت کوي په قبل الوجود د نوشي باندي یاداسي اووایه چې حذف فرع وجود د شي ده نوپه دوارو عبارتونو کې تضاد دی ؟.

**قلنا**: لم یسم په معنی دلم یذکر سره دی یعني موجود به وي لیکن ذکرشوي به نوي مثال لکه ضُرِبَ زیدٌ ضُرِبَ صیغه فعل ماضي مجهول غائب ده اوزید ته مفعول مالم یسم فاعله دضُرِبَ وایي اودابه اصل کې ضَرَبَتُ زیداً ووسې فاعل سرې حذف شو ( جي ت ضمیر دمتکلم دي ) اوزید مفعول قائم مقام دفاعل اوگرزید په اسناد دفعل کې اوپه اعراب درفعي کې سره دتغیر دفعل معروف نه فعل مجهول ته نوضُرِبَ زیدٌ شي ، زید وهلی شوي دي ،

**وحکمه فی توحید...الخ**: اوحکم دمفعول مالم یسم فاعله دفعل دپاره په واحد تثنیه اوجمع اوتذکیر اوتانیث کې یشان داسم فاعل ده کوم چې مذکور دی په قسم اول کې پس کوم قواعد او ضوابط چې دفاعل دي هغه به دنائب فاعل وي ځکه چې دي نائب دي نوځه حکم چې دفاعل وي هغه به دنائب فاعل وي۔

## المبتداء والخبر

(۳) اَلْمُبْتَدَأُ وَالْخَبَرُ هُمَا اِسْمَانِ مُجَرَّدَانِ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ اَحَدُهُمَا مُسْنَدٌ اِلَيْهِ وَيُسَمّٰى الْمُبْتَدَاءُ وَالثَّانِيْ مُسْنَدٌ بِهٖ وَيُسَمّٰى الْخَبَرُ نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ وَالْعَامِلُ فِيْهِمَا مَعْنَوِيٌّ وَهُوَ الْاِبْتِدَاءُ.....

**ترجمه**: مبتدا او خبر دواړه داسې اسمونه چه عوامل لفظیه نه به خالي وي یدی کښې یو مسند الیه دی ده ته مبتداء نوم ئې کیخودلو . او دویم مسند ده دې ته خبر نوم ئې کیخودلو لکه زَيْدٌ قَائِمٌ او عامل پدې دواړو کښې معنوی ده چه هغه ابتداء ده

**تشریح** چې کله مصنفؒ فارغ شو د قسم ثاني دمرفوعاتونه نوشروع یې اوکړه په قسم ثالث اورابع باندي پس دریم قسم دمرفوعاتونه مبتداء ده اوقسم رابع خبر ده پدې فصل کې دمبتداء اوخبر دقواعد او احکامو بحث کیږي۔

**فان قیل**: مبتداء اوخبردواړه مستقل قسمونه دي دمرفوعاتونه یکاړه چې مصنف دواړه په جداجدا فصلونو کې ذکر کړي دي اوبه بعضو کتبونو کې هم جداجدا فصلونو کې ذکر دی مثلاً په کافیه وغیره کې ؟

**قلنا**: ددي دپاره دوه وجې دي اوله وجه۔مبتداء اوخبر دواړه دیو بل سره لازم اوملزوم دي یعني چې په کومه جمله کې مبتداء وي نوخبر به ورسره لازم وي اوکه خبروي نو مبتداء به ورسره

لازمه وي پس دتلازم اودلزوم دوجي نه دواړه په یوفصل کي مصنف ذکرکړي دي دویم وجه دواړه مشترک دي په عامل کي یعني سه عامل کي دواړه معنوي دي په تمام عربي کې ددریو څیزونو عامل معنوي دي (۱) مضارع (۲) مبتدا، (۳) خبر ــ یو شاعر په خپلو خبرو کې ظاهرکړیدي

## شعر

عامل فعل مضارع معنوي باشدبدان همچنین معنی بود عامل تعین درمبتدا

**عامل لفظی** مَايُدْرَكُ بِالْقَلْبِ وَتَتَلَفَّظُ: چي ادراک یې په عقل کیدی سي اوتلفظ پری هم کیدی شي

**عامل معنوي** مَايُدْرَكُ بِالْقَلْبِ وَلَاتَتَلَفَّظُ: چي ادراک یې په عقل کیږی اوتلفظ پري نشي کيدي

**تعریف دمبتداء اوخبر** داده اسمان دي (برابره خبره ده که حقیقتاً وي اوکه حکماً تأویلاً) داسي اسماء چي خالي دي دعوامل لفظیونه اوداسي اسماء چي دیواسم اسنادیل اسم ته شوي وي پس چي کوم اسم ته اسنادشوي وي دغه اسم لره مسمی دي په مسند الیه سره اوده ته مبتداء هم وایي ـ اوچي کوم اسم اسنادیل ته شوي وي دغه اسم مسمی دي په مسند به سره اوده ته خبرهم وایي لکه زید قائم ـ زید مبتدا، مسند الیه دي او قائمٌ یې خبر مسند به دي

**فان قیل** دهغه اسماء نه دامعلومیږي چي دواړه به اسماء وي پس داتعریف منقوض دي په دي آیت باندي ـ وَاَنْ تَصُوْمُوْاخَيْرٌلَّكُمْ دلته تصوموا مبتدا واقع شوي دي حالانکه دافعل دي اودغه شان خبرهم جامع بافراده نه دي څکه چي زید ضَرَبَ تري خارج شویعني ضرب خبرواقع شوي ده حلانکه فعل دي

**قلنا** زمونږمراد عام دي که اسماء حقیقتاً وي لکه زید قائمٌ اوکه تاویلاً وي پس ان تصوموا په معنی صیامکم سره دي اوداضابطه ده چي ان مصدریه په مضارع داخل شي نومعنی به یې په مصدرسره وي اومصدرهم اسم دي اودغه شان ضَرَبَ ضرب سه معنی دضرباً سره دی، دي اگرچي ان مصدریه پري نه دي داخل لیکن هرهغه فعل چي خبرواقع شوي وي هغه به په معنی دمصدرسره وي پس خلاصه داشوه چي ان تصوموا اوضَرَبَ اسماء دي بعدتاویلاً په ترکیب دمبتداء اوخبرکي.

**فان قیل** په مجردان باندي سوال دي چي مجرددتجریدنه ماخوذ ده اوتجرید په معنی دخالي کولو سره دي ـ نودمجردان معنی به داشي چي خالي کړی سوي وي دعوامل لفظیونه اوداضابطه ده خالي کول دیوشي فرع د وجوددوشي ده نودامعلومیږي حي مخکښي پری عوامل لفظیه داخل وومگرپیاخالي

کړي شو. حالانکه تراوسه پوري په مبتداء او خبرباندي عوامل لفظيه نه دي موندلي شوي.

**قلنا** دلته تجريد په معنی مجازي کي مستعمل دی چي عدم دي يعني نشوالی ديو شي ترابتداء نه نو معنی به يي دا شي چي نه وي راغلی پدي کي عوامل لفظيه. دتجريد مجازي دپاره يو مثال. معقوله سبحان الذی اصغر البعوض يعني بعوض: مچهر، ماشي دکبرنه خالي دی اوس دي دامطلب نه دي چي مخکي په جسامت کي دهاتي، فيل، غوندي وو بيا يي تجريد اوشو

**فـان قيل**: لفظ دعوامل جمع ده او دجمعي اطلاق کم ازکم په دريو باندي کيږي نودعبارت مطلب به دا شي چي خالي وي ددريو عوامل لفظيونه اوکه دوه عوامل په کي راغلی وي نو خيردي ؟

**قلنـا**: په العوامل باندي الف لام جنسي داخل دي سں چي الف لام جنسي په صيغی دجمعي داخل شي نو دهغي جمعيت قطع کوي او جنس سري مرادوي او دجنس اطلاق په يوباندي هم کيږي او په زيا تو باندي هم کيږي.

**والعـامل فيهمـا معنوي وهوالابتداء**: په مبتداء او خبردواړو کي عامل معنوي ابتداء ده اوپدي عامل معنوي کي مذاهب ثلاثه دي

(۱) جمهور علماء نحوواييي چي عامل دمبتداء او خبردواړو معنوی دي

(۲) بعضي نحويان وايي چي عامل دمبتداء معنوي دي او عامل دخبر مبتداء ده يعني په خبر کي عمل مبتداء کوي.

(۳) ديگر علماء نحووايي چي مبتداء عامل ده دخبر او خبر عامل ده دمبتداء يعني دواړه په يو بل کي عمل کوي. پدي کي مختاره مذهب دجمهور دي نو مصنف هم ترجيح ورکړه اولني مذهب ته چي عامل ددواړو معنوي دي چي ابتداء ده

**فـان قيل** هرکله چي عامل معنوي ابتداء شو نو تعريف دعامل معنوي منقوض ده په ابتداء خکه چي ابتداء خولفظ ده او تلفظ پري کيږي نو څه وجه ده ددي دپاره.

**قلنا** دعامل معنوي معنی دا ده چي خالي کيدل دی دعواملو لفظيونه بس ابتداء خالي ده دعواملو لفظيونه يعني داخالي کيدل يوه قرينه ده دعامل معنوی

**وَأَصْلُ الْمُبْتَدَأِ أَنْ يَكُوْنَ مَعْرِفَةً وَأَصْلُ الْخَبَرِ أَنْ يَكُوْنَ نَكِرَةً وَالنَّكِرَةُ إِذَا وُصِفَتْ جَازَ أَنْ تَقَعَ مُبْتَدَأً نَحْوُ قَوْلِهِ تَعَالَى وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ:**

**ترجمه** اصل په مبتدا کښې داده چه دا به معرفه وي او اصل په خبر داده چه دا به نکره وي چکله د نکرې صفت راوړلې شي نو مبتدا جوړول ئې جائز دي لکه د الله تعالى دا قول وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ

**تشریح** اصل په معنى د راجح سره دي يا په معنى د اولى سره دي په دي عبارت کي دوه راجحه دي يعني أصله يو اصل راجح دمبتدا سره دي او بل د خبر سره . دمبتداء سره قاعده متعلقه داده چې مبتداء به معرفه وي او دخبر سره قاعده متعلقه داده چې خبر به نکره وي دنحويانو په اصطلاح کې دا سې ذکرکيږي چې اصل په مبتداء کې تعريف دي او اصل په خبرکې تنکير دي دمبتداء دتعريف دپاره وجه داده چې مبتد امحکوم عليه وي يعني حکم پرې لګولې شي اوحکم لګول دا فرع دتعريف ديو شي ده او دخبر دنکارت دپاره وجه داده چې خبر حکم دي چې ثابتيږي دپره دمبتداء برابره خبره ده که دغه خبرنکره وي او که معرفه وي اوس خيال کوه خبراسم دي او اصل په اسماء کې تنکيردي نو خبر خپل اصل ته راجع شو نو څکه نحويان وايي چې اصل په خبرکې تنکيردي .

**فان قيل** مبتداء هم اسم دي نو هلته خو داصل نه خلاف کړې شوي دي

**قلنا** هلته عذر موجود دي چې مبتداء محکوم عليه وي او دحکم ثابتولو دپاره تعريف ديو شي ضروري وي نو مبتدا څکه معرفه ده

**فان قيل** دعبارت نه خو دامعلوميږي چې مبتدا به دائماً ابداً معرفه وي او کله کله مبتدا نکره هم واقع کيږي

**قلنا** مصنف جواب په خپله کړي چې نکره کله موصوفه وي په يو صفت سره نو داجائز ده په مبتداء سره يعني هغه نکره صحيح نه ده چې مطلق نکره وي مصنفؒ مثال ذکرکړي دي آيت قرآني ولعبد مومن خير من مشرك عبد نکره موصوفه ده ، اولام په کې ابتدائيه تاکيديه دي ، او عبد مبتداء واقع شوي دي او ددي دپاره وجه داده چې نکره موصوفه قريبه ده معرفې ته او داقانون دي چې قريب لره حکم دعين دشي وي نو ګويا نکره به حکم دمعرفې کې شوه

**فان قيل** نکره موصوفه څنګه قريبه ده معرفې ته .

**قلنا** نکره موصوفه قريبه ده معرفې ته په دې شان سره چې په معرفه کې شرکاء نه وي او په نکره کې شرکاء ډيروي پس چې کومه نکره موصوفه شي په يو صفت سره نو تقليل په کې واقع کيږي دشرکاء نه او تقليل دشرکاؤ په نکره کې تقريب الى المعرفه ده لکه لفظ والعبد مخکې شامل وو مسلم . مشرك . کافر . فاجر . فاسق . هندو وغيروته چې کله يې صفت دمومن

ذکرشونو تقلیل به کي راغلی دشرکاونه فقط مسلمان غلام تري مراددي پس عبدموصوف شو به وصف دمومن سره نونکره موصوفه قریبه شوه معرفي ته لکه به حکم دمعرفي کي شوه نوځکه جائزه ده به مبتداء سره.

وَكَذَا إِذَا تَخَصَّصَتْ بِوَجْهٍ آخَرَ نَحْوُ أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمِ امْرَأَةٌ وَمَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْكَ وَشَرٌّ أَهَرَّ ذَا نَابٍ وَفِي الدَّارِ رَجُلٌ وَسَلَامٌ عَلَيْكَ:

**ترجمه** همدغه رنګي چه کله نکره مخصصه کړی شي بلي وجه سره (أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمِ امْرَأَةٌ وَمَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْكَ وَشَرٌّ أَهَرَّ ذَا نَابٍ وَفِي الدَّارِ رَجُلٌ وَسَلَامٌ عَلَيْكَ)

**تشریح** وکذااذااشاره ده مخکښی عبارت ته یعني ځنګه چي نکره موصوفه بابتداء جائزه ده دغه شان چي ذکوسي نکري تخصص به بوي بلي وجي سره اوکړی شي نو داهم مبتداء واقع کیدي شي اودینه نکره مخصصه وایی او دتخصیص دنکری دپاره بنځه وجي دي پس چي کله دنکري تخصیص اوکړی شي به وجوه خمسو سره نودانکره بابتداء جائزه ده

**اوله وجه** چي تخصیص اوکړی شي دنکري به بوي بلي وجي سره یعني مطلب دادي چي ځنګه مخکي دنکري موصوفي دپاره دقرابت وجه وه نودلته هم دغه سي وجه ده چي نکره مخصصه قریبه ده معرفي ته یعني چي تخصص سي او شي نوتقلیل به کي دشرکاوراخي نوځکه قریبه ده معرفي ته اوقریب لره حکم دعین شي وي پس بوجه آخرنه مراددادي چي تخصیص بي دبلي وجي نه راغلی وي او سوه وجه دنکري موصوفي دپاره ذکرشوه پس دامثال دمخصصي دي أرجلٌ في الدار ام امرأة. همزه استفهامیه ده رجل نکره ده في الدار جارمجرورخبردي امْ عطف دي یعني امرأة عطف دي به رجل باندي نورجل اوامراة دواړه نکري مخصصي دي اودتخصیص دپاره بي وجه داده چي همزه استفهامیه دام سره متصل راغلي وي نوسدي صورت کي به دنکري تخصیص کړی شوي وي اودام معنی داده چي دي راخي دتعین داحدالامرین دپاره بعنی سائل چي کله به سوال کي ام ذکرکړي به مابین دَدوولفظونو کي ( لکه مثل مذکور) نوجو ← داحد الامرین به ضرور سائل ته معلوم وي یعني به وجود دَرجل یادَمرأ به دی عالم وی خونسوس به فقط دتعین داحدالامرین کوي چي ماته دااوخابه چي سړی دي اوکه ښځه ( سره دوجودیونه ) پس علم دمتکلم حاصل دی به وجود داحدالامرین باندي نودانکری دتخصیص وجه ده خلاصه داشوه به ارجل في الدار ام امرة کي رجل اومرأنکری مخصصی دی دعلم دمتکلم وجي نه

**دويمه وجه** **وَمَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْكَ** ما نافيه دي احد مبتدا، نكره مخصصه ده او خبر منك يې خبر دي دي تخصيص وجه داده چې مخکې تري حرف نفي واقع شوي دي او دا قانون دي چې نکره واقع شي بعد د نفي نه نو هغه نکره مفيد د عموم دپاره وي نو معنى به د مثال داشي چې هيڅ يو کس نشته ستا نه افضل .دلته احد نکره ده او مفيد د عموم دپاره ده نو تخصيص د نکري په اعتبار د عموميت سره او گرزيد.

**فان قيل** تخصيص د نکري ثابت شو په عموم سره او تخصيص او عموم دواړه مقابل دي او تضاد دي په کې

**قلنا** د تخصيص دوه معنى دي (۱) يو تخصيص په معنى د تفرّد (انفراد يت ۲۱) سره دي (۲) بل تخصيص په معنى د قلتُ الشُّيُوْع (شيوع: شائع نه ماخوذ ده ۲۱) سره دي د شيوع نه مراد د عموم واخله نو دلته تخصيص د عموم دوجې نه راغلي دي لکه احد خير منك يد دي کې د متکلم مطلب داوي چې بهتروالي د مخاطب دپاره ثابت شي او دنور تولو نه نفي شي نو پس بهتروالي د ټول مخلوق نه منتفي دي او ثابت دى منك لره نو بهتروالي اول ټولو له شامل وو په لفظ د منكَ سره په کې تخصيص راغى خلاصه داشوه چې مخکې خيريت شائع وو يعني ټولو ته شامل وو په لفظ منكَ سره مخصوص شو پس دا تخصيص دي په معنى د قلت اشيوع سره په معنى د تفرد سره.

**دريمه وجه** **وشَراهرذاناب:** شرٌ نكره مخصصه مبتدا، ده اهر ذاناب ورله خبر دي د دې نکري د تخصيص دپاره دوه وجې دي اوله وجه داعبارت په اصل کې اهر ذاناب شرٌ وو. أهرّ صيغه د فعل ماضي معروف ده او ضمير د روفاعل او ذاناب يې مفعول به ده او شرٌ بدل دي د ضمير دأهرّ نه او ضمير يې مبدل منه دي بيا لفظ د شرٌ مقدم کړى شو دپاره د تخصيص او دا قانون دي چې تقديم ما حقه تاخير مفيد د تخصيص دپاره وي نو ځکه شر نکره مخصصه مبتدا، واقع شوي ده.

**دويمه وجه** په شرٌ باندي تنوين دي او دغه تنوين د تعظيم دپاره دي په دي شان سره چې **شرٌ عظيمٌ أهرَّ ذاناب** شر په معنى د مصيبت عظيم سره دي او أهرّ په معنى د دار (داري مخکښي غاغو نه چې غپ غپ وي لکه د غشو ۲۱) سره دي او مراد ترې سپي دي بعني د سپي هم داري وي او داهر مصدر اهر يُهْرّ اهْرَارٌ په معنى غپيدل پس د عبارت معنى به داشي چې يو مصيبت عظيم راغى او و يې غپو سپي لره. دا دليل دي په تعظيم د تنوين د شرٌ باندي او کجري تنوين د تعظيم دپاره نوي نو بيا خو به عام شر باندي سپي انگو اري نکوي او دا يو عظيم خبر دي چې به

لويي مصيبت واقع كيدلو باندي سپي چغي وهي ( خلاف شرع ) پس خلاصه دا شوه چي تنوين دتخصيص دپاره دي په شر کي نو څكه شر نكره مخصصه مبتداء واقع دہ۔

**څلورمه وجه** دفي الدار رجل في الدار جار مجرور خبر مقدم دي اورجل نكره مخصصه مبتداء مؤخره ده دلمه په رجل نكره كي تخصيص راغلى په نسبت دعلم دمخاطب نه پدي سان سره چي متكلم فقط في الدار ذكر كړي نو مخاطب به دا سنه اولګي حي ددي بعد به داسي لفظ ذكر كوي چي داستغراء في الدار صلاحيت به كي وي نو ګويا په رجل كي ' يك كنه تخصيص راغي چي صلاحيت دكور په كي موجود دي نو څكه درجل مبتداء واقع كيدل صحيح ده چي خبر ظرف وي او مقدم وي په نكره باندي نو دنكري تخصيص په اعتبار دتعديم دخبر سره دي او دا قديم دخبر څكه جائز دي چي متكلم في الدار ذكر كړي الخ حي مذكور دي.

**پنځمه وجه** وَسَلَامٌ عَلَيْكَ: سلام مبتداء دہ عليك خبر دي سلام نكره مخصصه دہ او تخصيص يي په دي اعتبار سره دي چي دا په اصل كي سَلَّمْتُ سلاماً عليكَ وو . سلام مفعول مطلق دسلمت دپاره دي او سلمت فعل فاعل دي نسبت يي عليك ته شوي دي پس سلمت دتخفيف دپاره حذف شو او سلاماً مبتدا واقع شوه سره دمرفوع كيدلو نه څكه چي مبتدا مرفوع وي . نو ګويا دا په اصل كي جمله فعليه وه او بعد دتخفيف نه تري جمله اسميه جوړه شوه

**فان قيل** جمله اسميه تري ولي جوړه شوه ؟

**قلنا** : دجملي فعليي نه متجاوز جملي اسميي ته څكه راغلي چي جمله فعليه دلالت په تجدد باندي كوي او جمله اسميه دلالت په دوام او استمرار باندي كوي نو به سلام كي نسبت متكلم ته راغلي دي نو ددي تخصيص دوجي نه سلام مبتداء نكره مخصصه ، واقع شوي دي.

وَإِنْ كَانَ أَحَدُ الْإِسْمَيْنِ مَعْرِفَةً وَالْآخَرُ نَكِرَةً فَاجْعَلِ الْمَعْرِفَةَ مُبْتَدَأً وَالنَّكِرَةَ خَبَرًا أَلْبَتَّةَ كَمَا مَرَّ وَإِنْ كَانَا مَعْرِفَتَيْنِ فَاجْعَلْ أَيَّهُمَا شِئْتَ مُبْتَدَأً وَالْآخَرَ خَبَرًا نَحْوُ اللهُ إِلٰهُنَا وَمُحَمَّدٌ نَبِيُّنَا وَآدَمُ أَبُوْنَا

**ترجمه عبارت** كچري په دوه اسمونو كي يو معرفه او بل نكره نو معرفه به مبتدا او ګرزي او نكره به خبر لكه مخكي مثالونه چي ذكر شوي دي او كچري دواړه اسماء معرفي وي نو بيا تاسو ته اختيار دي چي په دواړو كي هر يو مبتداء جوړ كړئ : په هغه وخت كي چي جمله خبريه جوړوي ، او دويم خبر جوړ كړي لكه الله الهنا . محمد نبينا وادم ابونا وغيره . پس كچري الله الهنا دغه شان ذكر كړي څوك نو بيا قاعده ده چي كوم مقدم وي هغه به مبتداء جوړ كړي او چي كوم موخروي هغه به خبر جوړ كړي۔

وَقَدْ يَكُوْنُ الْخَبَرُ جُمْلَةً اِسْمِيَّةً نَحْوُ زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ اَوْ فِعْلِيَّةً نَحْوُ زَيْدٌ قَامَ اَبُوْهُ اَوْ شَرْطِيَّةً نَحْوُ زَيْدٌ اِنْ جَاءَ نِيْ فَاَكْرَمْتُهٗ اَوْ ظَرْفِيَّةً نَحْوُ زَيْدٌ خَلْفَكَ وَعَمْرٌو فِي الدَّارِ.

**توجمه** کله به خبر جمله اسمیه وی لکه (زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ) یا به جمله فعلیه وی لکه (زَيْدٌ قَامَ اَبُوْهُ) یا به جمع شرطیه وی (زَيْدٌ اِنْ جَاءَنِيْ فَاَكْرَمْتُهٗ) او یا به ظرفیه وی لکه (زَيْدٌ خَلْفَكَ وَعَمْرٌو فِي الدَّارِ)

**تشریح** قد چې په ماضی داخل شي نو په معنی د تقلیل سره یعني کله کله خبر جمله هم واقع کیدلي شي ددي عبارت مطلب دادي چې مخکې یو قانون ذکر شو هغه داچې خبر دي مفرد وي یعني دااصل خبره ده برائ افرادخبر دپاره او پدي عبارت کی مصنف هغه مواضع ذکر کوي چې خبر کله کله جمله هم واقع کیدي شي برابره خبره ده که دغه جمله فعلیه وي او که اسمیه وي او که شرطیه وي او که ظرفیه وي پس دخبر دپاره دوه مواضع شو یو افراداوبل جمله واقع کیدل پدي کې راجع افرادي ځکه چې افرادا اصل دي او اصلیت یې په دې بنا ، سره دي چې خبرکله مفرد واقع شي نو پدي صورت کې حاجت نه وي عائد ته ، یعني ای رابط ، او حې خبر کله جمله واقع شي نو پدي صورت کې عائد ته حاجت وي نو ظاهره خبره ده چې په صورت د افرادکې احتیاج نشته او دا قانون دي چې عدم احتیاج اصل دي په نسبت سره احتیاج ته نو ځکه مصنف دااو وئیل چې اصل او راجحه خبره داده چې خبر دي مفرد وي او کله کله به جمله هم واقع وی . او دهري جملي دپاره مثال مستقل مذکور في الهدایة النحو دي .

# بیان د ظرف

وَالظَّرْفُ مُتَعَلِّقٌ بِجُمْلَةٍ عِنْدَ الْاَكْثَرِ وَهِيَ اِسْتَقَرَّ مَثَلًا تَقُوْلُ زَيْدٌ فِي الدَّارِ تَقْدِيْرُهٗ زَيْدٌ اِسْتَقَرَّ فِي الدَّارِ

**توجمه** ظرف به د اکثر علماء نحو په نزد بانديدا به د جملي سره متعلق وی چه هغه استقر دي لکه (زَيْدٌ فِي الدَّارِ) چه په اصل کښ (زَيْدٌ اِسْتَقَرَّ فِي الدَّارِ)

**تشریح** ددي عبارت نه وړاندي جمله ظرفیه ذکر شوه نو مصنف ته ظرف یادشو اودایوه مشهوره معقوله ده چې (خبره دخبري نه معلومیږي ، پدي عبارت مصنف دجار مجرور دمتعلق بحث کوي پس دغه جار مجرور ته ظرف وایي خلاصه داده

چې ظرف په دوه قسمه دي یو حقیقي بل مجازي۔

ظرف حقیقي په دوه قسمه دي یو ظرف مکان دي او بل ظرف زمن

دغه شان ظرف مجازي هم په دوه قسمه دي يو ظرف مستقر دي او بل ظرف لغو دي
تفصيل يې په اوله صفحه دبسم الله کې مذکور دی دلته مصنف نه مختاره او غوره
مذهب دبصريينو دی يعني متعلّق دظرف مستقر به فعل وي يا دافعال عامه نه يا دافعال
خاصونه او فعل څکه اولی دي چې داقانون دي چې هر متعلَّق به عامل وي په خپل متعلق کې
او اصل به عمل کې فعل دي . نو څکه دبصريينو مذهب قوي دی . **وهي استقر** داپه
اکثرو مواضعو کې واقع کيږي لکه زيد في الدار زيد مبتدا . في الدار جار مجرور متعلق شو په
ظرف مستقر يوري متعلق سره دخپل متعلق نه داخبر شو باره دمبتدا ، تقدير بري داسې دي
زيد استقر في الدار . دزيد دپاره ځايي داستقرار په کور کې دی .

**وَلَابُدَّ فِي الْجُمْلَةِ مِنْ ضَمِيرٍ يَعُوْدُ اِلَى الْمُبْتَدَاءِ كَالْهَاءِ فِيْ مَامَرَّ وَيَجُوْزُ حَذْفُهُ عِنْدَ وُجُوْدِ قَرِيْنَةٍ نَحْوُ اَلسَّمْنُ مَنَوَانِ بِدِرْهَمٍ وَالْبُرُّ اَلْكُرُّ بِسِتِّيْنَ دِرْهَمًا وَقَدْ يَتَقَدَّمُ الْخَبَرُ عَلَى الْمُبْتَدَا نَحْوُ فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَيَجُوْزُ لِلْمُبْتَدَا الْوَاحِدِ اَخْبَارٌ كَثِيْرَةٌ نَحْوُ زَيْدٌ عَالِمٌ فَاضِلٌ عَاقِلٌ.**

**ترجمه** جمله کښې ضمير راوړل ضروري دي هغه به متکلم ظرف ته به راجع وي لکه ها . په
تيرشوي مثالونو کښې او جمله کښې هم دغه ضمير حذف کول نې جائز دي چکله قرينه موجود وي
لکه اَلسَّمْنُ مَنَوَانِ بِدِرْهَمٍ او کله به خبر په مبتدا باندي مقدم کولي شي لکه فِي الدَّارِ زَيْدٌ يو مبتدا لپاره ډېر
اخبار راوړل جائز دی لکه زَيْدٌ عَالِمٌ فَاضِلٌ عَاقِلٌ .

**تشريح** ددې عبارت تفصيل دادي چې کله خبر جمله واقع شي نو په دې صورت کې به
عائد ته حاجت وي څکه چې دمبتدا ، او خبر په مينځ کې ارتباط او ترون ضروري وي اُس خبري نه
خيال کوه چې کله خبر جمله واقع شي نو دغه جملې دمبتدا ، سره هيڅ قسمه ربط نوي څکه چې
جمله مستقله للبحثها او مربوطه بغير هاوي يعني جمله په خبلو کښې او جز ، ينو ، کلام باندې
مستقله او تامه وي نو څکه يې دبل يو شي سره ارتباط او ترون ته ضرورت نوي نو اوس پکار ده
چې دمبتدا ، او خبر په ما بين کې ربط راشي نو پس دمبتدا او خبر په مابين کې چې کوم عائد ، رابط ،
ده هغه په څلور قسمه دي (۱) ، عائد کله ضمير واقع کيږي لکه مثال مذکور زيد ابوه قائم ـ
زيد مبتدا ، ده ابوه قائم ورله جمله خبر واقع شوی ده او هاضمير په کې عائد ، رابط ، دي چې راجع
وي زيد ته نو په دغه ضمير سره دمبتدا ، او خبر ارتباط راغی (۲) ، عائد کله کله الف لام واقع کيږي .
لکه نعم الرجل زيد . نعم فعل دي رجل يې فاعل فعل سره د فاعل نه دا جمله خبر مقدم دي

اوزيدمبتداء مؤخره ده پدې کې الف لام عائددی په ارتباط دمبتداء. اوخبرسره (۳) دریم عائد وضع داسم ظاهرده په ځای داسم ضمير لکه آيت شريف کې اَلْحَآقَّةُ مَا الْحَآقَّةُ الحاقة مبتداء، ده ما الحاقة خبرپس په الحاقة کې الف لام عائدنه ده بلکه عائدپه کې وضع داسم ظاهرده چې په اصل کې الحاقة ماهي واو په اصليت ددې دليل قانون دنحوي دي چې يو لفظ کله په اسم ظاهر سره ذکرشو نوبيابه ورته ضمير راجع کيږي نوځکه هي ضمير الحاقة ته راجع دي پس ضمير دهي تري حذف شو او وضع داسم ظاهرورله عائد جوړشو چې ما الحاقة دي (۴) څلورم قسم عائد جمله تفسير واقع کيدل دي دپاره دمبتدا لکه قل هُوَاللهُ احدٌ هُوَ مبتداء، ده او الله احدورله جمله تفسير واقع شوي ده يعني هغه ذات چې الله احددي او دېته ضمير الشان هم وايي.

**ويجوزحذفه عندوجودقرينة:** دعائدضمير جائزده چې کله قرينه موجوده وي لکه السمن (غوړي) منوان بدرهم. السمن مبتداء ده منوان مبتداء ثاني بدرهم بې خبر مبتداء ثاني سره دخبرنه داجمله خبرشو دپاره دمبتداء. داپه اصل کې السمن منوان منه بدرهم. منه راجع دي السمن ته پس داحذف جائزدي بل مثال لکه البُرُّ الكُرُّ بِسِتِّيْنَ. البر مبتداء، الكر مبتداء، ثاني سره دخبرنه جمله خبر شو دپاره دمبتداء اول وهذا القياس.

**وقد يتقدم الخبر على المبتداء نحوفي الدارزيد:** قدپه صيغې دفعل ماضي داخل ده په معنی دتقليل سره ده يعني کله کله خبرمقدم وي په مبتداء پدې عبارت کې دمصنفؒ مطلب دادي چې اصل په مبتداء کې تقديم دي او اصل په خبرکې تاخيردي ځکه چې مبتداء ذات دي او خبروصف دي او ذات مقدم وي په وصف باندې نوځکه اصل په مبتدا کې تقديم دي او په خبرکې تاخيردي ليکن کله کله مبتداء هم مؤخره کيدې شي او کله کله خبرهم مقدم کيدې شي تقديم دخبرپه هغه مقاماتوکې راځي چې کله خبرظرف واقع شوي وي لکه فی الدارزيد. فی الدارظرف واقع شوي دي اوخبرمقدم دي اوزيدمبتداء مؤخره ده (داهغه صورت دي چې مخاطب ته پدې کې وجودعلم دمبتداء مؤخري وي).

**ويجوزللمبتداء الواحداخبارکثيرة نحوزيد عالم فاضل عاقل:** دامسئله ده چې ديوې مبتداء دپاره ډيراخباره کيدل جائزدي لکه مثال مذکورچې زيدپه کې مبتداء ده او عالم فاصل عاقل ورله اخبار ثلاثه ذکرشوي دي برابره خبره ده که دااخبارونه په واو عطف سره وي اوکه نه وي پس تعدداخباروپه دوه قسمه دي (۱) يوتعددجوازي دي (۲) بل تعددوجوبي دي پس تعددجوازي به هغه وخت کې دي چې کله ديوخبرمعنی بغيرذکرکولودنوررونه معلوميږي نوپدې صورت کې

جائزدي حذف دنورو اخبارونو لکه مثال مذکورچي فقط زيد علم اوويلى شي نوداجائز ده اوتعدد وجوبي په خلاف ددي ده چې کله ديوخبرمعنى بغيرد ذکرکولو دنوروا خبارونو نه معلوميږي لکه مثال الابلق لسوداوليض. ابلق برگ ته وايي چې مرکب وي دتوراوسپين نه نودلته ذکرد خبرديگرجواب دي ځکه چې ابلق فقط په اسودته تمامېږي اونه په ابيض تماميږي.

**وَاعْلَمْ اَنَّ لَهُمْ قِسْمًا اٰخَرَ مِنَ الْمُبْتَدَاءِ لَيْسَ مُسْنَدًا اِلَيْهِ وَهُوَ صِفَةٌ وَقَعَتْ بَعْدَ حَرْفِ النَّفْيِ نَحْوُ مَاقَائِمٌ زَيْدٌ اَوْبَعْدَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ نَحْوُ اَقَائِمٌ زَيْدٌ بِشَرْطِ اَنْ تَرْفَعَ تِلْكَ الصِّفَةُ اِسْمًا ظَاهِرًا نَحْوُ مَاقَائِمٌ الزَّيْدَانِ وَاَقَائِمٌ الزَّيْدَانِ بِخِلَافِ مَاقَائِمَانِ الزَّيْدَانِ۔**

**ترجمه** يوبل شه چه د نحويانو په نزد بل قسم مبتدا هم شته چه هغه به مسند اليه نه وى هغه به صيغه د صفت وى چه د حرف نفى نه پس به واقع وى لکه مَاقَائِمٌ زَيْدٌ يا به د حرف استفهام نه پس وى اَقَائِمٌ زَيْدٌ پدي شرط سره چه دا صيغه د صفت به اسم ظاهر ته رفع ورکوى لکه مَاقَائِمٌ الزَّيْدَانِ او اَقَائِمٌ الزَّيْدَانِ په خلاف د مَاقَائِمَانِ الزَّيْدَانِ

**تشريح:** خلاصه داده چې نحاتو مبتداء په دوو قسمونو کې منقسمه کړيده يوقسم مبتداء هغه ده چې مسند اليه واقع وي په کلام کې اوبل قسم مبتداء هغه ده چې هغه مسند اليه نوي بلکه مسند وي اسم ظاهرته کوم چې قائم مقام دخبروي ليکن داخبره باد ساته چې خالي کيدل دعوامل لفظيونه په دواړوکې شرط دي پس هرکله چې شيخ فارغ شوقسم اول دمبتداء نه نوشروع يې اوکړه په قسم ثاني دمبتدا باندي .شيخ فرمايي چې قسم اول دمبتداء هغه ده چې کوم ماسبق تيرشواوقسم ثاني دمبتداء دنحاتو دادي چې په دي باندي تمامونحاتوبنابرضرورت اقرار کړى دي يعني هرکله چې پدي قسم مبتداء کې داعراب دابتداء نه بغيرڅه وجه نه وه موجوده نومجبوراً دوى دا قسم مبتداء په مبتداء ثاني سره اوگرزوله تعريف دقسم ثاني دمبتداء داهغه صيغه دصفت (مرادترى مشتقي ياقائم مقام دمشتقي دي) چې واقع وي پس دحرف نفي نه يا واقع وي پس دحرف استفهام نه پدي شرطه چې دغه صيغه دصفت به عمل په اسم ظاهرکې کوي صيغه دصفت مشتقي لکه قائمٌ. قاتلٌ. کاتبٌ وغيره اوقائم مقام دمشتقي دپاره مثال چې ياى نسبتي يې په آخرکې راغلى وي لکه مثلاً ماقائم زيد ماحرف نفي ده قائم شبه فعل ده اوعامل دي دزيدپاره چې اسم ظاهرده اورفع يې لري کړيده اسم ظاهرنه پس قائم سره دخپلو شروطونه مبتداء ثاني ده اوزيد قائم مقام دخبرواقع شوي دي.

**فان قيل** په اسماً ظاهراً سره احترازراغی دضمائرونه حالانکه داقانون منقوض ده په دي

آیت باندي **أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ** پدي کي راغب قسم ثاني دمبتداء دي اوعمل يې په انت ضمير کې کړی دہ او دا اسم ظاهرنه ده نو څه وجه کیدي شي

**قلنا** دا اسم ظاهرنه مرادعام دي که حقيقتاً وي او که حکماً ليس انت ضمير بارز دي او ضمير بارز په حکم داسم ظاهر کی دی نو په اسماظاهراً سره احترازاغی دضمائر ومستترونه فقط.

**ماقائم الزيدان**. قائم قسم ثاني دمبتداده چي واقع ده بعد دحرف نفي نه او عمل يې په اسم ظاهر کې کړيدي چې الزيدان قائم مقام دخبرد ي او قائم مبتداء ثاني ځکه ده چي واحد ذکر شوې ده حې اسناد يې اسم ظاهرته شوي دي او دا قانون دي چې هر کله اسنادفعل اسم ظاهرته اوشي نو دغه فعل يا شبه فعل به همېشه واحد ذکر کولی شي.

**بخلاف اقائمان الزيدان**: يعني په خلاف ددی نه يعني قائمان خبرمقدم دی الزيدان مبتداء مؤخر ده

**تفصيل** صيغه دصفت او اسم ظاهرچې کله دواړه مفردوي نو په دي صورت کې دوه أمره جائزدي يو داچې صيغه دصفت مبتداء وي او اسم ظاهريې فاعل وي بل امرداچي اسم ظاهر مبتداء مؤخره وي او صيغه دصفت خبرمقدم وي بس په دي وخت کې به صيغې دصفت کې يو ضمير وي چې راجع به وي داسم ظاهرطرف ته او س دلته دمطابقت او مخالفت دری صورتونه جوړيږي

(۱) يو داچي مطابقت په افراد کې وي يعني چي صيغه دصفت او اسم ظاهر دواړه مفردوي لکه ماقائم زيد پدي صورت کې دواړه امره جائز دي يعني زيد مبتداء مؤخراو قائم خبرمقدم يا قائم مبتداء او زيد يې فاعل

(۲) دويم صورت داچې داسم ظاهراو صفت مطابقت په تثنيه او جمع کې وي لکه ماقائمان الزيدان او ماقائمون الزيدون پدي صورت داسم ظاهرمبتداء کيدل واجب دي او صيغه دصفت به خبرمقدم وي ورنه اضمار قبل الذکر به لازميږي چې باطل ده

(۳) دريم صورت داچې مخالفت په افراد تثنيه او جمع کي وي يعني چي صفت مفردوي او اسم ظاهرتثنيه وي يا جمع وي لکه اقائم الزيدان يااقائم الزيدون نو پدي صورت کې به صفت يقيناً مبتداء (قسم ثاني دمبتدا) وي ورنه ضمير به د تثنيي ياجمع طرف ته راجع شي او دا هم باطل دي نو مصنفؒ ځکه بخلاف ماقائمان الزيدان ذکرکړو.

# خبران واخوتها

(۵) **فَصْلٌ**: خَبَرُ اِنَّ وَاَخَوَاتِهَا وَهِيَ اَنَّ وَكَاَنَّ وَلٰكِنَّ وَلَيْتَ وَلَعَلَّ فَهٰذِهِ الْحُرُوْفُ تَدْخُلُ عَلَى الْمُبْتَدَأِ وَالْخَبَرِ فَتَنْصِبُ الْمُبْتَدَأَ وَيُسَمّٰى اِسْمُ اِنَّ وَتَرْفَعُ الْخَبَرَ وَيُسَمّٰى خَبَرُ اِنَّ فَخَبَرُ اِنَّ هُوَ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِهَا نَحْوُ اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ وَحُكْمُهُ فِيْ كَوْنِهِ مُفْرَدًا اَوْ جُمْلَةً اَوْ مَعْرِفَةً اَوْ نَكِرَةً كَحُكْمِ الْخَبَرِ الْمُبْتَدَأِ وَلَا يَجُوْزُ تَقْدِيْمُ اَخْبَارِهَا عَلٰى اَسْمَائِهَا اِلَّا اِذَا كَانَ ظَرْفًا نَحْوُ اِنَّ فِي الدَّارِ زَيْدًا لِمَجَالِ التَّوَسُّعِ فِي الظُّرُوْفِ.

**ترجمه** خبردانّ سره دَخپلو اخواتو نه چې اَنّ كَاَنّ لَيت لكنّ لعل دي پس دا حروف د خليږي په مبتدا او خبر باندي . مبتدا نه به نصب ورکوي او هغې ته اسم دانّ ويلى شي او خبرته به رفع ورکوي او ديته به خبردانّ ويلى شي پس خبردانّ به مسند وي پس دَ دخول دانّ نه لکه انّ زيدًا قائمٌ او حکم د خبردانّ په انفراديت مفرد، جمله او معرفه او نکره والي کښې . ښان د حکم د مبتداء د خبر کې ده او جائز نه دي تقديم د خبردانّ په اسما ءدانّ باندې مگر په هغه وخت کې جائز دي چې کله خبردانّ ظرف واقع شي لکه انّ في الدار زيدًا قائم او محاله داده چې په ظروفو کې توسّع ده.

**التشريح** پنځم قسم د مرفوعاتو نه خبر د حروف مشبه بالفعل دي او حروف مشبه بالفعل شپږ دي لکه په شعر کې

اِنَّ بِاَنَّ كَاَنَّ لَيتَ لٰكِنَّ لَعَلَّ    ناصب اسمند و رافع در خبر ضد ما و لا

مدخول د دي حروفو مبتدا ، او خبر دي مبتدا نه به نصب ورکوي او خبرته به رفع ورکوي يعني دا حروف ناصب الاسم او رافع الخبر دي پس خبر سې څکه مقدم کړو چې د ابحث د مرفوعاتو دي او مبتدا منصوبه ده نو هغه به په بحث د منصوباتو کې راځي انشاء الله تعالى . لفظ دي حروفو ته مشبه بالفعل څکه وايې چې دا مشابه دي د فعل متعدي سره لفظًا او معنًا . لفظًا داسې دي يعني څنګه چې فعل ثلاثي او رباعي وي دغه شان دا حروف هم ثلاثي او رباعي دي پس انّ او ليتَ ثلاثي دي او كَاَنّ او لعلّ رباعي دي او لكنّ خماسي ده چې مشابه ده په حرف زائد د فعل سره . مشابهت معنوي يې دا دي چې د دي حروفو معنی بذات خود افعال دي يعني انّ په معنی د تحقّق سره دي او كَاَنّ په معنی تشبيه سره ده او لكن په معنی د استدراك سره ده او ليت په معنی تمنّي سره دي او لعلّ په معنی د ترجي سره دي پس دا ټولي معانی افعال دي نو څکه مسمّی دي په حروف مشبه بالفعل سره البته فرق يې فقط په عمل کې دي پدې

شان سره چي فعل خپل مابعد فاعل نه رفع ورکوي او مفعول ته به نصب ورکوي او دا حروف په عکس ددي دي يعني فاعل ته نصب او مفعول ته به رفع ورکوي ـ لکه مثال انّ زيداً قائمٌ زيد مبتدا دي چي مسمی کړلی شوي ده به اسم دانّ سره او قائمٌ يې خبرده چي مسمّی دي به خبر دانّ سره ـ پس ان سره دخپل اسم نه او سره دخپل خبر نه جمله اسميه خبريه شوه.

**فان قيل** مصنف انّ مقدم که په خپلو اخواتو باندي پکاره ده چي لکن وغيره واخواتها يې ويلي وي ؟

**قلنا** انّ چونکه کثير الاستعمال دي نو گويا دا په حکم داصل کي دي او اصل مقدم وي په فرع باندي

**فان قيل** اخوات جمع داخ ده او دذوي الروح دپاره مستعمليږي حالانکه داحروف دي نه ذوي الروح

**قلنا** دلته تري مراد امثال او اشباه دانّ دي او يا دا او واپه چي دا خو دي حروف ليکن ملفوظ دذوي الروح دپاره دي نو لفظ داخوات مصنفؒ مجازاً ذکر کړی دي.

**ولايجوز تقديم اخبارها الخ** يدي عبارت سره مصنف دفع دسوال مقدر کړيده هغه دا چي خبر دانّ بالکل يشان دخبر دمبتدا دي نو پکار ده چي تقديم دخبر دانّ جائز او گرزي نو شيخ **جواب** ورکوي چي خبر دانّ نه مقدم کيږي به اسماء باندي ځکه چي ددي حروفو عمل ضعيف دي او دفعل عمل قوي دي نو کچري خبر دان مقدم شي په اسم دمبتدا باندي نو مشابهت به راشي دقوي او دضعف او دا باطل دي. البته که خبر دان ظرف واقع شي نو بيا جائز دي تقديم دخبر دانّ په مبتدا دانّ باندي او داخکه چي په ظروفو کي توسع ده يعني وسعت او کشادگي ده په ظروفو کي يعني دا مقدم هم کيدي شي او مؤخر هم او په ظروفو کي وسعت به ده دي بناء سره دي چي هر فعل به د ظرف نه خالي نه وي، مکان او زمان، نو گويا بغير د ظروفو نه هيڅ يو فعل نشي موجود يدي نو ځکه ظروف په حيثيت د محاره مودي نو مقدم هم کيدي شي او مؤخر هم کيدي شي کچري حروف مشبه بالفعل اول ته رفع ورکي او دويم ته نصب نو بيا به مساوات راشي داصل سره ( چي فعل دي ) دغير اصل ( چي حروف مشبه بالفعل ) سره او دا باطل دي نو به عمل کي يې فقط دغه فرق دي چي دا حروف ناصب الاسم دي او رافع الخبر دي.

# اسم كان واخواتها

(۶) فَصْلٌ: اِسْمُ كَانَ وَاَخَوَاتِهَا وَهِيَ صَارَ وَاَصْبَحَ وَاَمْسٰى وَاَضْحٰى وَظَلَّ وَبَاتَ وَرَاحَ وَاٰضَ وَعَادَ وَغَدَا وَمَازَالَ وَمَابَرِحَ وَمَافَتِئَ وَمَاانْفَكَّ وَمَادَامَ وَلَيْسَ فَهٰذِهِ الْاَفْعَالُ تَدْخُلُ اَيْضًا عَلَى الْمُبْتَدَاِ وَالْخَبَرِ فَتَرْفَعُ الْمُبْتَدَاَ وَيُسَمّٰى اِسْمَ كَانَ وَتَنْصِبُ الْخَبَرَ وَيُسَمّٰى خَبَرَ كَانَ فَاِسْمُ كَانَ هُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا نَحْوُ كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا وَيَجُوْزُ فِي الْكُلِّ تَقْدِيْمُ اَخْبَارِهَا عَلٰى اَسْمَائِهَا نَحْوُ كَانَ قَائِمًا زَيْدٌ وَعَلٰى نَفْسِ الْاَفْعَالِ اَيْضًا فِي التِّسْعَةِ الْاُوَلِ نَحْوُ قَائِمًا كَانَ زَيْدٌ وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ فِيْ مَا فِيْ اَوَّلِهَا مَا فَلَا يُقَالُ قَائِمًا مَازَالَ زَيْدٌ وَفِيْ لَيْسَ خِلَافٌ وَبَاقِي الْكَلَامِ فِيْ هٰذِهِ الْاَفْعَالِ يَجِيْئُ فِي الْقِسْمِ الثَّانِيْ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى.

**ترجمه** شپږم قسم د مرفوعاتو نه اسم د افعال ناقصه دي چه هغه صار، صبح، امسى، واضحى، ظل، بات، وراح، اض، عاد، غدا، مازال، مابرح، مافتئ، ما انفك، مادام، ليس، پس دا افعال داخليږي هم دغه شان په مبتدا او خبر باندي پس مبتدا ته به رفع ورکوي او دا مسمى کولې شي په اسم دكان سره او خبر ته به نصب وركوي چې مسمى دي خبر دكان سره پس اسم دكان به مسند اليه وي ورسته دداخليدلو دافعال ناقصه نه لكه كان زيد قائما . او جائز ده په ټولو افعال ناقصه كې تقديم دخبر په مبتدا باندي لكه كان قائماً زيد . او دخبر مقدم كول په نفس افعالو هم جائز دي په وړاندې نهه (۹) كې لكه قائماً كان زيد او جائز نه ده مقدم كول دخبر په هغه افعالو چې په اول كې يې لفظ ما راغلي وي پس دا نه ويلې كيږي قائماً مازال زيدا او په ليس كې اختلاف دي او بحث به ددې افعالو په قسم ثاني (مبحث دفعل) راشي ان شاء الله تعالى

**تشريح**: افعال ناقصه ټول اولس دي لكن دكثرت استعمال د وجې نه په بعضو مواضعو كې دیارلس مذكور دي لكه په دې اشعارو كې ذكر شوي دي فقط دیارلس

نوع عاشر سيزده فعلند كايشان ناقصند — رافع اسمند وناصب در خبر چون ماولا
كَانَ صَارَ اَصْبَحَ وَاَضْحٰى ظَلَّ بَاتَ — مَافَتِئَ مَادَامَ مَا انْفَكَّ لَيْسَ باشد از قفا
مَابَرِحَ مَازَالَ افعالى كذينها مشتقند — هر كجا بيني همين حكم است در جمله روا

**فان قيل** مصنف عليه الرحمت اكتفى فقط په كان باندي او كړه نو ددې د پاره څه وجه كېدې شي؟

**قلنا** نسبب د اسم كان ته څكه شوي دي چې كان كثير الاستعمال دى نو ګويا د اصطلت او كثرت استعمال د وجې نه ذكر شوي دي افعالو ته افعال ناقصه څكه وايي چې دا فقط په اسم نه تماميږي

بلکه خبر هم غواړي نو ګویا نقصان په کښې شته. په بعد دخولها سره تري تمام مسندات خارج شول او دخبر د کان بحث به په منصوباتو کښې راځي انشاء الله

**قواعد** تقدیم دخبر د کان جائز دي په مبتدا باندي په دي شرط چې اعراب د دواړو لفظي وي یا داسي قرائن وغیره موجود وي چې په هغې سره تمیز د مبتدا او خبر کیږي کچرې اعراب د دواړو تقدیري وي نو بیا تقدیم دخبر ناجائز دي ځکه چې پدي صورت کښې التباس لازمیږي یعني د مبتدا او دخبر تمیز نه کیږي لکه ماکان موسی عیسی کان فعل ناقص دي او بعد تري دوه اسمین واقع شوي دي په اعراب تقدیري سره او س دا نه معلومیږي چې مبتدا یعني اسم د کان کوم یو دي او خبر د کان کوم یو دي پس پدي صورت کښې چې کوم اسم مقدم وي هغه به مبتدا وي وعلی النفس الافعال د اعطف دي په علی اسمائها باندي یعني ځنګه چې تقدیم د اخبار جائز دي په خپلو اسماء باندي د غه شان تقدیم د اخبار جائز دي په نفس افعالو باندي یعني اخبار د کن بذات نفس په افعالو هم مقدم کیدي شي لکه قائما کان زید او دا تقدیم فقط په هغه افعالو ناقصه باندي جائز دي چې حرف ما یې په اول کښې نه وي چې هغه یو ولس دي او مصنف لفظ د تسعة ذکر کړي ده نو دا د کاتب نه غلطي ممکنه ده، پس دا یو ولس افعال بدوني ما په هر صورت کښې عمل کولی شي که مقدم وي او که مؤخر وي یا که مرتب وي او که غیر مرتب وي. او په افعال مع ما کښې باندي تقدیم د اخبارو ځکه ناجائز دي چې صرف ما پرې داخل دي او دا نسخه افعال دي پس په مادام کښې ما مصدریه دي او دا قانون دي چې ما مصدریه حرف موصول دي او په موصولاتو باندي خپله صله نه شي مقدم کیدي او په بقیه څلورو افعالو کښې ما نافیه دي او ما نافیه تقاضا د صدارت د کلام کوي ځکه چې ما د بو کار نه نفي راولي او د نفي خبر ور کول د اول نه پکار وي وفي لیس خلاف په لیس کښې اختلاف دي جمهور نحویان وایي چې تقدیم د خبر جائز دي په لیس باندي او کوفیین وایي چې جائز نه دي. پس فتوي د جمهورو په مذهب ده

## اسم ماولا المشبهتين

(۷) فَصْلٌ: اِسْمُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ وَهُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا نَحْوُ مَا زَيْدٌ قَائِمًا وَلَا رَجُلٌ اَفْضَلَ مِنْكَ وَيَخْتَصُّ لَا بِالنَّكِرَةِ وَيَعُمُّ مَا بِالْمَعْرِفَةِ وَالنَّكِرَةِ.

**ترجمه** هغه ما او لا چه مشابه وي د لیس سره د دې اسم به مسند الیه وي روسته د داخلیدلو د دې دواړو نه (ما، لا، لکه (مَا زَيْدٌ قَائِمًا وَلَا رَجُلٌ اَفْضَلَ مِنْكَ) لا خاص ده نکروی سره او

ما په نکرې او معرفې دواړو کښ عام ده ۱

**تشریح** اووم قسم دمرفوعاتو نه اسم دماولادي هغه ماولاچې مشابه دي دلیس سره اودادواړه حرفونه مشابه دي دلیس سره په دوه ځیزونوکې (۱) په نفي کې چې لیس هم دنفي دپاره راځي اوماأولاهم دنفي دپاره راځي (۲) په دخول کې په مبتدا اوخبرباندې یعني مدخول ددواړو یوشان دي پس په دوه وجوهوتوسره ماولامشابه دي دلیس سره. پس عمل بې دلیس شان اوګرزید یعني مبتدانه رفع ورکوي اوخبرته نصب ورکوي پس مبتدانه اسم دماولاوایې اوخبرته خبردماولاوایې نوپه دې فصل بحث داسم دماولادې ځکه چې دابحث دمرفوعاتودې پس په عمل کولودماولاکې اختلاف دې حجازیین وایې چې دادواړه عمل کولې سې بله فرقه وایې چې ماولاعمل نشي کولې. خلاصه سې داده چې دحجازیین مذهب راجح دي.

**ویختص لابالنکرة الخ:** فرق ثابت دې په ماولاکې بعددعمل نه اوبغیردمدخول اوبغیردنفي نه. دافرق په مابین دماأولاکې ثابت دې اودافرق په دریووجوهاتوسره دې

(۱) اول فرق دادی چې حرف لامختص دي په نکرې سورې اوحرف ماعام دې په نکرې اومعرفې دواړوپورې یعني په لاکې خصوص دې اوپه ماکې عموم دې

(۲) دویم فرق دادی چې لاراځي دپاره دنفي مطلق یعني په تولوزمانوکې نفي راولې لکه لارَجُلَ افضل منك هیڅ یوسړی ستانه بهترنشته نودمتکلم مطلب داوې چې ستانه په یوه زمانه کې هم څوك بهترنشته

(۳) دریم فرق دادی چې ما په خبردلاداخلیدې شي لیکن لاپه خبردما نشي داخلیدې پس په دې اعتبارسره مشابهت دمازیات دې په نسبت دلاسره. یعني دمامشابهت دلیس سره تام دی ځکه چې لیس دزمانه حالې نه نفي راولې فقط اوماهم دزمانه حالې نه نفي راولې لکه لیس زیدقائماً . مازیدقائماًیعني زیدفی الحال ولاړنه دې . اولیس په نکره اومعرفه دواړوداخلیږي نودغه شان ماهم په دواړوداخلیږي.

**فان قیل** لاولې دنکرې سره مختص دې؟

**قلنا** داځکه چې لادنکرې سره زیات مناسبت لرې پدې شان سره چې لادنفي مطلقې دپاره راځي یعني په معنی کې بې ابهام وي اوپه نکره کې هم ابهام دي.

**فان قیل** دبعددخولهانه دامعلومیږي چې ماولابه دواړه په یووخت داخلیږي؟

**قلنا** دلته په عبارت کې مضاف محذوف دې اوتقدیرېې دادې بعددخول احدها.

## ( خبرلاالنفي الجنس ) ( مفعول مطلق )

(۸) فَصْلٌ: خَبَرُلَاالنَّفِي الْجِنْسِ وَهُوَالْمُسْنَدُبَعْدَدُخُوْلِهَانَحْوُلَارَجُلَ قَائِمًا.

**توجمه** خبر د هغه لا چه کو جنس حکم نه يا صفت نه نفي ليپاره راغلى وى خکه چه بدي مثال کښ لکه لَارَجُلَ قَائِمٌ کښ حه نفي راغلى ده هغه : جنس رجل نه راغلى ده نه نفس جنس رجل نه راغلى ده

**تشريح** ئم قسم د مرفوعاتو نه لاالنفي الجنس دى خلاصه دا ده چي لا په دوه قسمه دى يو لا بي مذكوره او بله هغه لا حي نفي راولي د صفت : جنس نه لکه لازيد قائمٌ . يعني د زيد وجود بدل ثابت نه دى بلکه جنس بي ثابت دى سن دا قسم لاهم عامل دى چي داخليږي په مبتدا ، او خبر بندي نو پس اسم دلا ، نفي جنس په اکثرو موا ضعو كي منصوب وي نو بحث به بى په منصوباتو كي راشي او خبر بي مرفوع دي نو دلته ذكر شو لكه لازيد اقائمٌ . پس دلا د داخليدو نه پس قائم مسند شو زيد نه او پ دي بنا سره مرفوع شو او لا سره دا ابتدائيت نه عامل شو د پاره د خبر . نو عمل بي په كي هم د رفعي او كرو .

# المقصدالثاني فی المنصوبات

اَلْاَسْمَاءُ الْمَنْصُوْبَةُ اِثْنَا عَشَرَ قِسْمًا: اَلْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ وَبِهٖ وَفِيْهِ وَلَهٗ وَمَعَهٗ وَالْحَالُ وَالتَّمْيِيْزُ وَالْمُسْتَثْنٰى وَ اِسْمُ اِنَّ وَاَخَوَاتِهَا وَخَبَرُ كَانَ وَاَخَوَاتِهَا وَالْمَنْصُوْبُ بِلَا الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَخَبَرُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ.

**ترجمه** مقصد ثاني به مرفاعاتو کښې دی د اسماء منصوبه دولس اقسام دي (۱) المفعول المطلق (۲) به (۳) فیه (۴) وله (۵) معه (۶) حال (۷) تمیز (۸) مستثنی (۹) اسم د انَّ اواخوات دی (۱۰) خبر دکان او اخواتو د دی (۱۱) او هغه اسم چه کوم د لا نفی جنس دوجه نه منصوب وی (۱۲) خبر دما ولا چه کوم مشابه وی د لیس سره.

**تشریح** تعریف دمنصوب دا دی مَنْصُوْبٌ مَا اشْتَمَلَ عَلٰى عَلَمِ الْمَفْعُوْلِيَّةِ

**فان قیل** بحث دمنصوبانو به بحث دمجرورانو ولي مقدم کړی سوی دي

**قلنا** بحث دمنصوب مقدم دي به دربو وجهوتو سره اوله وجه منصوبات مشتمل دي به حرکاتو خفیفه سره او حرکت خفیفه مقصود دي دوېم وجه منصوبات نغریباً دولس دي اومجرورات فقط یو دي دریمه وجه د معمولات دفعل دي اومجرورات معمولات دحروفو دي اوفعل اصل دي به نسبت سره حروفوته. مصنفؒ مخکښې اجمال ذکرکوي اوبیا دهریو تفصیل ذکرکوی. اولو بنځونه مفاعل خمسه وايي.

## د مفعول مطلق تعریف

**فَصْلٌ:** اَلْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ وَهُوَ مَصْدَرٌ بِمَعْنٰى فِعْلٍ مَذْكُوْرٍ قَبْلَهٗ وَيُذْكَرُ لِلتَّاكِيْدِ كَضَرَبْتُ ضَرْبًا.

**ترجمه** مفعول مطلق دا هغه مصدر دی او د هغه فعل په معنی باندي وی چه کوم د نه مخکښې ذکر وی او دا د تاکید لپاره ذکر کېږي لکه ضَرَبْتُ ضَرْبًا

**تشریح** اول قسم دمنصوبانو نه مفعول مطلق دي او داخکه مقدم دي چی به تماو مفاعیلو کي مفعول مطلق اصل دی یعني حقیقتاً مفعول مطلق دی بله وجه دا ده چي دي مقید نه دي په قید د به، معه، له، فیه سره یعنی دامفعول مقید نه دی په قیودانو سره او وجه تسمیه یې هم دغه ده چي دي مقید ندي بلکه مطلق دی

**تعریف دمفعول مطلق دا دي** مفعول مطلق مصدر دی (برابره خبره ده که دامصدر اصالةً

وي او که نیبتاً وي او ییا برابره خبره ده که دامصدر حقیقتاًوي او که حکماًوي ) چې په معنی د فعل وي ( برابره خبره ده که دغه فعل صراحتاًوي او که شبه فعل وي ) چې ذکروي مخکې دمفعول مطلق نه ( برابره خبره ده که دغه ذکر د فعل حقیقتاًوي او که تقدیراً پس خلاصه دا شوه چې مفعول مطلق عبارت ده د مصدر نه او دامصدر چې دده نه مخکې فعل ذکروي او په معنی کې دواړه یو شان وي . او خبري ته خیال کوه په هر فعل اصطلاحي کې وي نسبت الی الفاعل . او اقتران بالزمان یعني فعل اصطلاحي مرکب وي نو مفعول مطلق جزد فعل اصطلاحي او گرزیده او دیته جزد کلیت وایي یعني فعل کل او مرکب دي او مصدر مفعول مطلق : جزدي د کل مثلاً ضربت ضرباً پس ضرباً مفعول مطلق دي چې مصدر دي او قبلهٔ تري فعل دي . په تعریف د مفعول مطلق کې تعمیمات دفعیه داعتراضاتو ده او هغه اعتراضات دادي

**فان قیل** تعریف د مفعول مطلق منقوض دي په خَيْرَمَقدَمٍ باندي دامفعول مطلق دي حالانکه دامصدر نه دي بلکه صیغه داسم تفصیل ده

**قلنا** ددي جواب مونږ په تعمیم سره کړیدي دا اگر چې مصدر (مصدر اصلي ۱۳) نه دي البته لفظ دخیرنائب گرزیدلی دي یعني داپه اصل کې قدوما خیر مقدم وو . قدوما مصدر دي او خیرورله صفت گرزیدلی دي نو مصدر بیاحذف شو او خیر یې نائب او گرزید نو مونږ په تعمیم کې داویلي دي که مصدر اصلاًوي او که نیابتاً .

**فان قیل** تعریف منقوض دي په دي آیت باندي نُقَلِّبُ ظُلَلُهُمْ تَقَلُّباً . و نَبَتَاً مفعول مطلق واقع شوي دي حالانکه دامصدر نه دي ځکه چې د مصدر نه مشتقات جوړیږي او د وَنُبَتاً نه لاتراوسه پوري څه نه دي جوړ سوي

**قلنا** دا اگرچې مصدر حقیقي نه دی لکن مونږ جواب په تعمیم سره کړیدي که حقیقتاًوي او که حکماًوي نو دامصدر حکمي دي یعني احکام پري دمصدر جاري کیږي ځکه دامفعول مطلق واقع دي

**فان قیل** د تعریف نه دامعلومیږي چې مفعول مطلق هغه مصدر دي چې مخکې تري فعل وي او په زیدٌ ضاربٌ ضرباً زید مضروب ضرباً کې ضرباً مفعول مطلق دي او مخکې تري افعال نشته بلکې په دواړو ترکیبونو کې ترې مخکې اسم فاعل او اسم مفعول دي

**قلنا** مراد د فعل نه عام دی که دغه فعل صراحتاًوي او که شبه فعل وي یعني هر مشتق فعل تري مراد دي . نو ضارب او مضروب شبه افعال دي . نو ځکه پري تعریف صادق دي .

**فان قیل** تعریف منقوض دي په دي آیت باندي فَضَرْبَ الرِّقَابِ ضرب مضاف مضاف الیه دي مضاف سره د مضاف الیه نه دامفعول مطلق دی حالانکه مخکې تري فعل نشته

**قلنا** فعل مذکور قبله عام دي که حقيقت وي او که تقديراوي پس تقدير دي دادي فَضَرْبُ ضربا الرقاب نو دا په تقدير د فعل مذکور قبله سره مفعول مطلق دی

وَيُذْكَرُ لِلتَّاكِيْدِ كَضَرَبْتُ ضَرْبًا أَوْلِبَيَانِ النَّوْعِ نَحْوُجَلَسْتُ جِلْسَةَ الْقَارِيْ أَوْلِبَيَانِ الْعَدَدِ كَجَلَسْتُ جَلْسَةً أَوْجَلْسَتَيْنِ أَوْجَلَسَاتٍ وَقَدْيَكُوْنُ مِنْ غَيْرِلَفْظِ الْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ نَحْوُقَعَدْتُ جُلُوْسًا وَاَنْبَتَ نَبَاتًا وَقَدْ يُحْذَفُ فِعْلُهُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ جَوَازًا كَقَوْلِكَ لِلْقَادِمِ خَيْرَمَقْدَمٍ أَيْ قَدِمْتَ قُدُوْمًا خَيْرَمَقْدَمٍ وَوُجُوْبًا سِمَاعًا نَحْوُسَقْيًا وَشُكْرًا وَحَمْدًا وَرَعْيًا أَيْ سَقَاكَ اللّٰهُ سَقْيًا وَشَكَرْتُكَ شُكْرًا وَحَمِدْتُكَ حَمْدًا وَرَعَاكَ اللّٰهُ رَعْيًا.

**ترجمه** او مفعول مطلق د تاکید لپاره ذکر کولی شی لکه ضَرَبْتُ ضَرْبًا يا نوع بيانولو لپاره راځي لکه جَلَسْتُ جِلْسَةَ الْقَارِيْ يا عدد بيانولو لپاره راځي لکه جَلَسْتُ جَلْسَةً أَوْجَلْسَتَيْنِ أَوْيا جَلَسَاتٍ او کله به مفعول مطلق د فعل مذکور لفظ نه علاوه بل لفظ سره راځي لکه قَعَدْتُ جُلُوْسًا وَاَنْبَتَ نَبَاتًا، او کله به فعل د قرينې موجود والې د وجه نه به حذف کېږي جوازً لکه ستا دا قول راتلونکي کس ته قَدِمْتَ قُدُوْمًا خَيْرَمَقْدَمٍ دا د وجوباً مثال وو. د سماعاً مثال لکه سَقْيًا وَشُكْرًا وَحَمْدًا وَرَعْيًا أَيْ سَقَاكَ اللّٰهُ سَقْيًا وَشَكَرْتُكَ شُكْرًا وَحَمِدْتُكَ حَمْدًا وَرَعَاكَ اللّٰهُ رَعْيًا

**تشريح** مصنفؒ د تعريف د مفعول مطلق نه بعد اقسام د مفعول مطلق بيانوي چې مشتمل دي په اقسام ثلاثه باندې

(۱) . هغه مفعول مطلق چې د تاکید د معنى د پاره ذکر کېږي او دا هغه مفعول مطلق دي چې د فعل مذکور قبله سره يې معنى يو شان وي او څه زيادت به نه کې نه وي لکه ضربت ضرباً معنى د دواړو يو شان ده (۲). دويم قسم هغه مفعول مطلق دي چې د بيان د يو نوعي يا د بيان د يو قسم يا د بيان د يو کيفيت د پاره راځي او دا هغه مفعول مطلق دي چې معنى او مفهوم د ده زيات وي په نسبت سره فعل مذکور قبله نه لکه مثال جلست جلسة القاري . جلست فعل فاعل او جلسته القاري ورله مفعول مطلق دي دا په داسې طريقې سره دي چې بدې کې بيان د يو نوعي دي يعني د يو قسم کيناستل نو معنى د مفعول مطلق زياته ده په نسبت سره جلست نه د قاري نه مراد متعلم دي په نزد د معلم باندې څکه چې طالب د استاذ په شان کيناستل کوي نو دا يو قسم دي

(۳) دريم قسم هغه مفعول مطلق دي چې د بيان د عدد د معنى د پاره راځي يعني د يو کار کرته بيانيې چې يا به يو کرته وي يا به دوه کرته وي يا به ډېر کرته وي لکه امثله جلست

جلستاماکیناستل اوکړو په پېره، یعني یو کرت، جلست جلسـیـن په دوه کرته او جلست جلسات په ډېر کرته نو ددي کي اعداد ذکر او ذکر دي.

**وقد یکون من غیر لفظ الفعل:** ددي مطلب دا دی چې مخکې داخبره ذکر شوې ده چې د مفعول مطلق وفعل مذکور قبله معنی به یو دوي او لفظ د دواړو به هم یو شان وي نو دا اول راجع او اصل دي لیکن کله کله مفعول مطلق د فعل مذکور قبله نه معانروي یعني بدل وي نو دغه قسمه نه مفعول مطلق من غیر لفظه وایي مغائرت د مفعول مطلق سره دوه قسمه دي کله کله (دا قسم د مفعول مطلق نه بعد مصنف د مفعول مطلق حکمه بیاني) مغـایرت فـي المـاده وي یعني د حروف اصلیه په لحاظ سره به مغایروي لکه قعدت جلوسـاً د امغـایرت فـي المـاده دي او کلـه کلـه مغـایرت فـي الباب وي یعني بابونه د دواړو جدا جدا وي لکه أَنْبَتَ نباتاً ـ حروف اصلي د دواړو یو شان دي لیکن بابونه یي جدا جدا دي نسبت باب افعل نه د فعل ماضی صیغه ده او د باب د مزید و نه دی او نبات د باب نَصَرَ يَنْصُرُ نه دي چې مجرد دی

**وقد یحذف فعله لقیام قرینة الخ:** په بعضو مواضعو کي د مفعول مطلق نه فعل قبله حذف کـړی (**نوټ**) د فعل مذکور قبله نوم به عـامل ناصب د مفعول مطلق شي، نو پس حذف د عامل ناصبه به دوه قسمه دي یو جوازي ده او بل وجوبي ده او حذف وجوبي بیا سره دوه قسمه دي یو حذف وجوبي سماعي او بل حذف وجوبي قیاسي دي. د سماعي نه مراد دا دي چې دغه حذف عامل ناصب د عرب نه او رېدلی شوی وي او د قیاسي نه مراد چې قـعدي مطابق حذف شوی وي. په کتاب کي فقط دوه قسمه حذف ذکر دي د باره د رعایت د مبتد ئینو. حذف جوازي په هغه صورت کي دي چې قرینه موجوده شي په حذف د فاعل باندي لکه مثال کقولك لکه حي ته او وي هغه چاته چې د سفر نه وا پس راشي کورته چې خیر مقدم بخیر راغلی پس دا فقط مفعول مطلق دی او عامل ناصب تري حذف شوي دي جوازاً نه وجود د قرائینو او علامانو سره جي هغه قرائن رانلل دقادم دی یعني دا به اصل کي قدمت قدوماً خیر مقدم وو. قدوماً موصوف خیر مقدم صفت د حذف وجوبي سماعي مثال لکه مذکور في الکتب دی مثلاً وجوباً وحذف سماعاً ـ ع ال الله مضاف مضاف الیه د دې چې عامل ناصب گرزیدلی دي او مفعول مطلق نه بې نصب ورکړي دي دا سماعاً حذف دي وجوباً د حذف وجوبي قیاسي د پاره

# مفعول به

**فَصْلٌ: اَلْمَفْعُوْلُ بِهٖ هُوَ اسْمُ مَا وَقَعَ عَلَيْهِ فِعْلُ الْفَاعِلِ كَضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا.**

**ترجمه** مفعول به دا هغه اسم ده چه جا باندي د فاعل فعل واقع شي لکه ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا

**تشریح** دویم قسم د منصوب تونه مفعول به ده او تعریف د مفعول به دا دی .دا نوم د هغه شي دي چي واقع شوي وي په دغه شي باندي فعل د فاعل .دوقوع نه مراد تعلق د فعل دي يعني چي تعلق د فعل د فاعل د دغه شي سره وي برابره خبره ده که دغه تعلق د فعل بطريق الاثبات وي او که بطريق النفي وي لکه ضرب زيد عمراً ضرب فعل مسبب دی زید یی فاعل دی او عمروا بی مفعول دے چي منصوب دے او ضَرَبَ ورته عمل نصب دی دا مثال دا ثبات دی او دالنفي دپاره سري مخکي مان فيه راوړه .وقع په معنی د تعلق سره دی يعني ددې سره مونږ د دغه د سوال او کړو او هغه سوال دا دی

**فان قيل** مفعول به نوم د هغه شي دی چي په هغه باندي فعل د فاعل واقع شوي وي پس دا تعريف منقوض دي په اِيَّاكَ نَعْبُدُ .نعبد فعل فاعل او ايک ورله مفعول به ده نو پس په الله پاک باندي عبادت نشي واقع کيدې يا شَكَرْتُ اللّٰهَ نو سکر هم په الله پاك نسي واقع كيدې

**قلنا** چي ذكر دوقع دی او مراد ترينه تعلق د فعل دي نو په الله پوري د عبادت او شکر تعلق راغلی دي.

**وَقَدْ يَتَقَدَّمُ عَلَى الْفَاعِلِ كَضَرَبَ عَمْرًا زَيْدٌ**

**ترجمه** او کله په مفعول به په فعل باندي مقدم وي لکه ضَرَبَ عَمْرًا زَيْدٌ

**تشريح** مصنف چي كله د تعريف نه فارغ شه نو شروع مي په احكامو د مفعول به اوكړه.

**قاعده** .کله کله تقديم د مفعول به په فاعل باندي جائزوی ددې شرط سره چي قرينه لفظيه او معنويه موجود وی په تقديم د مفعول به په فاعل ددې لکه ضرب عمراً زيد نه وي نو بيا قاعده دا ده چي کوم مقدم وي هغه به فاعل وی او مؤخر به مفعول به وي.

## مختلف مقامات دحذف دعامل ناصبه دمفعول به نه

**وَقَدْ يُحْذَفُ فِعْلُهُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ جَوَازًا نَحْوُ زَيْدًا فِيْ جَوَابِ مَنْ قَالَ مَنْ اَضْرِبُ وَوُجُوْبًا فِيْ اَرْبَعَةِ مَوَاضِعَ اَلْاَوَّلُ سَمَاعِيٌّ نَحْوُ امْرَأً وَّنَفْسَهُ وَانْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ وَاَهْلًا وَّسَهْلًا.**

**ترجمه** او کله په فعل حذف کيږي د قرينې موجود والي د وجه په جواز لکه زَيْدًا هغه

سړی په جواب کښې او وائي چه پوښتنه وکړی چه مَنْ أَضْرِبُ (څوك او وهم) او وجوباً به حذف کیږی څلور ځایونو باندي پدې کښې اول سماعی دي لکه اِمْرَأً وَنَفْسَهٗ وَانْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ وَاَهْلًا وَسَهْلًا

**تشریح** او کله کله فعل، عامل ناصبه، حذف کولی شي د مفعول به نه په هغه وخت کې چې کله قرائن موجود وي او دا حذف په دوه قسمه دي (۱) یو حذف جوازي او بل (۲) حذف وجوبي دی حذف وجوبي بیا په دوه قسمه دي یو سماعي او بل قیاسي دي پس حذف جوازي په هغه صورت کې چې کله قرینه حالیه (حالیه د بته و ایې چې د حالت او کیفیت نه دا معلومیږی چې دا شی مفعول به ده (۲، ۱۲، مقالیه د بته و ایې چې د دوی نه معلومیږی یا د الفاظو نه معلومیږی (۱۲، یا مقالیه موجوده شي لکه مثال د قریني حالیي د پاره دادي چې یو سړی د حج د پاره احرام اختیار کړی او روانیږي پس څوك ورته دا او ایې چې مَكَّةَ اي تُرِيْدُ مَكَّةَ يَا تَقْصُدُ مَكَّةَ پس عامل ناصب تري حذف شوي دي جوازاً په وجود قریني حالي چې نلل دي مکې ته د قریني مقالیي د پاره مثال لکه څوك دا الفاظ تکلم کړي چې مَنْ أَضْرِبُ یعني زه څوك او وهم او ته ورته په جواب کې فقط زیداً ذکر کړی یعني اِضْرِبْ زَيْدًا پس پدې کې قرینه مقالیه ده چې قول د مخاطب دي چې وهل به چا باندي واقع کړي نو فقط زیداً منصوب مفعول به ذکر کړی شي د حذف وجوبي د پاره څلور مواضع دي مذکور في الکتاب یو به کې حذف وجوبي سماعی دي او دري مواضع په کې د قیاسي د پاره دي د سماعي د پاره مثال لکه اِمْرَأً وَنَفْسَهٗ او په معنی د مع سره دي او اصل یې دادي اُتْرُكْ اِمْرَأً وَنَفْسَهٗ پس عامل ناصب تري حذف ده وجوباً په طریقې د سماع سره د عربو نه بل مثال لکه وَانْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ تقدیر یې دادي وَانْتَهُوْا عَنِ التَّثْلِيْثِ وَاقْصُدُوْا خَيْرًا لَّكُمْ دا هم حذف د سماع سره تعلق لري او د غه شان اَهْلًا وَسَهْلًا اي اَتَيْتَ اَهْلًا وَوَطِئْتَ سَهْلًا پس د دواړو نه عاملین ناصبین حذف شوي دي په حذف وجوبي قیاسي سره.

وَالْبَوَاقِيْ قِيَاسِيَّةٌ اَلثَّانِيْ اَلتَّحْذِيْرُ وَهُوَ مَعْمُوْلٌ بِتَقْدِيْرِ اِتَّقِ تَحْذِيْرًا مِمَّا بَعْدَهٗ نَحْوُ اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ اَصْلُهٗ اِتَّقِكَ وَالْاَسَدَ اَوْ ذُكِرَ الْمُحَذَّرُ مِنْهُ مُكَرَّرًا نَحْوُ الطَّرِيْقَ الطَّرِيْقَ

**ترجمه** او باقي قیاسي دی دویم تحذیر ده او دا معمول دي چه اِتَّقِ تَحْذِيْرًا سره به داره ولي کیږی به داره ول د سړي د خپل مابعد نه لکه اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ چه په اصل کښې اِتَّقِكَ وَالْاَسَدَ (ځان بچ کړه د زمری نه او زمری د ځان نه بچ کړه)، یا محذر منه تکراراً ذکر شی لکه اَلطَّرِيْقَ اَلطَّرِيْقَ،

**تشریح** دویم هغه ځای دي چې په هغي کې د مفعول به نه عامل ناصبه حذف کیږي په حذف وجوبي قیاسي سره نو هغه موضع التحذیر دي د تحذیر دوه معنی دي یوه معنی لغوي او بله

معنی اصطلاحي ده پس تحذیر مصدر د باب تفعیل دي حَذَّرَ یُحَذِّرُ تَحْذِیْراً په معنی داریدل
په اصطلاح (عام اصطلاح کښ دا تعریف البته علم النحو کښ دا تعریف اصطلاحي ذکرده) کې تخویف الشیٔ عن الشیٔ او تبعیدهٗ عَنْهُ مثلاً زید دبوال نه ولاړدي او ته ورته اوواي چې لري شه دیوال راغورزیږي تخویف او تبعید دیته وایي په اصطلاح د نحو کې داهغه معمول دی دا تَقِ په مثل داتَقِ مقدر دپاره دیرولو د مخاطب د مابعد لفظ نه پس دا معمول په اصل کې مفعول به وي اواتق یا مثل دا تق ورله عامل ناصبه وي لیکن دا مقام دیری مقام وي نو پدي مقام کې لفظ مختصر ذکر کول پکار وي نو ځکه تري عامل ناصبه حذف شي دپاره د اختصار د کلام. اوفقط محذرمنه او مفعول به باقي پاتي شي او نور ترکیبات به تري هم حذف کیږي دپاره د اختصار لیکن زمونږ بحث فقط په عامل ناصبه کې شروع دي نو ځکه اتق لفظ ته مونږ ترجیح ورکړه. که څوک داپوښتنه اوکړي چې داحذف څنګه قیاسي دي نو مونږ به ورته دا اُوایو چې دایو قاعده شوه چې کوم مقام د تحذیر او د تخویف وي هلته به حذف واجب وي پس دایو قسم قیاس شو دپاره د حذف وجوبي. مثال. اِیَّاكَ وَالْاَسَدَ ایاك منصوب تقدیراً مفعول به ده. والاسد محذرمنه ده پس ددي عامل ناصب چې اتق دي حذف شویدي دپاره د اختصار دا په اصل کې اِتَّقِ نَفْسَكَ عَنِ الْاَسَدِ اتق (فعل فاعل) عامل ناصب دي او نفسكَ مفعول به ده (نفسك مضاف مضاف الیه دي او داقانون دي چې اعراب په مضاف جاري کیږي او مضاف نَفْسَ دي چې منصوب دي) اسد محذرمنه دي اوولاسد عطف دي په اوله جمله باندي په اوله جمله کې من الاسد جار مجرور دي او په دویمه جمله کې من نفسك هم جار مجرور دي نو پس من نفسك حذف شو دپاره د اختصار او پس یو اسد هم حذف شو نو اتق نفسكَ والاسدَ پاتي شو او اتق نفسك په اصل کې اِتَّقِكَ وو او س خیال کوه په اتقك کې ضمیر دفاعل هم مخاطب ته راجع دي او ضمیر دانت هم مخاطب ته راجع دي او داقانون دي چې کله دوه ضمیرین متصل راجع شي نو پدي کې انفصال پکار وي پس لفظ د نفس یې په مابین کې دیاره د انفصال راغی نو اتق نفسكَ تري جوړ شو ددي نه بعد لفظ داتق حذف شو دپاره د اختصار نو فقط نفسك والاسد پاتي شو او نفس ته حاجت نشته نو فقط ك والاسد پاتي شو او که ضمیر متصل وو په نفس پوري او نفس تري حذف شو نو اوس دك په ځای ضمیر منفصل پکار دي چې ایاك دپاره د واحد مذکر مخاطب استعمالیږي نو ایاك والاسد پاتي شو.

او ذکر المحذر منه مکرراً نحو الطریق الطریق: او په بعض مقاماتو کې محذرمنه مکرر هم ذکرکولی شي لکه مثال په طوریو طالب دریل ګاډي په پټري ناست وي او ته ورته داالفاظ استعمال کې

حی الفطار الفطار يعنى ريل دى ريل دي پس ددي عامل ناصب حذف سوي دي په حذف وجوبي قياسي سره حی هغه لفظ دائ نه منل دائ دي يعني دابه اصل كي يَعْتُلْتُيْرِ جَاءَ القطار ـ لـكن دامقام دتحذير دي نوځکه القطار القطار كفي دي او دغه سان الطريق الطريق ددي نه هم عامل ناصبه حذف شوى دى

## علی شريطة التفسير

. اَلثَّالِثُ مَا اُضْمِرَ عَامِلُه عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ وَهُوَ كُلُّ اِسْمٍ بَعْدَه فِعْلٌ اَوْشِبْهُه يَشْتَغِلُ ذٰلِكَ الْفِعْلُ عَنْ ذٰلِكَ الْاِسْمِ بِضَمِيْرِهٖ اَوْمُتَعَلِّقِه بِحَيْثُ لَوْسُلِّطَ عَلَيْهِ هُوَ اَوْمُنَاسِبُه لَنَصَبَه نَحْوُ زَيْدًا ضَرَبْتُه فَاِنَّ زَيْدًا مَنْصُوْبٌ بِفِعْلٍ مَحْذُوْفٍ مُضْمَرٍ وَهُوَ ضَرَبْتُ يُفَسِّرُهُ الْفِعْلُ الْمَذْكُوْرُ بَعْدَه وَهُوَ ضَرَبْتُه وَلِهٰذَا الْبَابِ فُرُوْعٌ كَثِيْرَةٌ.

**ترجمه** دريم قسم (مَا اُضْمِرَ عَامِلُه) دي په دي شرط سره چه د دي په ني تفسير کري وی (مَا اُضْمِرَ عَامِلُه) د هغه اسم دي چه دي نه بعد به فعل يا شبه فعل راغلي وی او دی فعل به د دی اسم نه اعراض کري وی ضمير يا متعلق کښ به مشغول وی پداسی طريقی سره چه دا فعل يا مناسب بدي مسلط کري شی نوی ديته نصب ورکری لکه زَيْدًا ضَرَبْتُه په تحقيق سره زيد منصوب دی داسی فعل د وجه نه چه کوم محذوف او مقدر دي چه هغه ضَرَبْتُ دي د دی فعل تفسير کوی هغه فعل چه کوم مذکور دی دوی نه بعد . او هغه ضَرَبْتُه دي او دي باب لپاره ډير مسائل دی

**تشريح** دريم قسم موضع دهغه مواضعونه چې حذف كيږي په هغي كي عامل ناصب دمفعول به نه په حذف وجوبی قياسی سره هغه داده ما اضمر عامله علی شريطة التفسير ما به معنی دمفعول به سره دي يعنی هغه څائ دمفعول به چې مقدر کړی شوي وی عامل ناصبه ددغه مفعول به نه په شرط دتفسير ددغه عامل ناصبه سره په مابعد کي پس دا يو وجه او علت دي دپاره دحذف دعامل ناصب په ما اضمر عامله کي عامل ناصبه ځکه مقدروي چي مابعد کښی يی تفسير موجود دي يعني عامل ناصبه محذوفه مُفسّروي او مابعد ورلـه مفسروي پس كچرته مقدرنه كري شي عامل ناصبه نو بيابه په مابين دمفسّر او دمفسَر کي اجتماع لازمه شي او دا اشنيعه ده په كلام عرب كی يعني بدګڼلی شي په عربو کي پس دا اسی مقام تعريف دادي چي مذكور في الكتاب دی يعني داهر هغه نوم دمفعول به دي چي دده نه بعد فعل وي يا شبه فعل وي او دغه فعل يا شبه فعل به فارغ وي دعمل دمفعول به نه او مشغول به وي په عمل دمتعلق دمفعول به بانددي يا په ضمير دمابعد بانددي يدی شان سره

کچري دغه فعل یاشبه فعل مُسلط : داخل ، کړی شي په دغه مفعول باندي نونصب به ورته ورکي ځکه چي فعل مفعول به نه نصب ورکوي دغه فعل یا شبه فعل به د عمل دمفعول به نه فارغ ځکه وي چي په فعل کي به ضمیروي یابه متعلق دمفعول وي اوددوئ تعلق به دعامل ناصبه مقدر سره وي بس داهغه مقام شوچي عامل ناصبه به کي حذف کیږي په حذف وجوبي قیاسي سره ځکه چي ما بعد تري مفسّرواقع شوي دي فیرذات دتعریف **وهوکل اسم**. دااسم نه مرادمفعول به دی البته تعبیریي په اسم سره ځکه کړی دی چي شامل اومتناول شي مفعول به اومفعول فیه دواړو نه متعلقه ددي نه مراددَ مفعول متعلق دي لکه مثلاً دآقادپاره متعلق غلام دي یادوالد دپاره متعلق ولد دي وغیره. **هواومناسبه**. دغه فعل یامناسب ددغه فعل برابره خبره ده که مناسب بالترادف وي اوکه مناسب الزوم وي پس مناسبت ترادف دیته وایي چي ددغه فعل او دمناسب فعل معنی یوه وي . اومناسب بالزوم دیته وایي چي ددغه فعل سره مناسب فعل لازم وي لکه مثال په طوردضرب سره اهانت اوتوهین مناسب بالزوم دي لنصبه . نصب به ورکوي مفعول به ته یعني داخبره به واضحه شي چي آیاداعامل ناصب محذوف دي اوکه نه ددي مقام دپاره مصنف فقط یو مثال ذکرکړی دی حي مختص دي په فعل پوري لکه زیداضربته دي یعني هغه مفعول به ده حي عامل ناصب تري حذف شي وجوباً قیاساً اودلیل یري دادي چي ضربت باندي مسلط شي نونصب به ورکوي مفعول به ته چي زیداً دي پس ضربت اوس دعمل دزیدنه فارغ دي اوکه مسلط شي په زیدباندي بغیردضمیرنه اوبغیردمتعلق دمفعول به نه نونصب به ورکوي لکه ضربت زیداً

پس معلومه شوه چي دابه اصل کي ضربت زیداضربته ووپس عامل ناصبه تري حذف شوځکه چي اجتماع راغله دمفسّراودمفسَّراوداشنیعه ده په کلام عرب کي نوزیداً ضربته پاتي شو ددي مقام دپاره دبرفروع دي لیکن طول دي په هغې کي نوبه طریقې دطوالت سره مانړن کړه بس نورمثالونه دادي مثال اول زیداً ضربت غلامه. زید مفعول به ده اوعامل تري حذف شوي دي چي اهنتُ فعل لازم دي دضربتُ سره ضربت فعل دي اوغلامه متعلق دمفعول به دي دامثال دمفعول به دَ متعلق ده اودفعل لازم دپاره هم دی چي اهنت دي معني دابه اصل کي اهنت زیداً ضربت غلامه ووپس عامل ناصبه تري حذف شودوجي دتفسیردمابعدنه دویم مثال چي فعل مناسب بالترادف یري مسلط کړی شي لکه زیداً مررت به مررت فعل دی چي مشغول دي په به کي پس مرورتیرېدلوته وایي اوددي سره مناسب بالترادف لفظ دجاوزت دي اصل عبارت دادي

جاوزت زيداً امررت به پس فعل مناسب بالترادف تري حذف شو دوچې دتفسير دمابعدنه چې مرورٌ دي پس دامثالونه دفعل دپاره ذکرشوچې مابعد دااسم (مفعول به) نه واقع دي (يعني ضربت ومررت) دامثال شبه فعل دپاره دي زيداً اناضاربه - يدي کې ضاربه شبه فعل دي چې فارغ دعمل دااسم نه اومشغول دي په ضمير باندي پس دغه فرد شبه فعل پري مسلط کړی شي نوبصب به ورکوي لکه اناضاربه زيداً اناضاربه پس شبه فعل تري حذف شو على شرط التفسير دامثال دي دپاره چې دغه شبه فعل عمل په متعلق (مفعول به کوي لکه زيداً انت غلامه ضارب پس ضارب عمل په غلامه کې کړيدي چې دغه غلامه متعلق دااسم دي يعني دزيد متعلق دي پس چې خودضارب (شبه فعل) پري مسلط کړی شي نونصب به ورکوي زيداً ته چې اصل يې دادي ضارب زيداً انت غلامه ضارب پس شبه فعل حذف على شرط التفسير.

## بحث دمنادیٰ

اَلرَّابِعُ اَلْمُنَادٰى وَهُوَاسْمٌ مَدْعُوٌّ بِحَرْفِ النِّدَاءِ لَفْظًا نَحْوُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَىْ اَدْعُوْ عَبْدَ اللّٰهِ وَحَرْفُ النِّدَاءِ قَائِمٌ مَقَامَ اَدْعُوْ حُرُوْفُ النِّدَاءِ خَمْسٌ يَا وَاَيَا وَهَيَا وَاَىْ وَالْهَمْزَةُ الْمَفْتُوْحَةُ:

**ترجمه**: څلورم قسم منادی دی او منادی هغه اسم دی چې حرف نداء سره راوبللی شي لفظاً لکه یا عبدالله یعنی اَدْعُوْ عَبْدَ اللّٰهِ او حروف نداء دأَدْعُوْ قائم مقام دي حروف ندا پنځه دي يَا وَاَيَا وَهَيَا وَاَىْ وَالْهَمْزَةُ الْمَفْتُوْحَةُ

**تشريح**: الرابع صفت دي دموصوف مقدر دپاره - تقدير دعبارت دادي الموضع الرابع پس څلورمه موضع دحذف دعامل نصبه منادی دی - دامنادي په حقيقت مفعول به دی او تعريف دمنادیٰ مصنف کړيدي چې يواسم په حروف نداء سره مدعو (رابللونکي) کړی شي اوحروف نداء پنځه دي چې ذکر دي في العبارت پس ددغو حروفونه چې هريو به کوم اسم داخل شي هغه اسم ته منادیٰ وايي اوپه بعضو کتابونو کې دمنادیٰ تعريف داسي دي هو مطلوب اقباله يعني ددي مطلب هم دغه دي چې يواسم مدعو کړی شي پس ددغه مدعو شوي اسم نه به عامل ناصبه حذف کيږي په حذف وجوبي قياسي سره په لفظاً کې دوه احتماله دي يوداچې تميزواقع شي دحرف نداء دپاره نومعنی به يې داشي چې حرف نداء لفظاً وي اوکه تقديراً دلفظاً نداء - دپاره مثال لکه ياعبدالله اودحرف نداتقديري دپاره مثال لکه يوسف اعرض عن هذا چې به اصل کې يايوسف الخ وو پس حرف نداحذف شوه براى علت - بل احتمال دادي چې لفظاً متعلق دمدعوسره شي نومعنی به يې داشي چې برابره خبره ده که منادیٰ لفظاً وي اوکه تقديراً وي دلفظ دپاره مثال لکه يازيد دتقديراً دپاره

مثال لکه اَلَایَسْجُدُوا ۔ په اصل کې یاقوم اسجدوا و خلاصه داشوه چې د عبدالله په اصل دعو عبدالله ووبیا ادعو (فعل فاعل) حذف شو دپاره داختصار داخکه چې دامقام دمخاطب دمتوجه کولو دپاره دي نو خکه دوئ تعبیر په حرف نداسره او که او عبدالله مفعول به دي چې عامل ناصب ترې حذف شوي وجوباً قیاساً ۔ منادي دجنس په لحاظ سره په دوه قسمه ده یو منادي حقیقي ده بله منادي حکمي ده. تعریفونه یې دادي

**منادي حقیقتاً:** منادي حقیقي دیته وایي چې صلاحیت دنداء به کي موجود وي یعني مثلاً ذوي العقول وغیره یابعضې حیوانات هم په کې شامل دي چې مدعو کیږي.

**منادي حکماً:** دیته وایي چې صلاحیت دنداء به کي موجود نوي لکه په قرآن پاک کي اسماء وغیره راغلي دي. پس دا قسمه منادي حکمي ده خکه چې حکم بري دندا الګیدلی دي.

**وَقَدْ يُحْذَفُ حَرْفُ النِّدَاءِ لَفْظًا نَحْوُ يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا.**

**ترجمه** او کله به حرف نداء حزف کیږي لکه یوسف اعرض عن هذا

**تشریح** حذف حرف نداء په دوه قسمه ده یو حذف بغیر العوض ده او بل حذف مع العوض ده. داول دپاره مثال لکه یوسف اعرض عن هذا ۔ حرف ندا ترې حذف شوي دي او هیڅ عوض یې نشته ۔ د دویم دپاره مثال لکه اَللّٰهُمَّ دا په اصل کې یاالله وو پس سري حذف شوي ده او په عوض کې میم مشدد په آخر کې راغلی دي نو اَللّٰهُمَّ ترې جوړ شو دیته حذف مع العوض وایي۔

## اقسام دمنادیٰ

**وَاعْلَمْ أَنَّ الْمُنَادٰى عَلٰى أَقْسَامٍ فَإِنْ كَانَ مُفْرَدًا مَعْرِفَةً يُبْنٰى عَلٰى عَلَامَةِ الرَّفْعِ كَالضَّمَّةِ وَنَحْوِهَا نَحْوُ يَا زَيْدُ وَيَا رَجُلُ وَيَا زَيْدَانِ وَيَا زَيْدُونَ وَيُخْفَضُ بِلَامِ الْإِسْتِغَاثَةِ نَحْوُ يَا لَزَيْدٍ وَيُفْتَحُ بِإِلْحَاقِ أَلِفِهَا نَحْوُ يَا زَيْدَاهُ وَيُنْصَبُ إِنْ كَانَ مُضَافًا نَحْوُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ أَوْ مُشَابِهًا لِلْمُضَافِ نَحْوُ يَا طَالِعًا جَبَلًا أَوْ نَكِرَةً غَيْرَ مُعَيَّنَةٍ كَقَوْلِ الْأَعْمٰى يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ وَإِنْ كَانَ مُعَرَّفًا بِاللَّامِ قِيْلَ يَا أَيُّهَا الرَّجُلُ وَيَا أَيَّتُهَا الْمَرْأَةُ.**

**ترجمه** پوهی شه چه منادي په خو قسمه ده کچیرته منادي مفرد معرفه وي نو مبني کولي به شي په هغه حرکت او حرف باندي چه هغه علامه د رفع وي په وخت د اعراب کښ لکه ضمه او په مثل د دې ضمې چه هغه الف واو وي ب دي مثال د ضمې لکه یَازَیْدُ وَیَارَجُلُ مثال د الف لکه یَا

زَیْدَانِ مثال د واو لکه وَیَازَیْدُوْنَ او مبنی کولی به شي په لام د استغاثي سره لکه یَالَزَیْدٍ دا منادی به مبنی کولی شي په وخت د الحاق د الف استغاثي سره لکه یَازَیْدَاهُ او دا منادی به منصوب کولی شي چکله مضاف وی لکه عَبْدَاللهِ، او یا مشابه وی د مضاف سره لکه یَاطَالِعًاجَبَلًا او یا نکره غیر معینه وی لکه قول داعمی چه هغه اووائی یَارَجُلًاخُذْبِیَدِیْ چکله منادی معرف باللام وی نو بیا به د حرف نداء او منادی به مینځ کښ فصل راوړی لکه یَاأَیُّهَاالرَّجُلُ وَیَاأَیَّتُهَاالْمَرْأَةُ

**تشریح** ددې علم خلاصه داده چې منادی په حو قسمه ده یو قسم داچې کله کله منادیٰ مفرد معرفه وي برابره خبره ده که قبل النداء معرفه وي اوکه بعدالنداء معرفه وي اونه به وي د مضاف یامشابه د مضاف سره بلکه وي به تثنیه او جمع او حکم یې دادې چې دا قسم منادیٰ به مبني وي په علامې درفعي سره یا به مثل د رفعي سره مثلاً د رفعي مثال لکه یازید یارجل د مثل د رفعي مثل لکه یازیدون ویازیدان وغیره. دویم قسم منادی مستغاثه ده مستغاثي معنی داده چې حاجت د طلب د مدد د پاره اواز او کړې شي اوداپه دوه قسمه ده یو د منادیٰ لام الاستغاثه ده اوبله الف الاستغاثه ده فرق به دواړو کې دادې چې لام د استغاثې په اول کې راځي لکه یالزید اوالف به د استغاثې په آخرکې وي وبعدبه نږي. ،ووي حکم یې دادې چې لام الاستغاثه به مبنی په کسرې سره وي خکه چې لام بري داخل دي اودغه لام به حقیقت لام جره دي او الف الاستغاثه به مبنی وي په فتحې سره لکه یازیداه اوداخکه به فتحې سره دې چې الف په کې واقع دی د استغاثي او الف تقاضا د فتحي کوي نو خکه به فتحې سره دی یاداروابه حې دابتداء الصوت دپاره به فتحې سره دي.

**فان قیل** منادیٰ مفرد معرفه مبنی به ضمی سره ولې ده ؟

**قلنا** داخکه مبني ده چې دا مسبه ده دمبني الاصل سره بدستن چې دامنادیٰ واقع ده به مقام د کاف خطاب ضمیر باندې لکه مثلاً ادعوک ی ماز سه سس داکاف مشابه دی د کاف صرفي سره چې مبني الاصل دي

**فان قیل** اصل په بناکې سکون دي یکاره حې منادی مفرد معرفه هم ساکن کړي شي ؟

**قلنا** بناء اصلي په سکون سره وي اوبناء عارضي په حرکت سره وي بناء اصلي فقط ددې (جمله حروف امرحاضرمعروف ماضي) پس دابناء عارضي دوچې نه مبنی په ضمي سره شو

**فان قیل** مبني په فتحې یاکسرې سره ولی نه کړی ؟

**قلنا** مبنی په فتحی سره خکه نشي کیدی چې التباس لازم نه شي دعمل دلازیداً سره اوپه کسري سره خکه نشي کیدي چې بیابه التباس راشي دمنادیٰ یاء ضمیري دمتکلم مضاف الیه سره

یعني چې کله نري حذف شي نو به کسري سره پاتي شي

**فان قیل** به ناږند اوکي لام جاره داخل دي پکاره چې منادي لام "لمستغاثه هم مجرورکړي شي؟

**قلنا** مجرور ځکه نشي کیدي چې فرق راشي به مابین دمستغاث او مستغاث له کي لکه یالزید اللقوم. دلته قوم مستغاث له دي مجرور دي اوکه لزید هم مجرور شي نو بیابه التباس لازم شي مستغاث دبه وابي چې جاله مدد او کړی شی پس معنی داشوه چې ای زیده مدد دقوم او کړه. او مستغاث دیته وایي چې دجانه طلب دمدد او کړی شي نو دلته زید مستغاث دي

**وینصب ان کان مضافانحویاعبدالله**: خلاصه: خلاصه داده چې دوه قسمه دمنادي منی دي بوه منادي مفرده معرفه او بله منادي استغاثه او بقه کله به ضمي سره کله به فتحي سره کله به کسري سره ۱۲، داده چې دمنادي دري اقسام به منصوب وي بوه هغه منادي چې اضافت یې شوي وي لکه یاعبدالله دویم قسم داچې مشابه وي دمضاف سره لکه یاطالعاجبلا ای ختونکیه غر ته پس طالعا مشابه دمضاف سره دي دریم قسم داچې منادي نکره غیر معینه وي لکه کقول الاعمی بارجلاخذبیدي. جې شمکورسري داووایي چې ای سړ به خملاس اونیسه پس دانکره غیرمعینه منادي ده.

**وان کان معرفاباللام قیل یاایهاالرجل ویاایتهاالمرءة**. داعبارت ده چې کله منادي معرف باللام وي نو دحرف نداءاو منادي به مابین کي فاصله ضروري وی سره دلحاظ دمذکر او مؤنث نه چې ایها او ایتها دي او دافاصله ځکه ضروري ده چې فرق راشي به مابین دند اتعریفي او الف لام تعریفي کي.

**وَيَجُوْزُ تَرْخِيْمُ الْمُنَادٰى وَهُوَحَذْفٌ فِيْ اٰخِرِهٖ لِلتَّخْفِيْفِ كَمَا تَقُوْلُ فِيْ مَالِكٍ يَامَالُ وَفِيْ مَنْصُوْرٍ يَامَنْصُ وَفِيْ عُثْمَانَ يَاعُثْمُ وَيَجُوْزُ فِيْ اٰخِرِ الْمُنَادَى الْمُرَخَّمِ الضَّمُّ وَالْحَرَكَةُ الْاَصْلِيَّةُ كَمَا تَقُوْلُ فِيْ يَاحَارِثُ يَاحَارُ وَيَاحَارِ.**

**ترجمه** او جائز ده ترخیم به منادي کښ (تعریف د مرخم) او هغه حذف کول د آخري حرف دي لکه ته اووائي چه یا مالك یا مال او منصور کښ یامنص او به عثمان کښ یا عثم. او منادی مرخم په آخر کښ ضمه او حرکت اصلیه دواړه جائز دي لکه ته اووائي یا حارث کښ یاحار او یاحار

**تشریح**: ترخیم په لغت کي، دباب تفعیل صیغه (رَخَّمَ یُرَخِّمُ تَرْخِیْمًا) به معنی نرم کیدل. آسان کیدل پس درخم اورخم یو معنی ده نرم والی په اصطلاح کي داحذف دهغه حروفودي چې آخر دمنادی کي واقع وي دپاره دتخفیف بغیرد قاعدي نه حذف کیږي پس ترخیم هم

دمنادئ دلوازماتو نـه دي او دا پـه نظم او نثر کې هم جائزدي لپاره د تخفیف پس کـه منادئ مرکب وي نو دویم جز به ترې ټول حذف کیږي لکه مثلاً یابعلبك ای یابعل فقط یابعل پاتې شو برائ تخفیف کچرې منـادئ مفرده وي او پـه آخرکې یې دوه حرفـه زائدوي نو دا دواړه به حذف کیږي ځکه چې دواړه په حکم دیو سبب کې دي لکه یاعثمان پـه دې کې الف او نون زائدتین دي چې سبب واحـد دي دغیرمنصرف دپاره . پس دابـه دواړه حذف کـیږي برائ تخفیف یاعثم ویلې کیږي کچرې منادئ مفرده وي او پـه آخرکې یې حرف صحیح وي او ماقبل تر حرف مده زائـده وي پس دغـه دواړه بـه حذف کیږي لکـه منصور ای یامنص او کچرې دا سې نه وي نو بیابه ترې فقط آخري حرف حذف کیږي لکه یاحارث ای یاحارُ.

**قـاعـده ویجـوزالخ** او جائزدي حرکت مختلف پـه آخرد منادي مرخمي باندي لکه یحارُ یایاحارِ هم جائزده

**وَاعْلَمْ اَنَّ یَامِنْ حُرُوْفِ النِّدَاءِ قَدْتُسْتَعْمَلُ فِی الْمَنْدُوْبِ اَیْضًا وَهُوَالْمُتَفَجَّعُ عَلَیْهِ بِیَا اَوْوَا کَمَا یُقَالُ یَازَیْدَاهُ وَوَازَیْدَاهُ فَوَا مُخْتَصَّةٌ بِالْمَنْدُوْبِ وَیَامُشْتَرَکَةٌ بَیْنَ النِّدَاءِ وَالْمَنْدُوْبِ وَحُکْمُهُ فِی الْاِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ مِثْلُ حُکْمِ الْمُنَادٰی:**

**ترجمه** بوئې شه چه حروف نداء نه یاء کله پـه مندوب کښې هم استعمالیږي او مندوب هغې تـه ویلې شي چه چا باندې پـه یاء ذریعې سره یـا وا ذریعې سره اظهـار د غـم وکړی شي لکه (یَازَیْدَاهُ وَوَازَیْدَاهُ). پس وا مندوب سره خاص ده او یاء مندوب او نـداء پـه درمیان کښې مشترك ده او حکم د دې په معرب او مبني والی کښې په شان د منادیٰ ده

**تشریح** بدې واعلم کې مصنفؒ د مندوب مسائل ذکر کوي .

## مندوب په لغت او اصطلاح کښې

**مندوب په لغت کې** صیغه د اسم مفعول ده او دا د ندبـه نه ماخوذ ده او ندبـه پـه مړي باندي ژړا کولو نه وایي یعنې د مړي خصلتونه او محاسن ذکرکول او په هغه ژړیدل.

**په اصطلاح کې** مندوب هغه شي ته وایي چې دهغه پـه وجه باندې اظهار د غم او د درمنـدي کیږي او دا مندوب به دوه قسمه دي

(۱) یو قسم هغه مندوب ده چې دیوشي عدم کیدو په وجه یو سړی ژړا کوي لکه مړی او شي مثلاً زید مړشي او خلق ورته ندا کوي چې یازیداه

(۲) دويم قسم هغه مندوب دي چي ديوشي د موجود بدو يه وجه بو سرى نداكوي لكه مثلاً پر مصيبت او افسوس وحسرت نازل شي اوخوك ورته نداء اوكړى چي يامصيبتاه ياغمه.
پس مندوب دي دواړوته شامل دي اومندوب ته ندا په دوه حرفونوسره كيږي يه ياسره اويه واسره لكه يازيداه وازيداه. دينه مندوب وايي اوگويا دامناسب دمنادي سره ده نومصنف خكه دلته ذكركړي دى اودمندوب علامت دادى چي مخكي به سرى حرف نداء به (يااووا) وى اويه آخركي به بي (الف) او(ه) وي بغيرد حركاتونه. د المتفجع كي الف لاء به معنى داندى سره اومتفجع په معنى چي اظهار كيدي سي دردمندگي على دغه، مندوب په وجه باندي په عليه كي هاضمير دعلت دباره ده. فوامختصة باالمندوب وبامشتركة بين النداء والمندوب واحرف ندائيه مختص دي په مندوب سوري اوحرف يامشترك دي په مابين دمنادي اومندوب تبنه بابه منادى كي كثرت استعمال دى. بابه مندوب كي دكسرت اواصالت دوجى نه راخي خكه چي بابه بولونداتيوكي اصل ده

**وَحُكْمُهُ**: قواعددمندوب به اعراب وبناء كي پسان داحكام دمنادي دي يعني كله مبني وي په ضمي سره كله به معرب وي وغير همانه

## مفعول فيه ياظرف

**فَصْلٌ: اَلْمَفْعُوْلُ فِيْهِ هُوَاسْمُ مَاوَقَعَ فِعْلُ الْفَاعِلِ فِيْهِ مِنَ الزَّمَانِ وَالْمَكَانِ وَيُسَمّٰى ظَرْفًا وَظُرُوْفُ الزَّمَانِ عَلٰى قِسْمَيْنِ مُبْهَمٌ وَهُوَمَالَايَكُوْنُ لَهٗ حَدٌّ مُعَيَّنٌ كَدَهْرٍ وَحِيْنٍ وَمَحْدُوْدٌ وَهُوَمَايَكُوْنُ لَهٗ حَدٌّ مُعَيَّنٌ كَيَوْمٍ وَسَنَةٍ وَشَهْرٍ وَكُلُّهَا مَنْصُوْبٌ بِتَقْدِيْرِفِيْ تَقُوْلُ صُمْتُ دَهْرًا وَسَافَرْتُ شَهْرًا اَىْ فِيْ دَهْرٍ وَشَهْرٍ وَظُرُوْفُ الْمَكَانِ كَذٰلِكَ مُبْهَمٌ وَهُوَمَنْصُوْبٌ اَيْضًا بِتَقْدِيْرِفِيْ نَحْوُ جَلَسْتُ خَلْفَكَ وَاَمَامَكَ وَمَحْدُوْدٌ وَهُوَمَالَايَكُوْنُ مَنْصُوْبًا بِتَقْدِيْرِفِيْ بَلْ لَابُدَّ مِنْ ذِكْرِفِيْ فِيْهِ نَحْوُ جَلَسْتُ فِى الدَّارِوَفِى السُّوْقِ وَفِى الْمَسْجِدِ.**

**ترجمه** مفعول فيه هغه اسم ده چه جا كښ د فاعل فعل واقع شوى وى په زمان او مكان كښ او دينه نوم ظروف ابخوږلى شى او ظروف زمان به دوه قسمه دى اول مبهم ده او مبهم هغه اسم ظرف ده چه د هغي لپاره خه حد نه وى معرر لكه دهر (زمانه) او حين (وخت) دوهم محدود او محدود هغه اسم ظرف دى چه د دي لپاره خه حد معين وى لكه يوم او ليلة او شهر

او سنة يدي كښ به هر يو په تقدير د في سره به منصوب وي لكه ته اووائي (صُمْتُ دَهْرًا وَسَالًا وَشَهْرًا) يعني (فِيْ دَهْرٍ وَشَهْرٍ) او ظروف مكان به هم دغه رنګي مبهم وي او هغه به هم په تقدير د في سره به منصوب وي لكه (جَلَسْتُ خَلْفَكَ وَاَمَامَكَ) او محدود به په تقدير د في سره منصوب نه وي بلكه في ذكر كول ضروري دي لكه (جَلَسْتُ فِي الدَّارِ وَفِي السُّوْقِ وَفِي الْمَسْجِدِ)

**تشريح** دريم قسم دمنصوباتو نه مفعول فيه ده دالمفعول فيه لفظي تشريح داده ال په معنى د الذي سره او مفعول په معنى د فُعِلَ يا يُفْعَلُ سره ده (ماضي مضارع مجهولين) معنى به يې داشي چي الذي فُعِلَ فيه يا يُفْعَلُ فيه داهغه شي دي چي يوكار په كي كېدي شي يا شوي وي په اصطلاح كي يې تعريف واضح دي پس دامفعول فيه نوم د هغه شي دي چي واقع شوي وي فعل دفاعل په دغه شي كي او دغه شي ته ظرف هم وايي برابره خبره ده كه واقع دفعل دفاعل په زمانه كي وي اوكه په مكان كي وي اول ته ظرف زمان وايي او دوهم ته ظرف مكان وايي

**نوټ** دفعل نه مراد لغوي فعل يا معنى مصدري ده حدثي دي من الزمان بيان دما وقع دپاره دي. ظرف په دوه قسمه دي (۱) ظرف زمان (۲) ظرف مكان هر واحد دواړو نه په دوه دوه قسمه دي ظروف زمانيه دا په دوه قسمه دي (۱) ظرف زمان مبهم (۲) ظرف زمان محدود ظروف مكانيه دا په دوه قسمه دي (۱) ظرف مكان مبهم (۲) ظرف مكان محدود

(۱) **ظرف زمان مبهم** داهغه ظرف ته وايي چي دهغي دپاره حد معين دزماني نه وي لكه دهر (مطلق زمانه) يا حين وغيره

(۲) **ظرف زمان محدود** داهغه ظرف دي چي دهغي دپاره حد معين دزماني وي لكه ليل. نهار مياشت وغيره

(۳) **ظرف مكان مبهم** داهغه ظرف دي چي دهغي دپاره حد معين دځاى نه وي لكه خلف (شاته حصه) امام وغيره

(۴) **ظرف مكان محدود** داهغه ظرف دي چي دهغي دپاره حد معين دځاى وي لكه دار. مسجد سوق وغيره.

**احكام** ظرف زمان مبهم. ظرف زمان محدود او ظرف مكان مبهم به منصوب وي په تقدير دفي سره يعني في ظرفيه به په كي مقدره وي او بعد دهغي نه به دادريواړه ظروف منصوب وي. فقط يو قسم چي ظرف مكان محدود دي په دي يو قسم كي به في ظرفيه ذكر كول ضروري دي او دي به مجرور وي ځكه چي في حرف جر به كي ذكر وي امثله مذكور في الكتاب واضح دي.

**الفرق: بین المقدروالمحذوف:** مقدردیته وایي چي اثريې په لفظ کي باقي وي محذوف دیته وایي چي اثريې په لفظ کي باقي نوي.

ظرف زمان مبهم ومحدود دان قابل نصبند بتقدیر في
لیکن مکاني که معین بود نیست دروجاره ازین تحریرفي

دا قسمه ظروف به تقدیرد في سره منصوب وي ددي دپاره وجه داده

**قاعدهٔ نحوي:** هرکله چي جُز. دفعل اصطلاحي ذکرشي بعد دفعل نه نودغه جزء دفعل اصطلاحي به منصوب وي بلا واسطه پس ددي قاعدي مطابق مفعول مطلق هم منصوب ده څکه مفعول مطلق مصدردي په معنی دحدث سره اوداجزء دي دفعل اصطلاحي نه اودفعل اصطلاحي ددي جزئین دي یومعنی حدثي یامصدری بل نسبت الی الفاعل دریم اقتران بالزمان أس زده کړه داخیره چي ظرف زمان مبهم څکه منصوب دي چي زمانه مبهمه هم دفعل اصطلاحي مستقل جُز. دي اوقسم ثاني دظرف زمان معین ، محدود، څکه منصوب دي چي داقیاس په زمانه مبهمه باندي دي داګرچي دفعل اصطلاحي جزء نه دي لیکن زمانه په دواړوکي مشترکه ده البته په اوصافوکي یې فرق دي یعني یوه مبهمه ده اوبله معینه ده پس دابه هم منصوب وي .دریم قسم چي ظرف مکان مبهم ده داقیاس دي په وجه داشتراك دذات نه یعني زمانه مبهمه اومکان مبهم پس داڅکه منصوب دي.

څلورم قسم څکه منصوب نه ګرزي چي یوخوپدي صورت کي في جاره ذکروي اوبله وجه داده چي په هیڅ صورت کي دفعل اصطلاحي جز.نه ګرزي اونه قیاس کیږي په نوروباندي څکه چي دامعین اومحدوددي.

## مفعول له

**فَصْلٌ:** اَلْمَفْعُوْلُ لَهُ هُوَاسْمٌ مَالِاَجْلِهِ يَقَعُ الْفِعْلُ الْمَذْكُوْرُقَبْلَهُ وَيُنْصَبُ بِتَقْدِيْرِاللَّامِ نَحْوُضَرَبْتُهُ تَادِيْبًا اَىْ لِلتَّادِيْبِ وَقَعَدْتُ عَنِ الْحَرْبِ جُبْنًا اَىْ لِلْجُبْنِ وَعِنْدَ الزَّجَّاجِ هُوَمَصْدَرٌ تَقْدِيْرُهُ اَدَّبْتُهُ تَادِيْبًا وَجَبُنْتُ جُبْنًا.

**ترجمه:** څلورم قسم د منصوباتونه مفعول له ده، مفعول له دا هغه اسم ده چه ددده وجه نه واقع کیږي فعل مذکور مخکښ د ده نه دا فعل چه کوم د فعل نه مخکښ ذکر شوی واقع شوي وي او هغه به لام تقدیري سره منصوب وي لکه ‹ضَرَبْتُهُ تَادِيْبًا› یعنی ‹لِلتَّادِيْبِ وَقَعَدْتُ عَنِ الْحَرْبِ جُبْنًا›

لِلْجُبْنِ، او په نزد د زجاج دا مصدر دی اصل نی اَدَّبْتُهٗ تَادِیْبًا وَجَبُنْتُ جُبْنًا،

**تشریح** لفظی تشریح یې دا ده چې الف لام په معنی د الذی سره ده او مفعول په معنی د فُعِلَ بِاَیُفْعَلُ سره دی او به له کې لام لاِجْلِهِ دی. پس تقدیر یې داسې دې المفعول له ای الذی فُعِلَ یا یفعل لاجله یعنی مفعول له نوم دهغه شي دې چې دهغه دوجې نه ذکر شوي وي فعل دفعل مخکې ددې نه برابره خبره ده که دغه فعل مذکور قبله حقیقتاً وي او که حکماً. مثال لکه خوك نیوس 'وکړي چې لِمَا ضَرَبْتَ.

په جواب کې فقط تادیبا ذکرسي ای ضربته تادیباً پس ضربه فعل فاعل او تادیباً مفعول له دی یعني فعل مذکور قبله دوجې د تادیب نه واقع سوی دی ماٰلاجله په دوه معنو سره دی یو معنی داده چې دوجې دوجود مفعول له نه فعل دفاعل قبله ذکر سوي وي دویمه معنی داده چې دوجې دحصول دده نه فعل دفاعل واقع سوي وي پس مقصد دواړو دی یعني دمثال مذکور مطابق ضرب دوجود د تادیب دپاره واقع دی یاد حصول دتادیب دوجې نه واقع دی شرط دمفعول له دپاره د'دي چې منصوب وي بعد دلام اجلیه په نه تقدیر دلام سره ای لام جاره ـ لکه ضربتهٗ تادیباً ای لِلتَّادِیب دامثال دحصول دمفعول له دپاره دی او دوجود دمفعول له دپاره مثال لکه قعدت عن الحرب جُبْناً قعدت فعل دفعل الحرب متعلق به فعل فاعل مفعول به دا 'جُبنا مفعول له دی ای لِلْجُبْنِ. دا دوجود مثال دی دا مذهب دجمهورو دی جمهوروا یی چې مفعول مستقل قسم ده دمنصوباتو او زجاج دی په وایی چې دامفعول مطلق من غیر لفظه دی او تقدیر یې دادی ای اَدَّبْتُهٗ تَادِیْباً وَجَبُنْتُ جُبْناً خلاصه مختاره مذهب دجمهورو ده ځکه چې دزجاج صاحب په مذهب باندی به کلام کې تاویل لازمیږي یعنی دا تکلفات کثیره دي پس دا مذهب ضعیف دی

## مفعول معه

**فَصْلٌ**: اَلْمَفْعُوْلُ مَعَهٗ هُوَ مَا یُذْکَرُ بَعْدَ الْوَاوِ بِمَعْنٰی مَعَ لِمُصَاحَبَةِ مَعْمُوْلِ الْفِعْلِ نَحْوُ جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتُ وَجِئْتُ اَنَا وَزَیْدًا اَیْ مَعَ الْجُبَّاتِ وَمَعَ زَیْدٍ.

**ترجمه** مفعول معه هغه اسم ده چه ورسته لواو نه ذکر وی او دغه واو به په معنی د مع سره وی او ذکر کول به لپاره د ملګرتیا د دی مفعول معه وی لکه جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتُ وَجِئْتُ اَنَا وَزَیْدًا یعنی مَعَ الْجُبَّاتِ وَمَعَ زَیْدٍ

**تشریح** پنځم قسم دمنصوباتو مفعول معه دی لفظی تشریح یې په مخکینو باندی قیاس

کړه. تعریف دمفعول معه دادي دانوم دهغه شي دي چي ذکروي پس دواو (سه واوبمعنی مع سره حرازراغي دوٰ عطفه اودواوقسمیه وغیره نه یعني دهرعمرواونه ۱۲) نه چي دغه واوبه معنی دمع سره وي اووي دامفعول معهٗ مصاحب د معمول دفعل برابره خبره ده که دغه معمول دفعل فاعل وي اوکه مفعول به وي لکه مثال دپاره دفاعل. جء البرد والجبات ای مع الجبات. راغله بخنی سره ذکیوګو. جاء فعل دي البرد فاعل یعني معمول دفعل دي او والجبات هغه اسم دي چي واقع دي بعد لو او بمعنی مع پس دامفعول معهٗ دي چي مصاحب او منرکب بي دالبرد سره دي چي کوم فاعل یعني معمول دجاء دي دمصاحب معنی داده چي مسارک: مفعول معه دي دمعمول دفعل سره به احدد زمان اومکن سره یعني ددواړو زمانه اومکن به یووي کفت زیداً درهما ً ی مع زیداً کفی فعل دي اوت ضمیرد مفعول به دي اوزیداً درهما مفعول معه دي دمثال مصاحب دمفعول به دي.

**فَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ لَفْظًا وَجَازَ الْعَطْفُ يَجُوزُ فِيهِ الْوَجْهَانِ النَّصْبُ وَالْعَطْفُ وَالرَّفْعُ نَحْوُ جِئْتُ أَنَا وَزَيْدٌ أَوْ زَيْدًا وَإِنْ لَمْ يَجُزِ الْعَطْفُ تَعَيَّنَ النَّصْبُ نَحْوُ جِئْتُ وَزَيْدًا:**

**توجمه** کچرته فعل لفظ ذکر وي او عطف جائز وي نو سدی کښ دوه وجه جائزدی نصب او رفع لکه جئت انا و زیداً او زیدٌ کچرته عطف جائز نه وي نو بیا نصب متعین ده لکه جئت و زیداً

**تشریح** دمفعول معه نه مخکي چي کوم فعل ذکروي دغه فعل به خالي نه وي یابه لفظي وي یابه معنوي وي اوبیا به هر واحد کي دوه احتماله دي پس که حری فعل لفظي وي نو بیا به عطف دمابعد دواونه جائزوي په ماقبل دواو باندي یابه جائزنه وي کچري عطف دمابعد جائزوي په ماقبل باندي نو پدي صورت کي دوه وجهان جائزدي په اعراباتو کي یونصب بناء برمفعولیت اوبل رفع بناء برعطف یعني مفعول معه منصوب اومرفوع دواړه جائزدي دویم احتمال که چیري پدي صورت کي عطف جائزنه وي نو بیا فقط یو وجه جائزده چي منصوب به وي بناء برمفعول معه خکه چي عطف جائزنه دي نو بله هیڅ چاره نشته لکه مثال د اولني احتمال دپاره اناوزیداً اوزیدٌ. جئتُ فعل تُ ضمیر متکلم فاعل انا ضمیر منفصل داتاکید دي دت ضمیر متصل دپاره اوزید مفعول معه دي پس زیداً بنابرمفعول معه منصوب هم کیدي شي اوبنابرعطف مرفوع هم کیدی شي یعني زیدٌ هم جائزدي اوداعطف جائزدي به جواز دقانون نحوی سره اوقانون دادي چي کله کله دضمیرمتصل تاکید په ضمیرمنفصل سره اوشي نوهغې عطف جائزوي دبعد الواوپه قبل الواو باندي. مثال ددویم احتمال دپاره لکه جئتُ وزیداً پدي صورت کي عطف جائزدي پس دلته فقط تعین دنصب متعین دي

وَاِنْ كَانَ الْفِعْلُ مَعْنًى وَجَازَ الْعَطْفُ تَعَيَّنَ الْعَطْفُ نَحْوُ مَا لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو وَاِنْ لَمْ يَجُزِ الْعَطْفُ تَعَيَّنَ النَّصْبُ نَحْوُ مَالَكَ وَزَيْدًا وَمَا شَأْنُكَ وَعَمْرًا لِاَنَّ الْمَعْنٰى مَا تَصْنَعُ:

**ترجمه** کچرته فعل معنوي وي او عطف جائز وي نو بيا عطف متعين ده کچرته عطف جائز نه وي نو نصب متعين ده لکه ,مَالَكَ وَزَيْدًا وَمَا شَأْنُكَ وَعَمْرًا, ځکه چه معنی د دې ما تصنع ده

**تشريح** زده کړداخبره چې احتمالات مذکوره په فعل معنوي (فعل معنوي دينه وايي چې مستنبط وي دلفظ نه) کې هم دغه شان دي چې يابه عطف جائزوي يابه نوي پس کچرې عطف جائزوي نوپه دې صورت کې به اعراب دمعطوف موافق دمعطوف عليه سره لکه مالزيد وعمرو ما استفهاميه ده اوفعل يې معنوي دي اوعمرمفعول معه دي يعني بعد الواو واقع دي اُس په زيدباندې لام حرف جرداخل دې نو مجروردي پس بعد الواو به هم مجرور ګرزي اوکه مځکې منصوب وي نو بعد الواو به هم منصوب وي اوکه مرفوع وي نو مرفوع به وي ما بعد د دې د پاره وجه داده که چيرې قبل الواو مجرور وي په حرف جر سره او بعد الواو منصوب کړې شي بناء برمفعول معه نو بيا به دغه مفعول معه بوجه کړې شي په وجې ديګرې سره اوفعل چونکه معنوي دي نو په دې صورت کې ثقل خلاف اولی دي يعني داسې طريقه عرب نه خوخوي اوکچرې عطف جائزنه وي نو په دې صورت کې به فقط نصب متعين وي بنابر مفعول معه لکه مالك وزيداً دلته فعل معنوي دي اوعطف دزيد په ك باندې غيرصحيح دي اودا قانون دي چې کله عطف اوکړی شي په ضمير مجروره باندې نو لابدي وي په کې داعادې دجار نه پس کچرې زيد عطف شي په ماقبل نو پکار ده چې په زيد هم لام جاره داخل وي اومجرورګرزيدلی وي يعني مالك ولزيد نو معلومه شوه چې دلته اعاده دجار نه ده شوي نو منصوب دي بناء برمفعول معهٗ. ماشانك وعمراً دلته هم عطف غيرصحيح دي ځکه چې شان بعد الواو زيدته معاد شوی نه دي نو داهم منصوب دي بنابر مفعول معهٗ **لان المعنى ماتصنع:** مصنف په دې سره تصريح دفعل معنوي کړېده چې په مالزيد وعمرو کې مالزيد په معنی د ماتصنع يا ما يصنع سره ای ماتصنع وعمرو وغيره هذا القياس.

## الحال

**فَصْلٌ:** اَلْحَالُ لَفْظٌ يَدُلُّ عَلٰى بَيَانِ هَيْئَةِ الْفَاعِلِ اَوِالْمَفْعُولِ بِهٖ اَوْ كِلَيْهِمَا نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا وَضَرَبْتُ زَيْدًا مَشْدُوْدًا وَلَقِيْتُ عَمْرًا رَاكِبَيْنِ:

**ترجمه**. حال داسې لفظ ده چه په هیئت د فاعل یا مفعول یا د دواړو باندي دلالت کوي لکه «جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا وَضَرَبْتُ زَيْدًا مَشْدُوْدًا وَلَقِيْتُ عَمْرًا رَاكِبَيْنِ».

**تشريح**: شپږم قسم د منصوباتو نه حال ده يعني منصوبات ټول دولس دي پدي کي اولني پنځه قسمه اصل دي او علاوه ازين ملحقات دي پس مصنفؒ چي کله فارغ شو د اصل نه نو شروع بي او کړه په ملحقاتو باندي

حال په لغت کي صفت او حالت ته وايي

په اصطلاح کي تعريف داهغه لفظ ته وايي چي دلالت کوي په حالت د فاعل يا مفعول به يا د دواړو (يو وخت)، پس د غه شي ته حال وايي يعني حالت د فاعل او مفعول به بياني.

**فان قيل** مصنفؒ په تعريف د حال کي الحال لفظ ذکر کړی دي په مخکينو اقسامو کي اسم ذکر شوي دي لمَ

**قلنا** دا حکه چي حال کله مفرد واقع کيږي او کله جمله لکه جاءني زيد راکباً د مفرد مثال دي او جاءني زيد وغلامه راکباً د جملي مثال دي پس په لفظ سره حال دواړو ته شامل شو په بيان هيئة الفاعل الخ سره احتراز راغی د هغه لفظ نه چي حال د فاعل او مفعول به نه بيانوي پس ددي نه نحويان يوه قاعده مستنبط کوي چي کله حال واقع کيږي نو يا به د فاعل نه واقع کيږي او يا به د مفعول به نه البته بعضو کتابونو دا جزئي ليکلي ده چي کله کله حال د مضاف اليه نه هم واقع کيږي هغه مضاف اليه چي هغه د فاعل يا د مفعول به د پاره وي لکه مثال مضاف اليه چي واقع ده د ملت نه چي ملت مضاف مفعول به دي امثله د کتاب جاءني زيد راکباً جاء فعل في مفعول به دي او زيد ذالحال دي او راکباً حال واقع شوي ده د زيد نه پس ذالحال سره د حال نه فاعل شو لپاره د فعل. فعل سره د فاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه. دا مثال د پاره د فاعل وو. ضربت زيداً مشدوداً ضربت فعل فاعل زيداً مفعول به او مشدوداً حال دي دا مثال د مفعول به دي لقيت عمرواً راکبين، ملاقات اوکه ما او عمرو په داسې حال کي چي سواره وو مونږ لقيت فعل فاعل عمرو امفعول به ذالحال او راکبين حال دي

وَقَدْ يَكُوْنُ الْفَاعِلُ مَعْنَوِيًّا نَحْوُ زَيْدٌ فِي الدَّارِ قَائِمًا لِاَنَّ مَعْنَاهُ زَيْدٌ اسْتَقَرَّ فِي الدَّارِ قَائِمًا وَكَذَا الْمَفْعُوْلُ بِهِ نَحْوُ هٰذَا زَيْدٌ قَائِمًا فَاِنَّ مَعْنَاهُ اُشِيْرُ اِلَيْهِ قَائِمًا هُوَ زَيْدٌ.

**ترجمه**: او کله به فاعل معنوی وي لکه «زَيْدٌ فِي الدَّارِ قَائِمًا» حکه چه د دي جملي معنى

(زَيْدٌ اِسْتَقَرَّ فِي الدَّارِ قَائِمًا)، او همدغه رنګی مفعول به هم دی لکه (هٰذَا زَيْدٌ قَائِمًا) ددي جملې معنی (اُنَبِّهُ اَوْ اُشِيْرُ اِلَيْهِ قَائِمًا هُوَ زَيْدٌ).

**تشريح** دا قاعده چې په امثله مذکوروکې فاعل اومفعول به لفظاً ده او کله کله حال واقع کیږي د فاعل معنوي اومفعول به معنوي نه. زده کړه دا خبره چې فاعل معنوي هرهغه شي ته ويلی کيږي چې دهغی فعل معنوي وي اومفعول به معنوي هم هغه شی دي چې فعل يې معنوي وي پس مثال د فاعل معنوي دپاره دادي زيد في الدار قائماً دلته حال دي بنابرحالبت اوزيد يې ذالحال دي پس زيد فاعل دی اوفعال د ده معنوي دي بيدي شان سره چې في الدار جار مجرور دي او دا اكثريه فعال پوري متعلق كيږي او هغه فعل معنوي دی ای زيد استقر في الدار قائماً پس دا استقر مستنبط دي د جار مجرور سره نوكوبه دايه حقيقت كې د زيد دپاره فعل معنوي ثابت شو او فعل معنوی د بته وايي چې مستنبط وي دلفظ نه پس د في الدار نه چې کوم لفظ مستنبط دي هغه د فاعل د پاره فعل معنوي دی او دغه شان مفعول به هم قياس كړه لكه مثال هذا زيدٌ قائماً هذا اشاره ده اوزيد مفعول به دي ذوالحال واقع شوي دي او قائماً حال دي پس د مفعول به فعل معنوي دي په دي شان سره چې په هذا کی د تنبيه ده پس د به معنی د اُنَبِّهُ سره ده او ذا په معنی د اُشير سره دي پس تقديريه يې داشي چې انبهُ أشيرُ زيد ا قائماً انبهُ او اشير دواړه فعلونه دي نوګويا دغه په حقيقت کې د مفعول به دپاره فعل معنوي دي.

وَالْعَامِلُ فِي الْحَالِ فِعْلٌ اَوْمَعْنٰى فِعْلٍ وَالْحَالُ نَكِرَةٌ اَبَدًا وَذُوالْحَالِ مَعْرِفَةٌ غَالِبًا كَمَا رَاَيْتَ فِي الْاَمْثِلَةِ الْمَذْكُوْرَةِ فَاِنْ كَانَ ذُوالْحَالِ نَكِرَةً يَجِبُ تَقْدِيْمُ الْحَالِ عَلَيْهِ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَاكِبًا رَجُلٌ لِئَلَّا تَلْتَبِسَ بِالصِّفَةِ فِيْ حَالَةِ النَّصْبِ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ رَاَيْتُ رَجُلًا رَاكِبًا

**ترجمه** حال کښ عامل فعل وی یا معنی د فعل وی او حال همیشه نکره وی او ذوالحال اکثر معرفه وی لکه تا به مذکور مثالونو کښ ولیدل. کچرته ذوالحال نکره وی نو بیا پدي باندي حال مقدم کول واجب دی لکه (جَاءَنِيْ رَاكِبًا رَجُلٌ)، دوجه نه چه به حالت د نصب کښ د حال صفت سره التباس رانشی لکه ستا دا قول چه (رَاَيْتُ رَجُلًا رَاكِبًا).

**تشريح** دحال عامل به يا فعل لفظي وي اويا به معنوي پس کچري عامل بې لفظاً يعني صراحتاً وي نو دا به عمل په ذوالحال او حال دواړو کې کوي او کچري عامل يې معنوي وي نو بيا به په دواړو کې عمل فعل معنوي ده .بله قاعده داده چې حال به هميشه لپاره نکره وي او ذوالحال به

غالب معرفه وي يعني په اکثروحالتوکي به معرفه وي ددې دره وجه داده حال به خکه نکره وي چې حال خبر دي دپاره دذوالحال يعني دا يو حکم دي داحکم و دذوالحال نه اوحکم اوخبريه نکره حاصليږي او اصل په اسماء کې تنکيردي پس حال به هميشه نکره وي اوذوالحال به غالب معرفه وي داخکه چې ذوالحال په حقيقت کې محکوم عليه دی دباره دحال نوګويا دابه حکم مبتداء کې دي او په مبتداء کې اصل تعريف ده اوکله به نکره هم وي پس داحکم دذوالحال دي به مذکوره مثالونوکې حال نکره ده اوذوالحال معرفه دی به ذوالحال کې اصل تعريف دي اوکچري ذوالحال هم نکره واقع شي نوبه دې صورت کې تقدیم دحال په ذوالحال باندې واجب ده اوتقديم دحال خکه واجب دي اوکچري حال مقدم نه کړی شي نوبيا به التباس لازم شي په مابين دحال اوصفت کې په حالت نصبي کې فقط پس دالتباس دفع کولو دپاره به حال مقدم شي په ذوالحال باندې اوصفت نه به التباس قطع شي خکه چې صفت به موصوف مقدم نه وي دغه شان به په حالت رفعي اوجری کې هم حال مقدم کيږي وجوبا اګرچې په دې صورتونوکې التباس نه راخي ليکن دادواړه قياس دي په حالت نصبي باندې لکه مثال دحالت رفعي دی ره جاءني رجلٌ راکباً بس حال به مقدم کيږي په ذوالحال باندې اي جاءني راکباً رجلٌ مثال دحالت نصبي لکه رايت رجلاً راکبٌ پس په دې صورت کې التباس لازم شو خکه چې اعراب بوشان دي او دواړه نکري دي نوداسې به رايت راکباً رجلا مثال دحالت جري مررت برجل راکب اي مررت راکباً برجل.

وَقَدْ تَكُوْنُ الْحَالُ جُمْلَةً خَبَرِيَّةً نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَغُلَامُهُ رَاكِبٌ اَوْيَرْكَبُ غُلَامُهُ وَمِثَالُ مَاكَانَ عَامِلُهَا مَعْنَى الْفِعْلِ نَحْوُ هٰذَا زَيْدٌ قَائِمًا مَعْنَاهُ اُنَبِّهُ وَاُشِيْرُ:

**ترجمه** او کله به حال جمله خبريه وي لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَغُلَامُهُ رَاكِبٌ يا يَرْكَبُ غُلَامُهُ او د هغې حال مثال چه په کښې عامل معنوي فعل وي لکه هٰذَا زَيْدٌ قَائِمًا د دې معنی اُنَبِّهُ وَاُشِيْرُ ده

**تشريح** دا يوه قاعده ده. اوحال کله کله جمله هم واقع کيدې شي برابره خبره ده که دغه جمله اسميه وي اوکه فعليه وي لکه مثال دجملې اسمي دادی جاءني زيد وغلامه راکب. جاء فعل ني مفعول به زيد بې فاعل غلامه مبتداء، فعل سره دفاعل اومفعول نه خبر شو دپاره دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه داذوالحال شو اوراکب بې حال دي پس حال سره دذوالحال نه جمله اسميه خبريه شوه. دجملې فعلي مثال لکه جاءني زيد يركب غلامه تركيب هذا القياس.

وَقَدْ يُحْذَفُ الْعَامِلُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ كَمَا تَقُوْلُ لِلْمُسَافِرِ سَالِمًا غَانِمًا اَيْ تَرْجِعُ سَالِمًا غَانِمًا:

**ترجمه** او بعض وختونه کښې به عامل حذف کيږي چکله قرينه موجود وي لکه نه بو

مسافر ته اووائی (سَالِمًاغَانِمًا) یعنی (تَرْجِعُ سَالِمًاغَانِمًا) ته سلامتیا سره کامیاب واپس راشه.

**تشریح** دابله قاعده ده یعني کله کله حذف کولی شي عامل دحال نه پدې شرط سره چې قرائن موجودوي لکه مثال یو مسافر راشي بیا واپس روان شي اوته ورته اووائې چې سالماً غانماً دي واپس شي په داسې حالت کې چې سالم هم وې اوغانم هم وې پس ددې ترجعُ عامل حذف شوي دي ای ترجع سالماًغانماً اوقرینه حالیه موجوده ده چې رجوع اوواپس کیدل دمسافردي اودقرینې مقالیه مثال لکه څوك تپوس اوکړي چې کیف جئتك به جواب کې فقط راکباذکرشي یعني جواب دسوال موافق دي

## اووم قسم دمنصوباتونه تمیزدي

فَصْلٌ: اَلتَّمِيْزُهُوَنَكِرَةٌتُذْكَرُبَعْدَمِقْدَارٍمِنْ عَدَدٍاَوْكَيْلٍ اَوْوَزْنٍ اَوْمَسَاحَةٍاَوْغَيْرِذٰلِكَ مِمَّافِيْهِ اِبْهَامٌ تَرْفَعُ ذٰلِكَ الْاِبْهَامَ نَحْوُعِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًاوَقَفِيْزَانِ بُرًّاوَمَنَوَانِ سَمْنًاوَجَرِيْبَانِ قُطْنًاوَعَلَى التَّمْرَةِمِثْلُهَازُبْدًا:

**ترجمه** تمیز هغه اسم نکره ده چه ذکر کولی شي روسته د مقدار نه یعني عدد یا کیل یا وزن یا مساحت یا د نه علاوه چه کوم شي کښ ابهام وي دفع کړي لکه (عِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا) یا (قَفِيْزَانِ بُرًّا) یا (مَنَوَانِ سَمْنًا) یا (جَرِيْبَانِ قُطْنًاوَعَلَى التَّمْرَةِمِثْلُهَازُبْدًا)

**تشریح** اووم قسم دمنصوباتونه تمیزدي .تمیزبه لغت کې تفسیراوتبیُن سه وایی دواړومعنی وضاحت دي په اصطلاح دنحوي کې داهغه اسم نکره ده چې ذکرکیدی شي پس دمقدر نه دپاره دازالی ، ارتفاع ،یورته کول ، دغه ابهام پس تمیزمقصداوفائده داده چې رفع دابهام راولی دمقدارمبهم نه برابره خبره ده که مقدارمبهم وي اوکه غیرمقدارمبهم وي البته په تعریف دتمیزکې اکتفی فقط په مقدارسره شوي ده داځکه چې تمیزدمقادیرونه کثیرواقع کیږي اودغیر مقادیر څیزونونه قلیل واقع کیږي

### شعر

مقادیرهمه پنج است بشناس عددووزن وکیل ومقیاس

دوضاحت دپاره مثال لکه عندي عشرون خمسره شل دي پس په عشرون کې ابهام دي ددغه اسم مبهم نه بعدچې نکره واقع شي درفعې دابهام لکه مثلاً درهماً ورسره ذکرشي نوپس دغه

درهماً نه تمیزوايي او عشرون ته مميزوايي په تعريف کې لفظ دمقدار راغلي دي مقدار صيغه داسم آله کبری ده په وزن د مضْرَابٌ باندي او مقدار په معنی ما يعرف به شئ ( چي اندازه ديوشي پري معلوميږي ) پس مقدار کله په اعدادو کې واقع کیږي او کله په مکيلاتو کي راځي او کله په موزوناتو کي راځي او کله په مساحاتو (پیمائش مثلاً فټ ـ گز وغیره ) کي راځي لکه مثالونه ترتیب وار دې دعدد دپاره مثال لکه عندي عشرون درهماً عندي خبر مقدم دي عشرون مميز دي او درهماً ورله تمیزدي مميز سره دتمیزنه مبتدا یي مؤخره مبتدا سره دخبرنه جمله اسميه مُمیزه ده دکيل (پيمانې) دپاره مثال لکه عندي قفيزان بُرّاً خاسره دوه کيلو غنم دي ترکيب علی هذا القياس دوزن مثال لکه عندي منوان سمناً خاسره دوه منه غوړي دي ترکيب ايضاً وجريبان قطناً دوه جريبه پُمبه ای مالوچ ترکيب ايضاً مثال دغيرذالك دپاره لکه على التمرة مثلهازبَداً په کهجوره باندي په مثل دهغې زګ دي دي قسم ابهام ته مقياس وايي يعنې قياس په اندازي سره ديوشي دپاره .

**وجه نصب:** دتميزدپاره عامل ناصبه اسم تام دي هغه اسم تام چي دتميزنه مخکې واقع شوي وي مثلاً عشرون قفيزان ـ جريبان وغیره دیته اسم تام وايي داسم تام تعريف دادي هغه اسم ته وايي چي دي په داسي يو حالت باندي مشتمل وي چي په دغه حالت کي دده اضافت ممتنع وي او داضافت دامتناع دپاره دري اشياء دي يوتنوين دي او دويم قائم مقام دتنوين دي مثلاً نون دتثنى او جمعي او دريم اضافت دي يعني چي يو ځل يي اضافت شوي لېكن ثانياً به يې اضافت ممتنع وي پس يو دثلاثونه چي په کوم اسم کي موجود وي هغه اسم ته اسم تام وايي او داسم دانمام دپاره دغه دري څيزونه دي لکه خاتم په تنوين سره تام شوي دي او اضافت يي په وخت دتنوين کي ممتنع دي دويم مثال لکه منوان داد نون نه پس تميزچي کله واقع شي بعد داسم تام نه نودغه تميز به منصوب وي بنابرمفعوليت مجازاً بدي شان سره چي اسم تام مشتمل دي په دوه څيزونو باندي يو نفس اسم دي او بل اتمام داسم دي نو پس نفس اسم ياخود اسم بمنزله دفعل دي او اتمام داسم بمنزله دفاعل او تميزواقع دي بعد داسم تام نه په دريم ځائ کې نو ګوياتميزبمنزله مفعول به دي او مفعول به منصوب وي نو تميزبه څکه منصوب وي چي ګويادي مشابه دي داصل سره چي مفعول به ده او داصل شي دپاره چي څه حکم وي هغه به دمشابه شي دپاره وي.

### اشعار

پس بدان اکنون که باشد اسم تام از چارچيز اولاً تنوین که اورا لفظ یاتقديرجا

نیز نون تثنیه پس نون جمع وشبه وي در اضافت نیز باشد اسم تام ای مُقتدا
دریکي زین اسم تام ابهام وضعي هست اگر بهر رفعش می‌کند ناچار تمیز اقتضا

وَقَدْ یَکُوْنُ عَنْ غَیْرِمِقْدَارٍ نَحْوُهٰذَا خَاتَمٌ حَدِیْدًا اَوْ سِوَارٌ ذَهَبًا اَوْفِیْهِ الْخَفْضُ اَکْثَرُ وَقَدْ یَقَعُ بَعْدَ الْجُمْلَةِ لِرَفْعِ الْاِبْهَامِ عَنْ نِسْبَتِهَا نَحْوُ طَابَ زَیْدٌ نَفْسًا اَوْعِلْمًا اَوْ اَبًا.

**ترجمه** او کله به تمیز د غیر مقدار نه وی لکه (هٰذَا خَاتَمٌ حَدِیْدًا اَوْ سِوَارٌ ذَهَبًا) پدې کښې اکثر کسره راځي او تمیز کله د جملې نه پس واقع کیږي د جملې نسبت نه ابهام لرې کولو لپاره لکه (طَابَ زَیْدٌ نَفْسًا اَوْعِلْمًا اَوْ اَبًا).

**تشریح** تر او سه پورې بحث دهغه تمیز وو چې دمقدار نه بعد ذکرشوي وو اوپه عبارت کې دهغه تمیز بحث دې چې کله کله تمیز غیرمقدار نه بعد واقع کیږي پس کوم تمیز چې دمقدار نه بعد ذکرکوي هغه به همیشه منصوب وي او دغیرمقدار نه بعد چې کوم تمیز وي دې به اکثراو غالباً مجرور وي بنابر اضافت یعني ممیز به مضاف وي او تمیز به مضاف الیه وي او مضاف الیه مجرور وي گویا داد واړو تمیزونو په مابین کې فرق دې په دوه وجهونو سره یو د وجه داده چې مذکوره تمیز کثرت الاستعمال دې او دا تمیز قلیل الاستعمال دې او دویمه وجه د اعراب ده چې ذکرشوه . دغیرمقدار د پاره مثال لکه هذا خاتم حدیداً . هذا مبتدا ، خاتم ممیز حدیداً یې تمیز ممیز سره د تمیز نه خبر دپاره دمبتدا . پس خاتمٌ غیرمقدار دې په معنی گوتې ( انگوټی ) د حدید نه قبل به خاتمٌ ابهام وو یعني گوتې خود هرڅه نه جوړیدې شي مثلاً د سرو د یا د سپینو د یا د زیرو د نو حدیداً ور له تمیز واقع شو چې د اُسپنې جوړه ده دغه شان دامثال هم دې هذا سوارٌ ذهباً ترکیب علی هذا القیاس سوار بنگرې ته وایي جمع یې أساورُ ده . پس زه کوم داخبره چې کله به دې دواړو مثالونو کې اضافت راشي نو تمیز به مجرور بنابراضافت شي لکه مثلاً هذا خاتمُ حدیدٍ یا هذا سوارُ ذهبٍ پس ترکیب به یې مضاف مضاف الیه سره کیږي پس . ددې د مجرور کیدو د اکثریت وجه داده چې مقصد په کې حصلیږي سره د تخفیف نه یعني په وخت د اضافت کې به تنوین حذف شي او مقصد د ابهام به هم حاصل شي سره د تخفیف نه ځکه مصنفؒ وفیه الخفض اکثر ذکرکړیدې .

وقدیقع بعدالجملة لرفع الابهام عن نسبتها نحوطاب زید نفساً اوعلماً اواباً : دامسئله ده چې کله کله تمیز بعد د جملې نه هم واقع کیږي یعني په جمله کې چې کوم نسبت شوي دې د خبرنه مبتدا ته

نو په دغه نسبت کې به ابهام وي پس تمیزبه ددغه ابهام دازالې دپاره ذکر کیږي او دیته عن الجمله وایي لکه دا دي دپاره مثال طاب زیدٌ. طاب فعل ماضی ده زید یې فاعل دی فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه پس پدي کې ابهام دي پدي شان سره چې دطاب نسبت زید ته شوي دي نو په نسبت کې ابهام دي چې زید خه دي نو دا پته نه لګي چې صحت یې خه دي که په علم کې خه دي که په ملستوب کې خه دي پس نفساً تمیز دابهام درفعې دپاره ذکر شو چې زید د نفس په اعتبار سره خه دي علماً او اباً هم تمیزین دي.

## المثنٰی

**فَصْلٌ: اَلْمُسْتَثْنٰی لَفْظٌ یُذْکَرُ بَعْدَ اِلَّا وَاَخَوَاتِهَا لِیُعْلَمَ اَنَّهٗ لَا یُنْسَبُ اِلَیْهِ مَا نُسِبَ اِلٰی مَا قَبْلَهَا وَهُوَ عَلٰی قِسْمَیْنِ مُتَّصِلٌ وَهُوَ مَا اُخْرِجَ عَنْ مُتَعَدِّدٍ بِاِلَّا وَاَخَوَاتِهَا نَحْوُ جَاءَنِی الْقَوْمُ اِلَّا زَیْدًا اَوْ مُنْقَطِعٌ وَهُوَ الْمَذْکُوْرُ بَعْدَ اِلَّا وَاَخَوَاتِهَا غَیْرُ مُخْرَجٍ عَنْ مُتَعَدِّدٍ لِعَدَمِ دُخُوْلِهٖ فِی الْمُسْتَثْنٰی مِنْهُ نَحْوُ جَاءَنِی الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا:**

**ترجمه** مستثنی هغه لفظ ده چه ذکر کیږي پس د الا او اخواتو ددی نه د دپاره چه معلومه شي چه د طرف ته منسوب نه دی هغه اشیاء چه کوم ما قبل ددی نه منسوب وی او دا په دوه قسمه ده اول متصل او متصل هغه مستثنی ده چه کوم د متعدد نه خارج کړي شوی وی چه کوم د الا او اخواتو د دي نه پس مذکور وی مګر د متعدد نه خرج نه وی سه مستثنی منه کښ د نه داخلیدلو د وجه نه لکه جاءني القوم الاحمارًا.

**تشریح** اتم قسم دمرفوعاتو نه مستثنی ده دا استثنا نه ماخوذ دي په لغت کې معنی نه وایي او په اصطلاح کې مستثنی هغه لفظ دي چې ذکر کیږي شي پس دحروفو استثنائیو نه ددي دپاره چې معلومه شي داخبره چې دي لفظ ته منسوب نه دي هغه حکم چې کوم حکم منسوب دي ماقبل ته او ماقبل ته مستثنی منه وایي. دمعنی لغوي او اصطلاحي په مابین کې مناسبت دادی چې کوم دمستثنی منه دپاره ثابت وي هغه حکم به دمستثنی نه منع وي پس کچري حکم دمستثنی منه دپاره په طور دثبوت سره وي نو دغه حکم به دمستثنی دپاره په طور دمنفي سره وي او چې کوم حکم دمستثنی منه دپاره په طور دمنفي سره دغه حکم به دمستثنی دپاره په طور دثبوت سره وي لکه امثله ددواړو صورتونو دپاره بالوضاحت ذکر کوم لکه جاءني القوم الازیداً اهدي کې قوم ته حکم درائلو ثابت دي او بعد الاچې مستثنی زید دي دغه حکم د راتلو دزیدنه

منفي دي دويم مثال لکه ماجاءني القوم الازيداً دقوم نه حکم منفي دي اودزيد دپاره ثابت دي خلاصه داشوه کچرې حکم دمستثنى منه اجاباًوي نوحکم دمستثنى به سلباًوي اودويم صورت به عکس ددې دتعريف نه بعد دمستثنى تقسيم کوي چې المستثنى علي قسمين (۱) مستثنى متصله (۲) مستثنى منفصله يامنقطعه وجه دهريو داده چې دا مستثنى به خالي نوي يابه مستثنى به مستثنى منه کې داخله نوي پدې شان سره چې په حروفوا ستثنائيه سره دهغې اخراج شوي وي يابه مستثنى په مستثنى منه کې داخله وي نوالبته هغې به ذکروي بعدد الا واخوات نه دپاره دخروج (وحکمهٔ اجباًاوسلباً) يادخول اوبيا برابره خبره ده که مستثنى دجنس دمستثنى منه نه وي اوکه نوي لکه مثال په طورجاءني القوم الازيداًدامثال د اول قسم دپاره دي يعني زيدالانه مخکې په قوم کې داخل وومګربعد الامستثنى شو اوداخبره ضروري نه ده چې زيد دقوم دجنس نه خامخا اوګرزي بلکه داهم کيدي شي چې زيدبل کلي وي اوپه دغه قوم کې اسم دزيدنه وي پس داصورت ددويم قسم مستثنى دپاره هم کيدي شي ياجاءني القوم الاحماراً پدې مثال کې حمارپه قوم کې داخل هم نه دي اودقوم دجنس نه هم نه دي خلاصه فرق په دواړو کې دادي .په مستثنى متصله کې دخول دمستثنى په مستثنى منه کې يقيني وي اوپه مستثنى منفصله کې دخول دمستثنى په مستثنى منه کې غيريقيني مثلاًزيدپه دخول کې يقيني دي اوحمارغيريقيني دي.

## اعراب دمثنى

وَاعْلَمْ اَنَّ اِعْرَابَ الْمُسْتَثْنٰى عَلٰى اَرْبَعَةِ اَقْسَامٍ فَاِنْ كَانَ مُتَّصِلًا وَقَعَ بَعْدَ اِلَّا فِيْ كَلَامٍ مُوْجَبٍ اَوْمُنْقَطِعًا كَمَا مَرَّ اَوْمُقَدَّمًا عَلَى الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ نَحْوُمَا جَاءَنِيْ اِلَّازَيْدًا اَحَدٌ اَوْكَانَ بَعْدَ خَلَا وَعَدَا عِنْدَ الْاَكْثَرِ وَبَعْدَ مَا خَلَا وَمَا عَدَا وَلَيْسَ وَلَايَكُوْنُ نَحْوُ جَاءَنِي الْقَوْمُ خَلَازَيْدًا الخ كَانَ مَنْصُوْبًا:

**ترجمه** پوهې شه چه اعراب د مستثنى په څلور قسمه ده کچرته مستثنى متصل وي دا به واقع کيږي پس د الا نه په کلام موجب کښې يا به منقطع وي لکه تيرشو يا به مقدم وي په مستثنى منه باندې لکه (مَاجَاءَنِيْ اِلَّازَيْدًا اَحَدٌ) او د اکثرو په نزد دا به واقع کيږي پس د (خَلَاوَعَدَا) او (مَاخَلَاوَمَاعَدَا) او لَيْسَ او لَايَكُوْنُ لکه (جَاءَنِي الْقَوْمُ خَلَازَيْدًا) الخ دا به منصوب وي

**تشريح** پدې وعلم کې مصنفؒ دمستثنى اعراب ذکرکوي پدې واعلم کې داعراب په بناء سره دمستثنى څلورنوعي دي اجمالاً اوبياپه هره نوعه کې نورانسام دي پس په اوله نوعه کې شپږ

اقسام دمستثنی منصوب دي اوله نوعه اول پېژندل ضروري دي دكلام موجب اوغيرموجب پس كلام موجب ديته وايي چې نفي نهي او استفهام وغيره په كې نه وي راغلي او كلام غيرموجب ديته وايي چې دغه په كې راغلي وي .

(۱) هغه مستثنی چې متصله وي او واقع وي بعد دالا نه فقط په كلام موجب كې پس داقسم مستثنی به منصوبه وي

(۲) هغه مستثنی چې منفصله وي او واقع وي بعد دالا نه فقط په كلام موجب كې پس داقسم مستثنی به منصوبه وي

(۳) هغه مستثنی چې مقدمه وي په مستثنی منه باندي واقع وي پس دالا نه فقط په كلام موجب كې پس داقسم مستثنی به منصوبه وي

(۴) هغه مستثنی چې واقع وي بعد دخلا او عدا نه به كلام موجب كې پس داقسم به منصوبه وي داكثرونحاتو په مذهب

(۵) هغه مستثنی چې واقع وي بعد د ماخلا ، ماعدا ، ليس او لايكونُ په كلام موجب كې پس داقسم به منصوب وي . دا دمستثنی اوله نوعه ده په اعتبار داعراب سره او داشپږصورتونه دي پس اولني دري اقسام ځكه منصوب دي چې په دغه دريوصورتونوكې مستثنی مشابه ده دمفعول به سره اى منصوبٌ بنابرتشبيه بالمفعول به څلورم صورت چې بعد دخلا او عدا واقع وي دابه منصوبه وي بنابرمفعوليت داكثرو په نزد باندې ځكه چې په خلا او عدا باندې مامصدريه داخليږي او مامصدريه داخليږي په افعالو د فعل ماضي باندې نوخلا او عدا هم افعال دي او ددې مابعد فاعل دي او مستثنی ورله مفعول به ده او مفعول به منصوب وي بنابرمفعوليت په پنځم صورت كې به مستثنی منصوب وي دټولونحويانو په نزد يك .

(۲) په شپږم صورت كې په مستثنی منصوبه وي بنابرخبريت داځكه چې لس اولايكون افعال ناقصه دي او ضمائرېدي كښې اسماء دي پس دغه اسماء به سره دخپلو افعالونه مبتدا او گرزي او مستثنی به خبرشي او خبر منصوب وي بنابرخبريت .

وَإِنْ كَانَ بَعْدَ اِلَّافِيْ كَلَامٍ غَيْرِ مُوْجَبٍ وَهُوَ كُلُّ كَلَامٍ يَكُوْنُ فِيْهِ نَفْيٌ وَ نَهْيٌ وَاسْتِفْهَامٌ وَالْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ مَذْكُوْرٌ يَجُوْزُ فِيْهِ الْوَجْهَانِ اَلنَّصْبُ وَالْبَدَلُ عَمَّا قَبْلَهَا نَحْوُ مَا جَاءَنِيْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا وَاِلَّا زَيْدٌ :

**ترجمه** . كچرته مستثنی پس د الا نه وي په كلام غيرموجب كښې (دا هو هغه كلام دي چه

پدي کښې نفي نهي استفهام وي) او مستثنی منه مذکور وي نو جائز دي پدي کښې دوه وجهي پدي کښې نصب اوبل د الا نه ما قبل بدل لکه (مَاجَاءَنِي اَحَدٌاِلَّازَيْدٌ وَاِلَّازَيْداً)

**تشریح** داد اعراب دمستثنی دویمه نوعه ده. چې کله مستثنی واقع وي پس دالانه فقط او مستثنی منه مذکور وي نو پدي صورت دوه وجهان جائزدي یو نصب بنابر استثنا ثبت بتشبیه باالمفعول به بله وجه چې مستثنی بدل واقع وي د مستثنی منه نه پس مرفوعه به وي لکه مثال ماجاءنی الازیداً اوالازیدٌ هم جائزدي بنابر بدلیت.

وَاِنْ كَانَ مُفَرَّغًابِاَنْ يَكُوْنَ بَعْدَاِلَّافِيْ كَلَامٍ غَيْرِمُوْجَبٍ وَالْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ غَيْرُمَذْكُوْرٍ كَانَ اِعْرَابُهٗ بِحَسْبِ الْعَوَامِلِ تَقُوْلُ مَاجَاءَنِيْ اِلَّازَيْدٌ وَمَارَاَيْتُ اِلَّازَيْدًا وَمَامَرَرْتُ اِلَّابِزَيْدٍ.

**ترجمه** کچرته مستثنی مفرغ وي د الا نه پس به کلام غیر موجب کښې وي او مستثنی منه مذکور نه وي نو د دي اعراب به د عواملو مطابق وي لکه نه اووائي (مَاجَاءَنِيْ اِلَّازَيْدٌ وَمَارَاَيْتُ اِلَّازَيْدًا وَمَامَرَرْتُ اِلَّابِزَيْدٍ).

**تشریح** دا د اعراب دمستثنی دریمه نوعه ده. چې کله مستثنی واقع وي پس دالانه فقط په کلام غیر موجب کې چې دغه مستثنی مفرغه وي نو په دی صورت کې به اعراب د مستثنی حسب عوامل وي لکه ماجاءنی الازیدٌ ومارایت الازیداً ومررت الابزید مستثنی مفرغه دېته وایي چې مستثنی منه محذوفه وي او عامل دعمل د مستثنی منه نه فارغ وي مستثنی ته پس کچري عامل رافعه وي نو مستثنی به مرفوعه او که عامل ناصب وي نو مستثنی به منصوبه وي او که عامل جار وي نو مستثنی به مجروره وي. یعني دعواملو مطابق به پري اعراب راځي.

وَاِنْ كَانَ بَعْدَغَيْرٍوَسِوٰى وَسَوَاءٍوَحَاشَاعِنْدَالْاَكْثَرِكَانَ مَجْرُوْرًانَحْوُجَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرَزَيْدٍ وَسِوٰى زَيْدٍوَسَوَاءَزَيْدٍوَحَاشَازَيْدٍ.

**ترجمه** کچرته مستثنی بغیر دسوی سواء او حاشا نه واقع شي نو هغه به مجرور وي لکه (جَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرَزَيْدٍ او سِوٰى زَيْدٍوَسَوَاءَزَيْدٍوَحَاشَازَيْدٍ)

**تشریح** څلورم قسم د مستثنی داعراب دادي چې کله مستثنی واقع وي، پس دغیرٌ، سواي، سوی او حاشا نه دابه مجروره وي عند الاکثر. او وجه یې داده چې داحروف مضاف کیږي مابعد نه چې مستثنی ده پس مستثنی منه به ورله مضاف الیه شي او کله مضاف الیه مجرور عندالاکثر نه مراد دادي چې غیر. سوی. سواء او حاشا حروف جاره دي او بعض وایي

چې حاشابعد تري مستثنی وي دابه منصوبه وي خکه چې دوی حاشاد خلااوعداد قبیلې نه گرزولي دي اوداافعال دي۔

وَاعْلَمْ اَنَّ اِعْرَابَ غَیْرٍ کَاِعْرَابِ الْمُسْتَثْنٰی بِاِلَّا تَقُوْلُ جَاءَنِیْ الْقَوْمُ غَیْرَزَیْدٍ وَغَیْرَ حِمَارٍ وَمَاجَاءَنِیْ غَیْرَزَیْدٍ اِنِ الْقَوْمُ وَمَاجَاءَنِیْ اَحَدٌ غَیْرُزَیْدٍ وَغَیْرَزَیْدٍ وَمَاجَاءَنِیْ غَیْرُزَیْدٍ وَمَارَأَیْتُ غَیْرَزَیْدٍ وَمَامَرَرْتُ بِغَیْرِزَیْدٍ:

**ترجمه** پوئی شه چه اعراب د غیر په شان د اعراب د الا دي لکه ته اووائی :جَاءَنِیْ الْقَوْمُ غَیْرَزَیْدٍ وَغَیْرَحِمَارٍ وَمَاجَاءَنِیْ غَیْرَزَیْدٍ اِنِ الْقَوْمُ وَمَاجَاءَنِیْ اَحَدٌ غَیْرُزَیْدٍ وَغَیْرَزَیْدٍ وَمَاجَاءَنِیْ غَیْرُزَیْدٍ وَمَا رَأَیْتُ غَیْرَزَیْدٍ وَمَامَرَرْتُ بِغَیْرِزَیْدٍ.

**تشریح** پدي واعلم کې مصنفؒ دغیر اعراب ذکرکوي خکه چې لفظ دغیراسم دي یعني اعراب پرې ظاهریږي اوعلاوه ازین باندي اعراب نه خکاره کیږي په مخکینی واعلم کي دغیرد مستثنی اعراب ذکرشو اواوس پخپله اعراب ذکرکیږي پس چې مستثنی بعدالانه واقع وي برابره خبره ده که متصله وي اوکه منقطعه وي اوکه صورت دتقدیم دمستثنی په مستثنی منه باندي وي په کلام موجب کي نوهغه مستثنی به منصوبه وي پس غیربه هم دغه شان منصوب وي اوکچري مستثنی بعدالاپه کلام غیرموجب کي واقع وي نو دهغي چې خنگه اعراب وي هغه به دغیرهم وي، (ای وجهان) کچري مستثنی مفرغه وي نودغیراعراب به هم علی حسب العوامل وي خلاصه داشوه چې خنگه دمستثنی داعرابوخلورصورتونه دي هم دغه شان دغیرداعرابوخلوراقسام جوړیږي اوالفظ دغیربه سره دخپل مضاف الیه نه مستثنی گرزي۔

وَاعْلَمْ اَنَّ لَفْظَةَ غَیْرٍ مَوْضُوْعَةٌ لِلصِّفَةِ وَقَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلْاِسْتِثْنَاءِ کَمَا اَنَّ لَفْظَةَ اِلَّا مَوْضُوْعَةٌ لِلْاِسْتِثْنَاءِ وَقَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلصِّفَةِ کَمَا فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی لَوْکَانَ فِیْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا اَیْ غَیْرُاللّٰهِ وَکَذٰلِکَ قَوْلُکَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ:

**ترجمه** پوئي شه چه لفظ د غیر صفت لپاره وضع کړی شوی ده او کله استثناء لپاره هم استعمالیږي. حرنگه چه لفظ د الا په اصل کښ استثناء لپاره وضع کړي شوي ده هم دغه رنگي کله صفت لپاره هم استعمالیږي لکه د الله تعالی دا قول لَوْکَانَ فِیْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا یعنی غیرالله هم دغه رنگي ستا دا قول لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، هم دی

**تشریح** پدي واعلم کي مصنفؒ دغیر دوه معنی بیانوي اودغه شان دالاهم دوه معنی

ذکرکوي يوه معنى اصلي . لغوي . حقيقي ياوضعي اوبله معنى استعمالي . معنى وضعي دغير غيروضع شوي دي دپاره دصفتيت يعني دي به دماقبل دپاره صفت واقع كيږي ځكه چې غير دلالت كوي په ذات مبهم باندي داسې ذات مبهم چې ملحوظ وي سره دبعضو صفاتونه معنى استعمالي لفظ دغير استعماليږي دپاره داستثنائيت داپه هغه صورت كې چې كله دالاخپله معنى متعذره شي اوغير داستثنا دپاره ځكه استعماليږي چې غير دمغائرت نه ماخوذ ده پس دي حكم دمستثنى منه مغائر كوي يعني دالاسره بې مناسبت دي معنى وضعي دالا . الاوضع شوي ده دپاره داستثنائيت يعني داالابه په حقيقت كې دمستثنى حكم دمستثنى منه نه منع كوي معنى استعمالي دالا . دالااستعمالي معنى داده چې كله كله الاپه معنى دغيرصفتي سره مستعمليږي دابه هغه صورت كې چې كله دالاخپله معنى متعذره شي پس زده كړه داخبره چې دالاخپله معنى به به هغه صورت كې متعذره وي چې كله الاواقع شي پس دجمعي منكري غيرمحصوري نه ( يعني چې هغه جمع نكره وي اوافرادي محدودنوي ) پس الابه په معنى دغيرصفتي سره ګرزي لكه مثال وضعي دالا .

جاءني الرجال الازيد (دالاخپله معنى داستثنائيت متعذره ده ۱۲) رجال جمع نكره ده اوغيرمحصوره ده پس داالاپه معنى دغيرصفتي سره دي اى غيرزيدا چې غيرپه معنى دالاسره وي لكه جاءني القوم غيرزيد . القوم جمع ده اومعرفه ده اومحصوره ده پس په دي صورت كې دغيرخپله صفتي معنى متعذره ده په دي شان سره چې القوم دزيددپاره موصوف نشي جوړيدي ځكه چې القوم معرفه ده اوغيرنكره ده نودموصوف اوصفت په مابين كې مطابقت نه جوړيږي اوداغيردومره مبهم دي كچري اضافت يې معرفي ته اوشي يعني زيدته نوبياهم نه معرفه كيږي پس دغيرخپله معنى متعذره شوه اوپه معنى دالاسره ده اى الازيدا خلاصه داده چې دغيرخپله معنى وضعي صفتيت دي اودالاخپله معنى استثنائيت دي نوكله غيرپه معنى دالاسره مستعمليږي اوكله الاپه معنى دغيرصفتي سره مستعمليږي مثال كقوله تعالى لوكان فيهما الهة الا الله لفسدتا اى غيرالله په دي مثال كې دالاخپله معنى متعذره ده اودتعذردپاره وجه داده چې دالانه مخكې جمع منكره غيرمحصوره ده چې الهة ده اوكچري الاپه معنى داستثناء سره شي نومستثنى متصله اومستثنى منقطعه دواړه غيرصحيح دي ځكه چې الهة جمع منكره غيرمحصوره ده نوپس داهم ممكنه ده چې الله په الهه كې داخل نوي اوداهم ممكنه ده چې خارج هم نوي دالهة ادواړه احتمالات نه صحيح كيږي . پس معلومه شوه چې الاپه معنى دغيرسره ده اودغه شان لااله الاالله

لانفي ده او اله ډیرومعبودانو ته وایي یعني بوتانو وغیره ته و پلی کیږي او داجمع نکره غیر محصوره ده پس دلته هم دواړه احتمالین غیر صحیح دي پس الا په معنی دغیر سره دي ای غیرالله.

## نهم قسم خبرکان

فَصْلٌ: خَبَرُ كَانَ وَأَخَوَاتِهَا هُوَ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِهَا نَحْوُ كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا وَحُكْمُهُ كَحُكْمِ خَبَرِ الْمُبْتَدَاءِ إِلَّا أَنَّهُ يَجُوْزُ تَقْدِيْمُهُ عَلَى أَسْمَائِهَا مَعَ كَوْنِهِ مَعْرِفَةً بِخِلَافِ خَبَرِ الْمُبْتَدَاءِ نَحْوُ كَانَ الْقَائِمُ زَيْدٌ:

**ترجمه**: دا فصل په بیان د کان او اخواتو د دي کښی دی خبرهغه مسند ده چه داخلیږی پس له کان اخواتو ددی نه لکه (کَانَ زَيْدٌ قَائِمًا) او حکم د دی پشان د حکم د مبتدا د خبر دی جائز ده خبر مقدم کول په آسماء د کان او اخواتو باندی، باوجود ددی نه چه دا به معرفه وی بخلاف: مبتدا د خبر نه لکه (كَانَ الْقَائِمُ زَيْدٌ)

**تشریح** نهم قسم دمنصوباتو نه خبردافعال ناقصوده داهغه مسندالیه دي چي داخلیږي پس ددخول دافعال ناقصونه لکه کان زید قائما. قائما خبردي اومنصوب دي. اثرمرتبه دخبردافعال ناقصودادي چي کوم احکام دخبرالمبتداء دي هم هغه احکام دده دپاره دي البته دده تقدیم جائزدي په خپلو اسماؤباندي بېدي شرط سره چي په حال دمعرفی کي وي لکه کان القائم زید. په خلاف دخبرالمبتداء، ځکه چي خبرد مبتدا لایجوزتقدیمه علی اسمائهابدون الظرف. یعني خبرد مبتدا په هغه صورت کښي مقدم وي چي کله ظرف واقع شي لکه فی الدارزید. اوخبرد افعالو ناقصو دپاره دا شرط دی چي معرفه وي لکه کان القائم زید ددي دپاره په خلاف دخبرالمبتداء، حکم په صفحه ۷۸ دي

## لسم قسم د اسم انّ

فصل: إِسْمُ إِنَّ وَأَخَوَاتِهَا هُوَ الْمُسْنَدُ إِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا نَحْوُ إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ.

**ترجمه**: لسم قسم دمنصوباتونه اسم د حروف مشبه (حروف مشبه بالفعل ان بان کانّ لیت لکن لعل ناصب اسمند ورافع درخبرخود ماولا ۱۰) بالفعل دي او د هغه مسند الیه دي چي واقع وي پس ددخول دحروف مشبه بالفعل نه لکه (إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ) او دتقدیم او دتاخیر قواعد په صفحه ۷۹ باندي استقرفی المطلوب الخیر.

# یولسم قسم المنصوب

فَصْلٌ: اَلْمَنْصُوْبُ بِلَا الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ هُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا يَلِيْهَا نَكِرَةً مُضَافَةً نَحْوُ لَاغُلَامَ رَجُلٍ فِي الدَّارِ اَوْ مُشَابِهًا لَهَا نَحْوُ لَا عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا فِي الْكِيْسِ:

**ترجمه**: دا فصل ده په بیان د هغه اسم کښې چه منصوب کړې شوې وی په واسطې دلا، نفی جنس سره او دا مسند الیه وی ورسته دخول دلا، نفی جنس نه. بداسې حال کښې چه دې سره به بو داسې نکره یو خائې شوې وی چه هغه مضاف وی لکه، لَاغُلَامَ رَجُلٍ فِي الدَّارِ یا شبه مضاف وی لکه، لَا عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا فِي الْكِيْسِ،

**تشریح** یولسم قسم دمنصوباتو نه اسم دلالنفي الجنس ده داهغه اسم دي چي متصل دلاسره وي ( احترازراغی دمنفصل نه ) اونکره مضافه وي یاشبه مضافه وي پس داشروط ثلاثه دي چي کله داپه اسم دلالنفي الجنس کي متنفی شي نومنصوب به وي یعني مطلقامنصوب نه دي بلکه په بعضواحوالوکي به مبنی برفتح یاماقبل مکسورسره وي اوکله به مرفوع وي اودااعتراض ددفعي دپاره وجه هم کیدي شي کچري تعبیربي اسم لالنفي الجنس سره کړی وي نوبیابه دامعلومیده چي اسم دلالنفي الجنس به په تمامواحوالوکي منصوب وي نومصنفؒ خکه تعبیربه المنصوب سره کړیدي زده کړه داخبره چي په لالنفي الجنس اوپه لابمعنی لیس کي فرق دادي چي لالنفي الجنس راخي دپاره دنفي دجنس یادماهیت دشي . یعني دتمام جنس نفي به کرزي . اولابمعنی دپاره دیوفرددغه جنس نه یادماهیت یعني دجنس نه به یوفردمنفي کړي فرق دامثال کي واضح دي لکه لَارَجُلَ فِي الدَّار کچري لالنفي الجنس شي نومعنی به یې داشي حې هیڅ یوکس نشته په کورکي یعني دتمام جنس نفي ده . کچري لابمعنی لیس شي نومعنی به یې داشي چي یوفردیه کورکي نشته. دیلیهامعنی داده چي حال کون ددغه اسم کي چي متصل وي دلالنفي الجنس پدي سره احترازراغی دمنفصل نه نکرةً . به حال کون ددغه اسم کي چي نکره وي پدي سره احترازراغی دمعرفی نه . مضافةً اوشبه مضافةً پدي سره احترازراغی دهغه مضاف نه چي معرفه وي یانکره وي لیکن منفصله وي یانکره وي لیکن مضافه نوي . مثال دمتصلي نکري مضافی دادي لاغلام رجل فی الدار . غلام اسم دلالنفي الجنس دي اوتعریف پري صادق دي . مثال دشبه مضاف دپاره . لاعشرین درهماً في الکیس . بنوء ، عشرین شبه مضاف دي

او منصوب دي په یا یې ما قبل کسرې سره

فَاِنْ كَانَ بَعْدَ لَا نَكِرَةً مُفْرَدَةً تُبْنٰى عَلَى الْفَتْحِ نَحْوُ لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ:

**ترجمه** کچرته د لانه پس نکره مفرده وی نو دا به مبنی په فتحې سره وی لکه (لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ)

**تشریح** پدي عبارت کي د مصنفؒ غرض دادي چي دقیوداتو تلاثو مذکوروفوائد بیانی اول انتفاء دآخري قید بیاني چي مضاف وي یاشبه مضاف وي او دویم نمبر انتفاء دنکري بیاني اودریم نمبر انتفاء دېلیها بیانوي خلاصه داده چي مصنف به عکس دمذکوروقیوداتوفوائد بیاني اوله فائده دشرط ثالث ده که چیری اسم دلالنفي الجنس مضاف اوشبه مضاف نوي اونکره مفرده دي نو پدي صورت کي مبني برفتح وي څکه چي انتفاء دشرط ثالث راغلی ده. لکه لارجل فی الدارپه رجل کي اګرچي اولنی دواړه شرطونه موجوددي یعني نکره ده اومتصله ده لیکن شرط ثالث په کي نشته اوداڅکه مبني دي چي دی متضمن دي دمن استغراقیه دپاره اومن استغراقیه مبنی لاصل ده یعني حرف اوجمله حروف مبنی الاصل دی پس تقدیري دادي لامن رجل فی الداردادتبنی علی الفتح دپاره دلیل دي

وَاِنْ كَانَ مَعْرِفَةً اَوْ نَكِرَةً مَفْصُوْلًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ لَا كَانَ مَرْفُوْعًا وَيَجِبُ تَكْرِيْرُ لَا مَعَ اِسْمٍ اٰخَرَ تَقُوْلُ لَا زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَلَا عَمْرٌو وَلَا فِيْهَا رَجُلٌ وَلَا امْرَأَةٌ:

**ترجمه** کچرته معرفي او نکري په مینځ کښ څه شی راغلي وی نو دا معرفه اونکره به مرفوع وی. او که چیرته د نه پس بل اسم راغلي وی نو پدی بندي به شي ور عطف کري او دي سره د لا، نفی جنس مکرر کول واجب دی لکه (لَا زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَلَا عَمْرٌو وَلَا فِيْهَا رَجُلٌ وَلَا امْرَأَةٌ)

**تشریح** پدي عبارت کي دبقیه دوه شرطونو دانتفاء بحث دي سره دامثلونه ونه پس که چیری اسم دلالنفي الجنس معرفه وي اوبانکره وي خومتصله نوي نو په دواړوصورتونوکي به اسم دلالنفي الجنس مرفوع وي اوبیالابدي ده تکراردیګردلانه چي راوړی کیږي به پس دااسم دیګرنه پس ددي نه بعدبه اسم دلالنفي جنس مرفوع وي. مثال دشرط ثاني دانتفاء دپاره دادي لازیدٌفی الداروالاعمرٌزیدٌ معرفه ده اګرچي متصله ده اومضاف ده لیکن معرفه ده پس زیدٌ مرفوع دي سره دلادیګرنه چي واقع دي بعددا سم دیګرنه مخکي اوعمروهم مرفوع دي مثال دشرط اول دانتفاء دپاره ولافیهارجلٌ ولاامرأةٌرجل اګر چي نکره ده لیکن متصله نه ده پس مرفوع دي

وَيَجُوْزُ فِيْ مِثْلِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ خَمْسَةُ اَوْجُهٍ فَتْحُهُمَا وَرَفْعُهُمَا وَفَتْحُ الْاَوَّلِ وَنَصْبُ

الثَّانِيْ وَفَتْحُ الْاَوَّلِ وَرَفْعُ الثَّانِيْ وَرَفْعُ الْاَوَّلِ وَفَتْحُ الثَّانِيْ۔

**ترجمه** (لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّابِاللهِ) دي شان مثالونو كښې پنځه وجه جائزي دي (۱) دواړه فتحې سره ونيل (۲) دواړه رفع سره ونيل (۳) اول فتحې سره دويم نصب سره ونيل (۴) اول فتحې سره دويم رفع سره وسل (۵) اول رفع دويم فتحې سره ونيل

(۱) لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّابِاللهِ په اول صورت كي دواړه مبني برفتح دي۔

(۲) لَاحَوْلٌ وَلَاقُوَّةٌ اِلَّابِاللهِ په دويم صورت كي دواړه مرفوع دي بنابرابتدائيت۔

(۳) لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةً اِلَّابِاللهِ په دريم صورت كي حولَ مبني برفتح دي او قوةً منصوب دي

(۴) لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةٌ اِلَّابِاللهِ په خلورم صورت كي حولَ مبني برفتح دي او قوةٌ مرفوع دي۔

(۵) لَاحَوْلٌ وَلَاقُوَّةَ اِلَّابِاللهِ په پنځم صورت كي حولٌ مرفوع دي او قوةَ مبني برفتح دي۔

**تشريح** پدي كي په اعتبار داعراب سره پنځه وجوهات جائزدي (۱) **اوله وجه** داده چي دواړه مبني برفتح شي داپه دي اعتبار سره چي حول نكره مفرده ده او قوة هم نكره مفرده ده او واو عاطفه دي پس په دواړو صورتونو كي به اسم او گرزي دخبر مقدر دپاره اي لاحولَ ولاقوةَ موجودان الابالله پس دواړه مبني برفتح دي۔ (۲) **دويمه وجه** داده چي دواړه مرفوع أوويلى شي داپه دي اعتبار سره چي په دواړو ځايونو كي لاملغاة العمل وي يعني عمل به نكوي او نفي دتاكيد دپاره به مستعمل وي پس حولٌ او قوةٌ به مرفوع شي بنا. برابتدائيت۔ او خبربي مقدم دي على هذا القياس (۳) **دريمه وجه** داده چي اول به مبني برفتح وي او قوةً به منصوب وي پدي اعتبار سره چي حول نكره مفرده ده او لالنفي الجنس دي نو دابه مبني برفتح وي او قوةً ځكه منصوب دي چي لاملغاة العمل دي او دتاكيد نفي دپاره دي او قوةً عطف دي په لفظ دحولَ بندي يعني حولَ مفتوح دي پس قوةً منصوب دي په دغه اعتبار سره

**فوټ** دحول دوه مرتبې دي يو محل دحول دي او بل لفظ دحول پس محل دحول ابتدائيت دي او مبتدا مرفوعه وي (۴) **خلورمه وجه** اول حولَ مبني برفتح دي او قوةٌ مرفوع دي بنابرابتدائيت پدي اعتبار سره چي لام ثاني ملغاة العمل دي دپاره دنفي دتاكيد او قوةٌ عطف دي په محل دحول باندي او محل دحول ابتدائيت دي په رفعي سره نو قوةٌ هم مرفوع اوگرزيد (۵) **پنځمه وجه** داده چي حولٌ مرفوع دي او قوةَ مبني برفتح دي پدي اعتبار سره چي لا اول به مشابه دليْسَ سره شي نو حولٌ به اسم دلابمعنى ليسَ مرفوع شي او په قوةَ كي به

لالنفي الجنس شي اونکره مفرده ده نوځکه مبني برفتح شو. رده کړه داخبره چي کله لاقوة په لاحول باندي عطف شي نوپيدي صورت کي خبرمقدرراخي پس دقوة نه اى لاحول قوة موجودان الابالله اوکه چيري دواړه مستقلي جملي واخستي شي نوپدي صورت کي به دحول دپاره ځان له خبرمقدم راخي اودقوة دپاره به ځان له خبرمقدم راخي لکه لاحول موجودٌ ولاقوة موجودٌ الابالله ويجوزفي مثل لاحول الخ. ددي عبارت مطلب دادي چي داپنځه واړه توجيهات په هرهغه ځاي کي جائزدي چي هغه په مثل دلاحول وي اومثل دلاحول نه مراد هر هغه ترکيب دي چي هلته لامکررراغلی وي سره دتکرارداسم دیگرنه په طريقي دعطف سره.

**نوټ:** چي حولٌ اوقوةٌ دواړه مرفوع شي نوبدي صورت کي به لاملغاء العمل وي يعني عمل به نکوي اودنفي دتاکيد دپاره به راغلي وي ددي دپاره دافرينه ده چي سائل تسوس کوي نومطلب بي داوي چي حولٌ ولاقوةٌالابالله اى لاحولَ عن المعصيةِ ولاقوةَ على الطاعةِ الابالله يعني نشته اوريدل دګناه نه اوقوت په اطاعت نشته مګر په الله سره س دابي معنی ده اوپه لاملغاء العمل باندي.

**وَقَدْ يُحْذَفُ اِسْمُ لَا لِقَرِيْنَةٍ نَحْوُ لَا عَلَيْكَ اَىْ لَا بَأْسَ عَلَيْكَ**

**ترجمه.** او کله به اسم د لا قريني دوجه نه حذف کيږي لکه (لَاعَلَيْكَ اَىْ لَابَأْسَ عَلَيْكَ)

**تشريح.** په دي عبارت کي مصنف يو قاعده ذکرکوي حي کله قرينه موجوده وي نوهلته حذف داسم دلاجائزدی لکه مثلاً لَاعَلَيْكَ اى لاباس عليك دلته قرينه داده چي لاهم حرف دی اوعلی هم حرف دي اوحرف په بل حرف نشي داخليدي پس معلومه شوه چي اسم بي محذوف دی يعني لابأسَ عليك هيڅ باك نشته په تاباندي اوداتسلي الفاظ دی يعني بل ته تسلي ورکول چي مه خفه کيږه.

## دولسم قسم خبرماولاالمشبهتين

**فصل: خَبَرُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ هُوَ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِهِمَا نَحْوُ مَا زَيْدٌ قَائِمًا وَلَا رَجُلٌ حَاضِرًا:**

**ترجمه.** خبر د (مَاوَلَاالْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ) دا به مسند وي پس د داخليدلو د دي دواړو نه لکه (مَازَيْدٌقَائِمًاوَلَارَجُلٌ حَاضِرًا)

**تشريح.** ليس هو المسند بعد دخولهما نحو مازيد قائما ولارجل حاضرا. دولسم (آخري) قسم د منصوباتونه خبردماولادي هغه ماولاچي مشابه دي دليس سره يعني ځنګه چي ليسُ دنفي

دپاره مستعملیږي دغه شان ماولادي اوځنګه چې لیس سره مبتدا اوخبرداخلیږي دغه شان ماولادي اوځنګه چې لیس مبتدا ته رفع ورکوي اوخبرخپل ته نصب ورکوي دغه شان ماولاعمل کوي پس ددي نه زده کړه داخبره چې به عمل دماولاکي اختلاف دي په مابین ددوه مذهبونوکي يومذهب داهل حجازينودي اوبل مذهب دبنوتميمودي . اهل حجازين به عمل دماولاقائله دي اوبنوتميم به عمل دماولاقائله نه دي

**مذهب داهل حجازينو** دوی وايي چې ما ولاعمل کولی شي البته دري مواضع داسې دي چې هلته ماولاملغاة العمل ګرزي يعنی عمل به نه شي کولی

وَإِنْ رُفِعَ الْخَبَرُ بَعْدَ إِلَّا نَحْوُ مَا زَيْدٌ إِلَّا قَائِمٌ أَوْ تَقَدَّمَ الْخَبَرُ عَلَى الْإِسْمِ نَحْوُ مَا قَائِمٌ زَيْدٌ أَوْ زِيْدَتْ إِنْ بَعْدَ مَا نَحْوُ إِنْ زَيْدٌ قَائِمٌ بَطَلَ الْعَمَلُ كَمَا رَأَيْتَ فِي الْأَمْثِلَةِ وَهٰذَا لُغَةُ أَهْلِ الْحِجَازِ:

**ترجمه** کچرته خبر پس د الا نه واقع وی لکه ,مَازَيْدٌ إِلَّاقَائِمٌ, يا خبر به په اسم باندي مقدم وی لکه ,مَاقَائِمٌ زَيْدٌ أَوْزِيْدَتْ, يا ما نه پس ان زائده نی راوړی وی. لکه ,ان زَيْدٌ قَائِمٌ, پدي وخت کښی به عمل دما او لا باطل شی لکه څرنګه چه تا به مثالونو کښی اولیدل او دا لغت د اهل حجاز و دي

**تشريح** :پدي عبارت کي مصنف هغه دري مواضع ذکر کوي چې ماولاپه کي ملغاة العمل ګرزي (۱) اوله موضع داده چې خبردماولاواقع شي پس د الا نه لکه مثال مازيد الاقائم .لارجل الاافضل منك لاعمل کولونه فارغ دي يعني عمل يې نه دی کړی (۲) دويمه موضع هغه ده چې خبردماولامقدم شي به اسم دماولاباندی پس په دي صورت کی به ماولاملغاة العمل ګرزی لکه مثال ماقائمٌ زيدٌ اولاافضل منك رجل (۳) دريمه موضع هغه ده چې دماولانه بعد ان زائده راشي لکه مثال ماان زيد قائم ولارجل افضل منك پس په دي دريوصورتونوکي به ماولاملغاة العمل ګرزي اودي نه علاوه به په هره موضع کي ماولاخپل عمل کوی پشان دليس . دماولادملغاة العمل دپاره وجه په مواضعو ثلاثه کي ماولاځکه ملغاة العمل ګرزيدلی دي چې ماولاپه عمل کي دليس سره مشابهت لری اوليس په تمامومواضعوکي په معنی دنفي سره مستعمل دی پس چې کله دماولامعنی دمنفيت لری نوعمل به کوي په خپل معمول کي دوجی دمشابهت دليس سره اوکه چيری دماولامعنی دنفي منقطعه شي نو مشابهت به يې لس سره قطع شي اومعنی دمثبت په کي واقع شي نو پدی صورت کي به ماولادواړه ملغاة العمل ګرزی يعني عمل به نه کوی په مواضعوثلاثوکي سس په اوله موضع کي ماولاځکه ملغاة العمل ګرزيدلی ده چې معنی دنفي په مثبت کي بدله شويده پس دحرف استثناء نه لکه مازيدٌ الاقائم چې نه دي زيد مګرولاړدی پدي

صورت کې قیام دزید دنفي نه مثبت طرف ته راجع شی پس مشابهت یې دلیس سره ختم شي نوعمل یې هم ختم شي به : ویمه موضع کې ماولا خکه ملغاة العمل گرزېدلی ده چې کله خبر دماولا مقدم شي په اسم باندې په دی صورت چونکه ترتیب بدل شي اوماولا په عمل کې ضعیف دي پس دوی عمل نشي کولی مگر به مرتب کې په دریمه موضع کې خکه ملغاة العمل گرزېدلی دي چې ددوی او ددوي دمعمول په مابین کې ان زائده حرف فصل واقع شویدي پدې وجه دما اولا عمل ضعیف شي نو او سه بوری مذهب داهل حجاز وو۔

**اَمَّا بَنُوْ تَمِيْمٍ فَلَا يُعْمِلُوْنَهُمَا اَصْلًا قَالَ الشَّاعِرُ عَنْ لِسَانِ بَنِيْ تَمِيْمٍ شِعْرٌ وَمُهَفْهَفٍ كَالْغُصْنِ قُلْتُ لَهُ انْتَسِبْ فَاَجَابَ مَا قَتْلُ الْمُحِبِّ حَرَامٌ بِرَفْعِ حَرَامٌ:**

**ترجمه** بنو تمیم د دواړو نه بالکل عمل نه ورکوی ما او لا ته. یو شاعر د بنی تمیم نه دا سې ونیلی دی چه و مُهَفْهَفٍ كَالْغُصْنِ قُلْتُ لَهُ انْتَسِبْ فَاَجَابَ مَا قَتْلُ الْمُحِبِّ حَرَامٌ نو پدې شعر کښې ما قتل المحب حرام ذکر دی او دا قتل اسم و دلپاره دما او حرام ورسره خبر دی او مرفوع دی باوجود د دې مه چه ما موجود دی او عمل ئې نکښې ندې کړې

**تشـریح** دوی وایې چې ما او لا عمل نشي کولی او مابعد اسمین به دواړه مرفوع وي بنابر ابتدائیت او بنابر خبریت پس بنوتمیم دوه دلائل پیش کوی یو دلیل خارجي دي او بل دلیل شعر د بنوتمیمو دي ـ دلیل خارجي د عامل د عمل دپاره شرط اختصاص دی یعني عامل به په هغه صورت کې عمل کوي چې مختص وی به خپل معمول پوری لکه څنګه چې حروف جاره مختص دي په آسماء پوري اونه داخلیږي به افعالو باندی یالکه عوامل جازمه مختص دی افعالو پوري اونه داخلیږي په آسماء ـ اوماولا مختص نه دي په یو پوری بلکه به افعالو او اسماء دواړو باندې داخلیږي دوی عمل نشي کولی دلیل شعری داشعر دویم دلیل د بنو تمیمو دی

وَمُهَفْهَفٍ كَالْغُصْنِ قُلْتُ لَهُ انْتَسِبْ فَاَجَابَ مَا قَتْلُ الْمُحِبِّ حَرَامٌ

مصنف داشعر دلغت بنوتمیمو نه راغستی دي پدی کې ماهیخ عمل نه دي کړی قتل المحب مضاف مضاف الیه مرفوع بنابر ابتدائیت دي او حرام هم مرفوع بنابر خبریت دي په لغت دبنوتمیمو کې ـ دوي وایې کچرې ما عمل کولی شوی نو بیکار ده چې حراماً منصوب وي په فتحی سره پس معلومه شوه چې ما ولا عمل نشي کولی.

**دشعر مطلب** واو په معنی درُبَّ سره ده او مهفهف په معنی دنازک سره دی یعنی ډیر باریک او نازک طبیعت والا محبوب کالغصن یعنی د خانګی ـ اِنْتَسِبْ د انتساب نه

دامرصيغه ده په معنی نسب بيانول . قتلُ مصدردي المحب ورله مفعول به ده اوفاعل يې متروك (متروك، په معنی ترك نړی شوي اى مقدر، دي اى قتلُ المحبوبُ المحبَّ . ترجمه . اوچې ديرنازك دي په شان دخانګی ماورته اووي چې خپل نسب بيان كه پس جواب يې راكه چې قتلول دمحب محبوب لره حرام نه دي

**مناسبت بین السوال والجواب:** لفظی مناسبت يې دادي چې سائل تپوس اوكړه چې ستاتعلق دكمې قبيلي سره دي په جواب كې حبيب حرامُ مرفوع ذكركړه چې أَنَاتَمِيْمِيٌ يعني زه د هغه قبيلي يم چې په حرامو كې ماهيڅ عمل نه دي كړی مناسبت معنوي دادي چې مهفهف جواب وركه دقتل دمحب سره دَ اباحت نه يعني سره دجوازنه ګويادا سې جواب يې وركه چې زه دهغه خلقو سره تعلق ساتم چې كوم قتل دمحب مباح ګرزي اوهغه خلق معشوقان دي پس معنی يې داشوه چې زه دقبيلي دمحبوبانونه يم

**ثمره داختلاف** ثمره داختلاف داده چې داهل حجازسرنومذهب موافق دقرآن پاك سره دي لكه قوله تعالى ماهٰذَا بشرًا مانافيه مشبه بلیس دي هذا اسم دے ده اودامرفوع ده محلاً يعني دااسم اشاره (اسماء اشارات دمبنی يانونه دي خكه برى اعراب نه خكاره كيږي) بشراً خبردمادي اومنصوب ده بنابرخبريت مثال ثاني . ماهُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ هُنَّ ضمير دي مرفوع محلاً داهم دمبنياتونه دي اوامهاتهم منصوب باكسره دي پديشان سره چې داجمع مؤنث سالمه ده اوددی نصب تابع دجروي.

**دبنوتميمو داول دليل رَدّ** ماولااګرچې مختص په چاپوري نه ده ليكن دوي دعمل دَمشابهت بليس دوجې كوي اولَيْسَ مختص دي په اسماء پوري خكه ليس دقبيلي دافعال ناقصونه دي اوافعال ناقصه مختص دي په آسماء پوري

**دبنوتميمود دويم دليل رد** شعردليل نشي جوړيدي خكه چې داشعريه نعت دبنی تميمو كې نشرشوي دي پكار ده چې دوي دنعت عربی نه بوشعرذكركړی وي پس قوي مذهب دحجازيبونودي.

# المقصدالثالث فی المجرورات

اَلْاَسْمَاءُ الْمَجْرُوْرَةُ هِيَ الْمُضَافُ اِلَيْهِ فَقَطْ وَهُوَ كُلُّ اِسْمٍ نُسِبَ اِلَيْهِ شَيْءٌ بِوَاسِطَةِ حَرْفِ جَرٍّ لَفْظًا نَحْوُ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ

**ترجمه** اسماء مجروره عبارت دي د مضاف اليه نه، او مضاف اليه هر هغه اسم دي چه يو شي طرف نسبت وكړي شي بواسطې د حرف جر سره او هغه حرف جر به لفظاً ذکر وی لکه (مَرَرْتُ بِزَيْدٍ)

**تشريح** كله چي مصنفؒ فارغ شو د بحث د منصوبو نه پس شروع يې اوكړه په بحث د مجرورانوكي په الاسماؤ المجرورة كي هغه اعتراضات مع جوابات دي كوم چي په المقصد الاول اوتاني كي دي

**فان قيل** مرفوعات او منصوبات چونكه په ډيرو اقسامو مشتمل دي ځكه صيغې د جمعې ذكر شوي دي ليكن دلته مجرورات صيغه د جمعې ذكر ده حالانكه دا په يو قسم مشتمل دي چي فقط مضاف اليه ده، ددې د پاره څه وجه ده ؟

**قلنا** دا قول ستاسو صحيح دي چي په تمام نحت عربي كي د مجرورانو فقط يو قسم دي ليكن دا صيغه د جمعې ذكر شوي ده دوجې د موافقت او مشاكلت د مرفوعاتو او منصوباتو سره يعني مجرورات قياس كړې شوي دي په مرفوعاتو او منصوباتو باندي.

**فان قيل** د مصنفؒ د عبارت نه دا معلوميږي چي په تمام نحت عربي فقط مضاف اليه مجرور دي حالانكه بعض مواضع داسي دي چي هلته مضاف اليه واقع نوي او باوجود ددې نه مجرور گرزيدلي وي لكه مثال بِحَسْبِكَ زَيْدٌ زيد مجرور دي حالانكه مضاف اليه واقع نه دي يالكه كَفٰى بِاللّٰهِ الله مجرور دي بدون مضاف اليه. پس عبارت د مصنفؒ غير صحيح دي

**قلنا** مجرورات په دوه قسمه دي يو قسم مجرورات اصلي دي او بل قسم مجرورات پورى لكه مثلاً حروف جاره چي په چاپوري ملحق شي او مجرور شي دوجې د عمل د حرف جر نه پس جواب دا دي چي مصنفؒ مجرور اصلي ذكر كړي دي. چي هغه مضاف اليه دى فقط.

### تعريف دمضاف اليه

**تعريف دمضاف اليه** دا هر هغه اسم دي : برابره خبره ده : كه دغه اسم حقيقتاً وي او كه تاويلاً وي، چي نسبت شوي دي دغه اسم ته ديل شي ( برابره خبره كه دغه شي اسم وي او كه فعل وي) ، په واسطې د حرف جر سره ( برابره خبره ده كه دغه حرف جر لفظاً وي او كه تقديراً وي) ، كه چرى

حرف جرلفظاً وي ددي نه نحويان تعبير په جارمجرور سره کوي لکه مررت بزيد باحرف جرلفظاً ذکردي اودي قسم نه نحويان جارمجرور وايي که چيري حرف جرتقديري وي لکه غلام زيد اي غلام لزيد پس دي قسم ته نحويان مضاف مضاف اليه وايي البته پدې کې امام سيبويه صاحب اختلاف کړېدې دامام سيبويه رايي دا ده چې دداړو قسمونو نه تعبير په مضاف مضاف اليه سره کوي. ۲. ددغه شي نه مراد مصنف دی، او مضاف اسم هم واقع کيږي او فعل هم واقع کيږي

وَيُعَبَّرُعَنْ هٰذَا التَّرْكِيْبِ فِي الْإِصْطِلَاحِ بِأَنَّهٗ جَارٌ وَمَجْرُوْرٌ اَوْتَقْدِيْرًا نَحْوُ غُلَامُ زَيْدٍ تَقْدِيْرُهٗ غُلَامٌ لِزَيْدٍ وَيُعَبَّرُعَنْهُ فِي الْإِصْطِلَاحِ بِاَنَّهٗ مُضَافٌ وَمُضَافٌ اِلَيْهِ:

**ترجمه** او په اصطلاح د نحاتو کښې د دې ترکيب نه تعبير کولی شي په جار او مجرور سره يا حرف جر تقديرا سره لکه غُلَامُ زَيْدٍ. جه په اصل کښ غُلَامٌ لِزَيْدٍ. دی. او په اصطلاح د نحاتو کښې ددې نه تعبير کولی شي چه دا مضاف او مضاف اليه دي

**تشريح** او تعميم په مضاف کې دمصنفؒ او دابن حاجب (ابن حاجب د کافيي مصنف دی) دعبارت نه معلوميږي البته دنورونحويانو رايي واقع کيږي په تعريف کې داسم تعميم خکه شوي دي چې تعريف شي په يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ. يوم مضاف دي اضافت اونسبت يې ينفخ ته شوي دي او دافعل دی او دتعريف نه معلوميږي چې مضاف اليه به اسم وي پس ددې خبرې جواب موتر په تعميم داسم کې کړېدی پس ينفخ تاويلاً اسم دي په معنی نفخ مصدر سره.

وَيَجِبُ تَجْرِيْدُ الْمُضَافِ عَنِ التَّنْوِيْنِ وَمَا يَقُوْمُ مَقَامَهٗ وَهُوَ نُوْنُ التَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ نَحْوُ جَاءَنِيْ غُلَامُ زَيْدٍ وَغُلَامَا زَيْدٍ وَمُسْلِمُوْ مِصْرَ:

**ترجمه** او مضاف د تنوين نه يا د قائم مقام د تنوين نه خالي کول واجب دي چه هغه نون د جمع او نون د تثنيه دی لکه جَاءَنِيْ غُلَامُ زَيْدٍ وَغُلَامَا زَيْدٍ وَمُسْلِمُوْ مِصْرَ

**تشريح** دمضاف او دمضاف اليه په مابين کې شدة الاتصال وي ددې وجې نه مصنفؒ دافانون راوړو چې تنوين اوقائم مقام دتنوين (نون التثنية ونون الجمع) به لرې کيږي دمضاف نه څکه چې تنوين اوقائم مقام دتنوين داسې اشياء دي چې په دوي سره دمضاف اومضاف اليه په مابين کې انفصال راځي لکه غلامٌ زيد اى غلامٌ لزيدٌ دغلامٌ نه تنوين حذف شوي دي براي اتصال اودغه شان غلامازيد ددې نون التثنية حذف شوي دي.

# د اضافت اقسام او تشریح

وَاعْلَمْ أَنَّ الْإِضَافَةَ عَلٰى قِسْمَيْنِ مَعْنَوِيَّةٌ وَلَفْظِيَّةٌ أَمَّا الْمَعْنَوِيَّةُ فَهِيَ أَنْ يَكُوْنَ الْمُضَافُ غَيْرَ صِفَةٍ مُضَافَةٍ إِلٰى مَعْمُوْلِهَا وَهِيَ أَمَّا بِمَعْنَى اللَّامِ نَحْوُ غُلَامُ زَيْدٍ أَوْ بِمَعْنٰى مِنْ نَحْوُ خَاتَمُ فِضَّةٍ أَوْ بِمَعْنٰى فِيْ نَحْوُ صَلٰوةُ اللَّيْلِ وَفَائِدَةُ هٰذِهِ الْإِضَافَةِ تَعْرِيْفُ الْمُضَافِ إِنْ أُضِيْفَ إِلٰى مَعْرِفَةٍ كَمَا مَرَّ أَوْ تَخْصِيْصُهُ إِنْ أُضِيْفَ إِلٰى نَكِرَةٍ كَغُلَامِ رَجُلٍ وَأَمَّا اللَّفْظِيَّةُ فَهِيَ أَنْ يَكُوْنَ الْمُضَافُ صِفَةً مُضَافَةً إِلٰى مَعْمُوْلِهَا وَهِيَ فِيْ تَقْدِيْرِ الْإِنْفِصَالِ نَحْوُ ضَارِبُ زَيْدٍ وَحَسَنُ الْوَجْهِ:

**ترجمه**: پوهی شه چه اضافت په دوه قسمه دی اول معنوی دویم لفظی معنوی هغی ته وئیلی شی چه دا به مضاف وی او صیغه د صفت به نه وی. او دغه اضافت به نبي خپل معمول طرف ته شوي وی. اضافت معنوي یا به په معنی د لام سره وی لکه غلام زید یا به بمعنی من وی لکه خاتم فضة یا به بمعنی فی وی لکه صلوة اللیل او د دي اضافت فائده داده چه مضاف معرفه گرخوی چه کله معرفی طرف ته مضاف وی لکه خرنگه چه تیر شو. او دا به خاص کولی شی چه کله نکری طرف ته مضاف وی لکه غلام رجل. او اضافت لفظی هغی ته وئیلی شی چه مضاف به صفت وی او خپل معمول طرف ته به مضاف او د اضافت لفظی به تقدیر د انفصال کښي دی لکه ضارب زید او حسن الوجه

**تشریح**: پدي واعلم کي مصنفؒ د اضافت قسمین بیانوی چي یو اضافت معنوي دي او بل اضافت لفظی دي

(۱) **اضافت معنوي** علامه بي داده چي پدي اضافت کي به مضاف صیغه د صفت نوي داسي صفت چي اضافت یي خپل معمول ته شوي وي او د اضافت معنوی دوه صورتونه دي (۱) اول صورت د اضافت معنوي دادي چي مضاف به صیغه د صفت، مشتقي، نوي بلکه اسم جامد به وي لکه غلام زید غلام مضاف صیغه د صفت نه ده بلکه اسم جامد (د غلام اضافت خپل معمول ته شوی دی چي زید دي (۲)) دي (۲) دویم صورت د اضافت معنوي دادي چي مضاف صیغه د صفت وي لیکن مضاف الیه به یې معمول نوي لکه کَرِیْمُ الْبَلَدِ کریم صیغه د صفت ده داسي صفت چي بلد دپاره نه فاعل ده او نه مفعول به ده بس د واړه صورتونه مفید د معنو دپاره دي یا مفید د تعریف دپاره یاد تخصیص دپاره دي د تیلی دمعنیونه دي. اضافت معنوي په دری قسمه دي وجه د حصر یې داده چي په اضافت معنوي کي به یا مضاف مغائر وی یا به د جنس د مضاف نه وي او یا به

مضاف الیه ظرف وي دپاره دمضاف اول ته اضافت لامي وایي ثاني ته اضافت منّي یا بیاني وایي اوثالث ته اضافت ظرفي وایي امثله دادي داول دپاره مثال لکه غلام زید ای غلام لزید لام یه کې مقدردي دثاني دپاره مثال خاتم فضة ای خاتم من فضة یدي کې من جاره مقدردي دثالث دپاره مثال لکه صلواة الیل ای فی الیل یدي کې فی ظرفیه مقدردي

**فائده** داضافت معنوي یو فائده داده که چیری مضاف الیه معرفه وي نوددي نه به مضف تعریف کسب کوي لکه تیرشوي مثال غلام زید دلته مضاف تعریف کسب کړیدي.
دویمه فائده یې داده که چیری مضاف الیه نکره وي نو مضاف به تخصیص کسب کوي لکه غلام رجل رجل اګرچې نکره ده لیکن تخصیص په کې پیدی شان دي چې دغلام کم ازکم دوه فرده دي یو درجل اوبل دمرأ دي پس په رجل سره تخصیص راغی د مرأ نه ګویا په مضاف دلته تخصیص کسب کړیدي.

(۲) **اضافت لفظی** علامه یې داده چې مضاف به صیغه دصفت وي داسې صفت چې اضافت یې خپل معمول ته شوي وي. اضافت لفظي ورته ځکه وایي چې دي مفید ګرزي دتخفیف دلفظ دپاره. دتقدیرالانفصال ،تقدیرالاتصال ددي مطلب دادي چې په مضاف مضاف الیه کې شدة الاتصال وي اوتقدیردانفصال په دي معنی سره ده چې په مضاف مضاف الیه کې به انفصال وي من حیث المعنی لامن حیث اللفظ یعني لفظاً به متصل وي ځکه چې په اضافت لفظي کې هم تنوین اوقائم مقام دتنوین حذف کیږي (۲) معنی داده چې داضافت لفظي دوه حیثیتونه دي یو حیثیت دلفظ دي اوبل حیثیت دمعنی دي پس په مضاف مضاف الیه کې چې انفصال وي من حیث المعنی ددي دپاره وجه داده چې پدي کې مضاف صیغه دصفت ده اومعمول به یې یافاعل وي یامفعول به وي پس په معنی کې به یامرفوع وي یامنصوب وي اګرچې لفظاً مجروروي په دي وجه دامعنی ډیربل نه جداجداده البته من حیث اللفظ په کې انصال دي ځکه چې په اضافت لفظیه کې هم نون تثنیه اونون الجمع ساقطیږي ځکه مضاف مضاف الیه لفظاً متصل دي.

**وَفَائِدَتُهَا تَخْفِيْفٌ فِي اللَّفْظِ فَقَطْ**:

**ترجمه** او فائده د دې داده چه په لفظ کښ تخفیف راولی

**تشریح** فوائددتخفیف الفظ دادي چې کله تخفیف فقط به مضاف کې راځی لکه ضاربُ زید ای ضاربٌ زیداً دلته دمضاف نه فقط تنوین حذف شوي دي اوکله تخفیف په مضاف الیه کې راځي لکه القائم علام دمضاف الیه نه به ضمیرحذف کړی شي اوپه مضاف

کي به مستترکړي شي ای القائم الغلام اوکله تخفیف په دوارو کي راځي یعني دمضاف نه به تنوین حذف کړی شي او دمضاف الیه نه به ضمیرحذف شی او په مضاف کي مستترشي لکه حسنٌ الوجهُ ای حسن الوجه واعلم انك اذااضفت الاسم صحیح والجاری مجری الخ مجیم الی یاء پدي واعلم کي مصنفٌ داضافت متعلق یوڅوقواعد ذکرکوي

(۱) - چي کله دیو اسم صحیح یادجاری(جاری مجری الصحیح دیته وایي چي په آخرکي واو ماقبل ساکن اویاء ماقبل ساکن وي لکه دلوٌ . ظبْيٌ داپه حکم دصحیح کي دي ۱۲) مجرٰی اضافت یاء دمتکلم ته اوشي نودي اسم صحیح یاجاری مجری آخرته به حرکت دکسري ورکولی شي دوجي دمناسبت دیاء متکلم نه اوپه دغه باء کي دوه وجي جائزدي یووجه داچي یاء ساکنه کړی شي دپاره دتخفیف بله وجه داده چي یاته فتحه ورکړی شي ځکه چي الفتحة أخف الحرکات دادواړه وجهین دمضاف دپاره دي چي کله دمضاف اضافت یاء متکلم ته اوشي لکه غلامیْ . غلامیَ . دلويْ . دلويَ . ظبْيیْ . ظبْيیَ

(۲) - چي کله داسم مقصوراضافت یاء المتکلم ته اوشي نوپدي کي دوه نعته دي نعت الاکثر داکثروپه نزد به دغه الف مقصوره ثابت اوباقي پاتي کیږي لکه عصَایَ بعدا لاضافت ای عَصَيَّ نعت المزید دوي وایي چي دغه الف به په یاء بدلیږي اودغه یابه په باء المتکلم کي مدغمه شي اوماقبل به مکسورکړي شي لکه عصيَّ

(۳) - خلاصه داده چي کله د اسم منقوص(اسم منقوص هغه اسم ته وایي چي په آخرکي یاء ماقبل مکسوروراغلی دي ۱۲) اضافت یاء دمتکلم ته اوشي نودغه یابه په یاء داسم منقوص کي مدغمه شي پس دغه یاء مشدّدي ته به فتحه ورکړي شي دپاره ددفعي دالتقاء الساکنین.لکه قاضيَّ

(۴) - داقاعده دجمعي مذکري سالمي سره متعلق دي چي داقسم جمع مضاف شي په حالت رفعي کي یاء متکلم ته پس نون اعرابی به ساقط سي دآخرنه او واوبه په یابدل شي اویابه په یاء کي مدغمه شي اوفتحه به ورکړی شي دپاره ددفعي دالتقاء الساکنین اوماقبل ضمه به په کسري بدله شي لکه مُسلمُونَ داجمع مذکرسالمه ده چي کله یې اضافت یاء ته اوشي نومسلموي به شي پس ددي نه به مُسلِميَّ شي

(۵) - داقاعده داسماء ستة مکبره سره متعلقه ده پس قاعده .اده چي کله ددي اسماء اضافت یاء دمتکلم ته اوشي نومحذوف به نه معاد کیږي(یعني نسامنسیا. به گرزي ۱۲) دمحذوف نه مرادآخری حرف دي داسي حرف چي داسمایٰ ستة مکبره نه حذف شوی ده خلاف

القیاس برابې کثرت الاستعمال یعني اخ په اصل کې اخو وو ـ بقیه هذالقیاس البته دغه اضافت چې کله یاء ته اوشي نوبیدې کې دوه نعته دي عندالقوم چې دغه اضافت کله یاء ته اوشي نو په آخرکې به یاء المتکلم راشي فمي به شي او اصل به نه معاد کیږي عندالاکثرچې دغه اضافت کله یاء ته اوشي نو میم به خپل اصل ته معادشي (فم دراصل فوه بوده برایې تخفیف حذف شد و واو بمیم بدل شد بواسطه قرابت مخارج دراصل وجه اینکه گرمیم نه دارد پس واو به الف بدل کردند برایې مناسبت ما قبل فتحه والتقاء ساکنین جمع شدند الف حذف کردند فقط ف باقی داشتن وف راچرا فم کردیم بروجه یکه واو بمیم بدل شد برایې ضرورت) حې اصل یې واو دي او واو به په یاء بدل شي پس یاء به په یاء کې مدغمه شي او ماقبل فتحه به په کسري بدله شي د پاره د مناسبت د یاء نه نو فی به شي وذو لایضاف الی مضمر اصلا وقول القائل شعر انما یعرف ذا الفضل من الناس ذووه شاذ لفظ د ذو متعلق دا قاعده ده چې د ذو اضافت به اسم ظاهر ته کیږي نه اسم ضمیر ته د دي د پاره وجه داده چې ذو اهل نعت وضع کړی دي د پاره د دي چې د ده په واسطې سره اسم جنس (اسم ضمیر) صفت جوړشي لکه رجل ذومال رجل موصوف دي او مال صفت دي هغه صفت چې اسم جنس یا اسم ظاهر دي او د ذو اضافت هم د غه اسم ظاهر ته شوي دي البته په شعر مذکور کې د ذو اضافت اسم ضمیر ته شوي دي لکه ذووه پس د دي جواب مصنف کړیدي ای شاذ است دا قاعده ده چې د اسماء سته مکبرونه چې کله اضافت قطع شي نو بیا به یې اعراب حقیقي وي البته فقط لفظ به نه قطع کیږي

وَاعْلَمْ اَنَّكَ اِذَا اَضَفْتَ الْاِسْمَ الصَّحِيْحَ اَوِ الْجَارِيْ مَجْرَى الصَّحِيْحِ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ كَسَرْتَ اٰخِرَهٗ وَ اَسْكَنْتَ الْيَاءَ اَوْ فَتَحْتَهَا كَغُلَامِيْ وَدَلْوِيْ وَظَبْيِيْ وَاِنْ كَانَ اٰخِرُ الْاِسْمِ اَلِفًا تُثْبِتُ كَعَصَايَ وَرَحَايَ خِلَافًا لِلْهُذَيْلِ كَعَصَيَّ وَرَحَيَّ وَاِنْ كَانَ اٰخِرُ الْاِسْمِ يَاءً مَكْسُوْرًا مَا قَبْلَهَا اُدْغِمَتِ الْيَاءُ فِي الْيَاءِ وَفُتِحَتِ الْيَاءُ الثَّانِيَةُ لِئَلَّا يَلْتَقِيَ السَّاكِنَانِ تَقُوْلُ فِيْ قَاضٍ قَاضِيَّ وَاِنْ كَانَ اٰخِرُهٗ وَاوًا مَضْمُوْمًا مَا قَبْلَهَا قَلَبْتَهَا يَاءً وَعَمِلْتَ كَمَا عَمِلْتَ الْاٰنَ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ مُسْلِمِيَّ وَفِي الْاَسْمَاءِ السِّتَّةِ مُضَافَةً اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ تَقُوْلُ اَخِيْ وَاَبِيْ وَحَمِيْ وَهَنِيْ وَفِيْ عِنْدَ الْاَكْثَرِ وَفَمِيْ عِنْدَ قَوْمٍ وَذُوْ لَا يُضَافُ اِلٰى مُضْمَرٍ اَصْلًا وَقَوْلُ الْقَائِلِ شعر اِنَّمَا يَعْرِفُ ذَا الْفَضْلِ مِنَ النَّاسِ ذَوُوْهُ شَاذٌّ وَاِذَا قُطِعَتْ هٰذِهِ الْاَسْمَاءُ عَنِ الْاِضَافَةِ قُلْتَ اَخٌ وَاَبٌ وَحَمٌ وَهَنٌ وَفَمٌ وَذُوْ لَا يُقْطَعُ عَنِ الْاِضَافَةِ اَلْبَتَّةَ هٰذَا كُلُّهٗ بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ اَمَّا مَا يُذْكَرُ فِيْهِ حَرْفُ

الْجَرُّ لَفْظًا مَا سَيَأْتِيكَ فِي الْقِسْمِ الثَّالِثِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى.

**ترجمه** پوهه شه چه کله ته اسم صحیح یا قائم مقام د صحیح لره یاء متکلم طرف ته مضاف کړې نو آخر ته به ئې کسره ورکړې او یاء به ساکن کړې او یا به فتحه ورکړې لکه غلامي. دلوي ظبي او کچرته آخرې حرف ئې الف وي نو هغه صحیح سالم بر یګذي لکه عصاي او رحاي پدي کښ د هذیل اختلاف دي. لکه عصّي او رحّي او کچرته د اسم آخرې حرف یاء ما قبل مکسور وي نو په یاء کښ به مدغم کولی شي. او دویمې یاء ته به فتحه ورکړې شي لپاره ددې چه التقاء ساکنین لازم رانشي لکه قاضيّ هم ونیلی شي او قاضي هم. او کچرته به آخر کښ واو ما قبل مضموم وي نو د واو به په یاء سره بدله وُلی شي او عمل به کولی شي چه عمل اُس تیر شو لکه ته او واتی جیّ ئي مسلميّ. او په اسماء سته مکبره کښ چکله یاء متکلم طرف ته مضاف وي لکه ابي اخي حمي هني. او فی د اکثرو په نزد. و فمي د یو قوم په نزد او ذو ضمیر طرف ته بالکل مضاف کیږي نه. او د شاعر قول ده انما یعرف ذالفضل من الناس ذووه. شاذ دي. او چکله اسماء سته مکبره د اضافت نه جدا کړې لکه أخٌ. ابٌ. حمٌ هنٌ فمٌ او ذُو او ذو د اضافت نه نشي جدا کیدي دا تول په هغه صورت کښې دي چکله حرف جر تقدیري وي. او هغه اسم چکله حرف په کښ لفظاً ذکر وي د هغې بیان به ان شاء الله په قسم ثالث کښې راځي

# قوله الخاتمة في التوابع

اِعْلَمْ اَنَّ الَّتِيْ مَرَّتْ مِنَ الْاَسْمَاءِ الْمُعْرَبَةِ كَانَ اِعْرَابُهَا بِالْاِصَالَةِ بِاَنْ دَخَلَتْهَا الْعَوَامِلُ مِنَ الْمَرْفُوْعَاتِ وَالْمَنْصُوْبَاتِ وَالْمَجْرُوْرَاتِ فَقَدْ يَكُوْنُ اِعْرَابُ الْاِسْمِ بِتَبْعِيَّةِ مَا قَبْلَهُ وَيُسَمَّى التَّابِعَ لِاَنَّهُ يَتْبَعُ مَا قَبْلَهُ فِي الْاِعْرَابِ وَهُوَ كُلُّ ثَانٍ مُعْرَبٍ بِاِعْرَابِ سَابِقِهِ مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ وَالتَّوَابِعُ خَمْسَةُ اَقْسَامٍ اَلنَّعْتُ وَالْعَطْفُ بِالْحُرُوْفِ وَالتَّاكِيْدُ وَالْبَدَلُ وَعَطْفُ الْبَيَانِ.

**ترجمه** خاتمه په توابعو كښ ده. پوهه شه چه هغه اسماء معربه يعني مرفوعات. منصوبات. مجرورات چه كوم تير شو د هغې اعراب بالاصالة وو په داسې طريقې سره چه هغه اسماء باندې عوامل داخليږي چه هغه د مرفوعات. منصوبات. مجرورات نه دي. كله د اسم اعراب خپل ما قبل تابع كيدلو د وجه نه وي چه هغې ته تابع تابع كيخودلو. څكه چه دا د خپل ما قبل اعراب تابع ده. او تابع هر هغه دوېم اسم ده چه خپل ما قبل اسم په شان اعراب ورکړې شي. د يو جهت نه. او توابع په پنځه قسمه دي ۱. النعت ۲. العطف بالحروف ۳. التاكيد ۴. بدل ۵. عطف بيان

**تشريح** هر كله چې مصنف فارغ شو د مقاصدو ثلاثو نه پس شروع يې اوكړه په خاتمه باندې چې كومه وعده يې مخكښې كړې وه. او دا عبارت مسمّى په خاتمې سره څكه دې چې په دې سره بحث د معرب ختميږي گويا معرب په دوه قسمه دې يو قسم هغه معربات دي چې د هغې اعراب اصلي وي د يته معرب اصلي وايې او دوېم قسم هغه معربات دي چې د هغې اعراب تبعي وي د يته معرب تبعي وايې تر اوسه پورې هغه معربات ذكر شو چې د هغې اعراب بالاصاله دي يعني عوامل رافعه نواصبه وجر به پرې داخليږي لكه مرفوعات منصوبات او مجرورات چې ذكر شو چې دوي اعراب اصلي دي دوجې دد خول د عواملو نه او په دې خاتمه كې د هغه معرباتو بحث دې چې اعراب بالتبيعة وي د دې مطلب دا دې چې په دې اسماء معربه باندې عوامل نه داخليږي بلكه د دوي ما قبل چې كوم اسماء وي په هغو داخل وي پس د غه بدون العوامل اسماؤ ته توابع وايې توابع جمع د تابع ده او تابع ماخوذ دې د تبع نه په معنى د تابعدارې كول حونكه د اسم د خپل ما قبل پيروي او تابعداري كوي په اعراب كې د دې وجې نه د اسم ته تابع وايې د نحويانو په اصطلاح كې تابع هغه ثاني. دوېم نمبر اسم دې چې د خپل سابق. ي ما قبل ۱۲ د مسمّى مجموعه سره په اعراب كې موافق وي داسې موافق چې د دواړو اعراب د يو جهت نه راغلي وي مثلاً كه چيرې په مخكښې اسم اعراب د جهت د علت نه وي نو ثاني به هم د غه شان وي او كه د اول اسم اعراب د جهت مفعولت نه

راغلي وي نوثاني به هم دغه شان راځي که چیری اول مرفوع وی ثاني به هم مرفوع وي که منصوب مجروروي على هذا القياس لکه مثال ج. نی زَيْدُنِ الْعَالِمُ العالم تابع دي اوثاني واقع شوي دي پس زَيْدُنِ الْعَالِمُ دواړه مرفوع موافق دي اوجهت هم ددواړويو دي چي فاعلت دي يعني زيدهم دفاعل کیندوجی نه مرفوع دي دغه شان العالم هم دزيدسره ديوځاي کيدوپه حيثيت سره مرفوع دي پس ددواړورفع ديوحيثيت اوديوجهت نه راغلي ده دثاني مراد مؤخردي خکه چي داتعريف تابع ثالث اورابع ته هم شامل شي خکه چي هريوتابع دخپل متبوع نه په دويمه درجه کي وي په من جهت واحده سره احترازراغي دمبتدااوخبرنه خکه چي دمبتدا، اوخبراعراب ديوجهت څخه نه وي يعني دجهت ابتدائيت نه وي اوخبردجهت خبرين نه وي. توابع پول پنځه اقسام دي وجه دحصرني داده چي داتوابع به خالي نه وي يابه مقوي دحکم دپاره وي يابه نه وي که مقوي دحکم دپاره وي ديته تاکيد وايي که چيری مقوي دحکم دپاره نوي دابه ياخالي نه وي يابه مبين امبين اي بيان الحکم ۱۲، دحکم دپاره وي يابه نوي که مبين دحکم دپاره وی دابه خالي نه وي يابه مشتقي وي يابه نوي که مشتقي وي نوديته نعت صفت وايي که مشتقي نوي نوديته عطف بيان وايي چي کله مبين دحکم دپاره نوي دابه هم خالي نوي يابه په واسطي دحرف عطف سره وي يابه نوي که وي ديته عطف بالحرف وايي اوکه نه وي ديته بدل وايي.

**تشريح قوله الخاتمة في التوابع الخ** مصنف رحمة الله عليه چه کله فارغ شو د مقاصد ثلوثه چه هغې کښې د معرباتو اصليه بيان وو. أس نې شروع اوکړه په خاتمه کښ چه د کښې معربات تبعيه بيان دي. فرمائي چه اعلم أنَّ التي مَرَّت الخ

**قوله المرفوت، المنصوبات، المجرورات** دا د اسماء معربه بيان دي

**قوله فقديكون** بيدي کښې فاء تفسيريه ده يا د شرط محذوف په جواب کښ واقع شوی ده، اي اذا كان ذلك فنقول فقديكون الخ، چه کوم اعراب تير شو هغه اعراب بالاصالت وو نه بالتبع پداسې طريقې سره چه هغه اسماء معربه په خپله که مرفوعات نه وی او که منصوباتو نه وی او که مجروراتو نه وی. رفع نصب او جزم والاعمل پدې باندې داخليدل. نيکي کله د اسم اعراب د خپل ما قبل په تبعيت سره وی کچرته هغې باندې رفع وی نو په اسم باندې هم رفع وی کچرته هغه منصوب وی نو اسم به هم منصوب وی کچرته هغه مجرور وی نو اسم به هم مجرور وی

**قوله ويسمى اي ذلك الاسم التابع:** دا د بسمي دويم مفعول دي او د اسم نه په اصطلاح د نحاتو کښ تابع وئيلې شي خکه چه دا اکثر د خپل ما قبل کلمه اعراب تابع وی

**قوله وهو کل ثان الخ:** لفظ ثان په معنی د متاخر سره ده په اصطلاح د نحاتو کښې تابع هر هغه روستونی کلمه ده چه د مخ قبل کلمې اعراب سره معرب وی په حال کون ددی کښې چه هغه اعراب به د یو جهت نه وی، کچرته اول کلمه مرفوع وی نو دی ته به هم رفع ورکوو کچرته اول کلمه منصوب وی نو دا به هم منصوب وی کچرته اول کلمه مجرور وی نو دا به هم مجرور وی او د دواړو اعراب سبب به یو وی لکه قام رجل عالم. عالم صفت دي او دا چه مرفوع دي د خپل موصوف چه رجل دي فاعل کیدلو دوجه نه دی نه دبل فاعل کیدلو وجه نه. همدغه رنګی رأیت رجلا عالما کښې عالما صفت دا نصب د خپل موصوف چه رجلا دي دا د مفعول به دوجه نه دي نه بل مفعول کیدلو دوجه نه هم دغه رنګی مررت برجل عالم کښې عالم. دا صفت دي او دا جر د خپل موصوف چه رجل مجرور دي په حرف جر سره نه د بل جار مجرور دوجه نه دي

**قوله معرب به اعراب سابقه** دا د ثان صفت دي

**قوله من جهة واحدة:** دا د اعراب نه حال دي یا د هغې صفت دي، پدې قید سره چه د مبتدا خبر او د باب علمت دویم مفعول خارج شول. ځکه چه د مبتدا خبر اګرچه ثان هم دي او د خپل سابقه اعراب سره موافق هم دي ځکه چه دواړه مرفوع دی. لیکن دا رفع د یو جهت نه ده ځکه چه د مبتدا اعراب د یو جهت نه دي او د خبر اعراب د بل جهت نه دي ځکه چه مبتدا د مسندالیه کیدلو وجه نه مرفوع دي. او خبر د مسند کیدو د وجه نه مرفوع ده همدغه رنګی علمت زیدا فاضلا کښې دویم مفعول چه فضلا ده او اعلمت زیدا بکرا عالما کښې دریم مفعول چه عالما ده اګرچه ثان هم دي او دخپل اعراب سبقه سره موافق علم ده ځکه چه اول مثال کښې زیدا او فضلا دواړه منصوب دی او دویم مثال کښې بکرا او عالما دواړه منصوب دي. لیکن زیدا او فضلا اعراب همدغه رنګی د بکرا او عالما اعراب د یو جهت نه نه دي بل که زیدا دا نصب د محکوم علیه کیدلو دوجه نه دي او د فضلا دا نصب د محکوم به کیدو د وجه نه دي همدغه رنګی د بکرا دا نصب د محکوم علیه کیدو د وجه نه دي او د عالما دا نصب د محکوم به کیدو د وجه نه دي

# تعریف د نعت او تشریح

**فَصْلٌ**: اَلنَّعْتُ تَابِعٌ يَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ مَتْبُوْعِهٖ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ اَوْ فِيْ مُتَعَلَّقِ مَتْبُوْعِهٖ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ اَبُوْهُ وَيُسَمّٰى صِفَةً اَيْضًا وَالْقِسْمُ الْاَوَّلُ يَتْبَعُ مَتْبُوْعَهٗ فِيْ عَشَرَةِ اَشْيَاءَ فِي الْاِعْرَابِ وَالتَّعْرِيْفِ وَالتَّنْكِيْرِ وَالْاِفْرَادِ وَالتَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ وَالتَّذْكِيْرِ وَالتَّاْنِيْثِ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ وَرَجُلَانِ عَالِمَانِ وَرِجَالٌ عَالِمُوْنَ وَزَيْدُنِ الْعَالِمُ وَامْرَأَةٌ عَالِمَةٌ.

**ترجمه** اول فصل په بيان د نعت کښې دی. نعت هغه تابع دی چه دلالت کوی په داسې معنی چه د ده په متبوع کښې موجوده وی لکه جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ يا په داسې معنی باندې دلالت کوی چه د ده په متعلق کښې موجوده وی لکه جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ اَبُوْهُ او د نعت نه صفت هم ونيلې شی. قسم اول په لس اشياء کښې د خپل متبوع تابع وی په تعريف، تنکير، افراد، تثنيه و جمع او په تذکير او تانيث کښې لکه جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ وَرَجُلَانِ عَالِمَانِ او وَرِجَالٌ عَالِمُوْنَ وَزَيْدُنِ الْعَالِمُ وَامْرَأَةٌ عَالِمَةٌ.

**تشريح** چې کله مصنف ؒ فارغ شو د اجمال نه پس شروع يې او کړه په تفصيل د توابع خمسه کې اول قسم د توابعو نه نعت دی.

**وجه تقديم** اوله وجه دا ده چې نعت شديد الاتصال ده دوېمه وجه دا ده چې نعت کثير الاستعمال ده دريمه وجه دا ده چې د نعت فوائد ډېر دی پس نعت د شدة الاتصال، د کثير الاستعمال او د فوائد کثيرو د وجې نه مقدم دی په نورو توابعو باندې نعت په لغت کې ستودن، تعريف ته وايې چې په اصطلاح کې د نعت تعريف مصنف ؒ کړی دی پس نعت هغه تابع دی چې دلالت کوي په يو معنی داسې معنی چې حاصله او کائنه وی په متبوع دده کې يا په متعلق د متبوع دده کې وي نو ګويا نعت په دوه قسمه او ګرزېده اول قسم هغه نعت دی چې دلالت کوي په داسې معنی چې هغه حاصله وی په ذات د متبوع دده کې او دوېم قسم هغه نعت دی چې دلالت کوی په داسې معنی چې هغه حاصله وي په متعلق د متبوع کې وی د اول د باره مثال لکه جاءني رجل عالم. رجل متبوع دی او ده ته منعوت (منعوت ای موصوف ۱۲) هم وايې عالم نعت دی پس عالم په داسې معنی دلالت کوی چې هغه معنی د علميت په ذات د رجل کې ده دوېم مثال لکه جاءني رجل عالم ابوه رجل منعوت دی او عالم نعت (صفت) دی او ابوه متعلق د رجل دی پس عالم په داسې معنی دلالت کوي چې هغه حاصله ده په ابوه کې يعني راغی ما ته يو سړی داسې سړی چې پلار د هغه عالم دی

**والقسم الاول:** اول قسم نعت بحالہ دي ددي متعلق دا قاعده ده چې دي به مطابقت اوت بعذاري کوي د خپل متبوع سره به لسو اشياؤ کې نفسا ذا نا (نفسا ذا ت) دي مطلب دادي چې دنعت اومنعوت دمطابقت دپاره تول لس اشياء دي ليکن بيک وقت به دنعت ومتبوع به مابين کې فقط خلور اشياء متحقق کيږي .مثلاً داعراب نه به يووي دتعريف تنکيرنه به وي دافراد تثنيې اوجمعې نه به يووي دتذکيراوتانيث نه به يووي داخلوراشيابه دلسواشياؤ نه به يونعت دمبوع کې راځي ) اومتحقق کيږي به فقط خلوراشياء دلسونه مثلاً لکه جاءني رجلٌ عالمٌ بدي مثال کې داعراب نه فقط رفع متحقق ده اودتعريف او تنکيرنه فقط نکره متحقق ده اودافراد دتثنيې اوجمعې نه فقط افراد متحقق دي اودتذکيراوتانيث نه فقط تذکر متحقق دي به مثال مذکور کې فقط خلوراشياء جمع شول.

**وَالْقِسْمُ الثَّانِيْ اِنَّمَا يَتْبَعُ مَتْبُوْعَه فِي الْخَمْسَةِ الْاَوَّلِ فَقَطْ اَعْنِي الْاِعْرَابَ وَالتَّعْرِيْفَ وَالتَّنْكِيْرَ كَقَوْلِه تَعَالٰى مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا:**

**ترجمه** او قسم ثاني صرف په اولنی پنځه امورو کښې د خپل مبتوع تابع وي يعنې اعراب او تعريف او تنکير کښې لکه د الله تعالي دا قول مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا؛

**تشريح** دويم قسم نعت بمتعلقه دي دي به مطابقت کوي به تولو پنځو اشياؤکې فقط اومتحقق کيږي به دوه اشياء د پنځونه مثلاً اعراب نول دري (اى رفع نصب وجر ۱۲) دي پس دري نه يو متحقق وي او تعريف اوتنکيرنه به هم يو متحقق وي مثلاً كقوله تعالٰى من هذه القرية الظالم اهلها. دلته قريه موصوف ده اوظالم صفت دقريې دپاره دي داسي صفت چې دلالت په معنى دقريې نه کوي ځکه چې قريه خوعبارت دکنو ختونه بلکه داصفت دلالت کوي په معنى دمتعلق دقريې باندي چې اَهْلُهَا دي يعنى خلق دقريې ظالمان دي بدي مثال نې فقط دوه اشياء متحقق دي يوکسره ده داعراب نه اوبل تعريف ده

**فان قيل** دنعت بمتلعقه مطابقت به آخري پنځو اشياؤکې ولې نه کيږي.

**قلنا** بدي کې مطابقت دبقيه اشياؤضروري نه دي ځکه چې داقسم صفت پشان دفعل دي نوبه دي وجه به بدي کې قواعد دفعل جاري کيږي لکه مثلاً که حرى فعل اسم ظاهر وي نوصفت به هميشه واحد ذکر کيږي وغيرقواعدهاالفعل.

**فائدة النعت الخ** دنعت يو فائده دا ده کچري موصوف اوصفت دواړه نکري وي نو بدي صورت کې به نقليل دشرکاؤراځي دفائدي دمعنى دوضاحت دپاره لکه رجلٌ عالمٌ دادواړه نکري

دي اوفائده يې تخصيص المنعوت دي يعني دعالم نه قبل رجل عامل اوجاهل دواړوته شامل وو پس په عالم سره تقليل دشركاؤراغی دجاهلانوو غيرونه پس دي قسم نعت ته صفت مخصصه وايي دنعت دويمه فائده داده چې توضيح داحتمالاتو کوي (دا په هغه صورت کې چه کله نعت اومنعوت دواړه معرفې وي ۱۲) يعني چې هرکله په يولفظ کې ډيراحتمالات وي پس دي درفعې دپاره به نعت: صفت، ذکرکولی شي لکه مثال زيدن الفاضل دفضل نه مخکې په زيدکي دااحتمالات ووچې آيازيد طالب دي که مجنون دي که قاري هيڅ يې نه وه پس په فاضل سره رفع داحتمالاتو اوشوه چې فاضل دي دي قسم صفت ته صفت مضحه وايي دريمه فائده دنعت داده چې کله صفت فقط دثناء اومدحې دپاره ذکرکيږي لکه بسم الله الرّحمن الرّحيم الله موصوف دي اورحمٰن اورحيم يې صفات دي دپاره دمدحې اوپه دي کې هيڅ احتمالات نشته څلورمه فائده دنعت داده چې نعت مستعمليږي دپاره دذم ، دجابدونيل، لکه اعوذبالله من الشيطن الرجيم . شيطٰن موصوف دي اورجيم يې صفت ذم دي پنځمه فائده دنعت داده چې راځي دپاره دتاکيد لکه نفخةٌ واحدةٌ (يکبار دميدن) يوه پيره پوکې وركول په نفخةٌ کې دوحدة دپاره ده ليکن واحدة دتاکيد دپاره راوړلی شو دصفت پنځه فائدې مصنفؒ ذکرکړه اونورهم ډيرفوائد دي دصفت يعني صفت کله کله مفيد دتعميم دپاره وي لکه في يوم من الايام من الايام صفت دبوم دپاره دي اوپه دي کې مقصد دتعميم حاصل دي . کله کله صفت دترحم دپاره مستعمليږي لکه انازيدن الفقير پدي کې مقصد دترحم دي اوکله کله صفت دکشف ماهيت دپاره راځي يعني ديوشي ماهيت اوحقيقت پري ظاهريږي لکه الجسم الطويل العريض العميق دادريواړه صفت دکشف ماهيت دجسم دپاره مستعمل دي اوديته وضاحت دحقيقت ديوشي وايي

**وَاعْلَمْ اَنَّ النَّكِرَةَ تُوْصَفُ بِالْجُمْلَةِ الْخَبَرِيَّةِ نَحْوُمَرَرْتُ بِرَجُلٍ اَبُوْهُ عَالِمٌ اَوْقَامَ اَبُوْهُ وَالْمُضْمَرُ لَايُوْصَفُ وَلَايُوْصَفُ بِهٖ:**

**ترجمه** پوهی شه چه نکره موصوف کيږي په جملې سره د جملې اسمي مثال لکه مررت برجل ابوه عالم او د جملې مثال لکه مررت برجل قام ابوه او ضمير نه موصوف جوړيږي او نه صفت

**تشريح** پدي واعلم کې مصنفؒ تر فصل پوري دري قواعدذکرکوي (۱) توصيف دنکري په جملې خبريې سره جائزدي يعني چې په يوترکيب کې نکره موصوف واقع شي اوصفت ورله جمله خبريه واقع شي نو داجائزدي داځکه چې مخکې يو قانون ذکرشوکه چيري موصوف نکره وي نوصفت به هم نکره واقع کيږي پس دلته جمله خبريه هم په حکم دنکري کې وي په خلاف دجملې

انشائیہ نہ خکہ چې جملہ انشائیہ یہ مشابہت کې دمفردسرہ متحققہ نہ دہ اومفرد یہ صفت کې اصل دہ بلہ وجہ دا دہ چې یہ جملہ انشائیہ کې دصدق او کذب احتمال وي یس خکہ داصفت نہ شي واقع کیدي یہ نکرې سرہ احترازرغي دمعرفې نہ یعني جملہ خبریہ دمعرفې صفت نہ شي جوړیدي (۲) والمضمرة لایوصف داسم ضمیر توصیف نشي کیدي یہ بل یو شي سرہ یعني مضمر موصوف نہ شي واقع کیدي ددې دپارہ وجہ دادہ چې یہ اصل کې دموصوف فائدہ دې کیجري موصوف اوصفت دواړہ نکرې وي نوبیا یہ مفید دتخصیص دپارہ وي اوکہ معرفې وي نوبیا بہ مفید دتعریف گرزي یس ضمیر دمتکلم او مخاطب داپہ انتہایي وضاحت کې دي اوضمیر دغائب محمول اوقیاس دې یہ دوي باندې داخکہ موصوف نشي واقع کیدي

**فان قیل** نحوتونہ تعالی هوالعزیزالحکیم هوضمیر دغائب دی اوبیاهم موصوف مستعمل دی؟

**قلنا** هوضمیرغائب دې ئسکن نہ سکون دوئو سرہ هو یوصفتي نوم دې دنو مونو داللہ دویم جواب دادې چې داموصوف اوصفت نہ دې بلکہ دابدل مبدل منہ دې (۳) ولایوصف بہ داعطف دې یہ والمضمرة باندې یعني اسم ضمیر صفت هم نہ شي واقع کیدي خکہ چې کوم شي صفت واقع کیږي هغہ یہ مشتق وي او ضمیر مشتق نہ دې بلکہ جامد دې.

## العطف بالحروف

فَصْلٌ: اَلْعَطْفُ بِالْحُرُوْفِ تَابِعٌ يُنْسَبُ اِلَيْهِ مَا نُسِبَ اِلٰى مَتْبُوْعِهٖ وَكِلَاهُمَا مَقْصُوْدَانِ بِتِلْكَ النِّسْبَةِ وَيُسَمّٰى عَطْفَ النَّسَقِ وَشَرْطُهٗ اَنْ يَّكُوْنَ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ مَتْبُوْعِهٖ اَحَدُ حُرُوْفِ الْعَطْفِ وَسَيَاْتِيْ ذِكْرُهَا فِي الْقِسْمِ الثَّالِثِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى نَحْوُ قَامَ زَيْدٌ وَعَمْرٌو.

**ترجمه** دویم فصل یہ بیان د عطف بالحروف کښې دی. دا هغہ تابع دې چہ دہ تہ بہ دهغہ شي نسبت شوی وی چہ د کوم شي نسبت متبوع دہ سرہ شوی وی او تابع او متبوع دواړہ مقصود دی یہ هغہ نسبت حہ د دواړو تہ شوی وی سرہ او دہ تہ نوم عطف نسق یعني عطف بالحروف کیخودلو او د دې دپارہ شرط دا دې چہ دمعطوف او معطوف علیہ یہ درمیان کښی حروف عاطفہ نہ یو حرف یہ راغلي وي او د دې ذکر بہ ان شاء اللہ تعالی یہ قسم ثالث کښی راشي لکہ قام زید و عمر

**تشریح:** مصنفؒ چې کلہ فارغ شو دقسم اول نہ یس شروع یې اوکړہ یہ قسم ثاني کې چې عطف بالحرف (ای احتراز ست از عطف بیان ۱۲) دې. عطف یہ لغت کې میلان اونرمی تہ وایي اوحروف عاطفہ تہ خکہ عطف وایي چې داخیل مابعد دماقبل طرف تہ مائلہ کوي یہ حکم کې یہ

اصطلاح کې دعطف تعریف مصنف کړی حې دایوتابع ده داسې تابع چې څنګه نسبت ده معطوف ته شوي وي هغه نسبت به ده ته شوي وي اودي به دواړه مقصود بالنسبت يعني په حکم کې به دواړه برابروي ويسمى عطف النسق. نسق برابروالی لومساوي ته وايي پس دي عطف ته نسق ځکه وايي چې حکم دمعطوف اومعطوف عليه دواړه برابروي په کلاهمامقصودان سره احترازراغی دبدل مبدل منه نه ولی چې دبدل اومبدل منه حکم دواړو نه وي ظاهراً ليکن مقصود دي نسبت بدل ته شوي وي اومبدل منه ته حکم بطور تمهيد وايي.

**وشرطه الخ** شرط دعطف النسق دپاره دادی حې دمعطوف اومعطوف عليه به مابين کې به يو د حروف عاطفه وُ ونه ضرور راغلی وي اوحروف عاطفه تول لس دي. لاندي په اشعاروکې جمع شوي دي.

گرحروف عطف خواهی بی خلل ياد گيراين نظم ميخوان درمحل
واو . فـ ثم . حتى نيزاو بأم وإمّا ولكن . لا وبل

**وَإِذَا عُطِفَ عَلَى الضَّمِيرِ الْمَرْفُوعِ الْمُتَّصِلِ يَجِبُ تَاكِيدُهُ بِالضَّمِيرِ الْمُنْفَصِلِ نَحْوُ ضَرَبْتُ أَنَا وَزَيْدٌ إِلَّا إِذَا فُصِلَ نَحْوُ ضَرَبْتُ الْيَوْمَ وَزَيْدٌ:**

**ترجمه** چکله ضمير مرفوع متصل باندي يو اسم عطف کړي شي نو د دي تاکيد په ضمير منفصل سره راوړل واجب دي لکه ضَرَبْتُ أَنَا وَزَيْدٌ

**تشريح** ددي قاعدي خلاصه داده عُطف په معنی دراوړي سره ده پس چي کله اراده دعطف اوکړی شي په ضمير مرفوع متصل باندي (برابره خبره ده که بارزوي او که مستتروي) پس دضمير مرفوع متصل تاکيد واجب دي په ضمير مرفوع منفصل سره يعني ده نه پس به ضمير منفصل لګولی شي اودي نه بعد به حرف عطف راځي لکه ضربت انا وزيدٌ په ضربت کي تُ ضمير مرفوع متصل دي ددي تاکيد په انا ضمير منفصل سره شوي ده (دت نه تعبير په مؤکد سره کيږي اوانا ته کـيدي ۱۲) البته کچري دضمير متصل اود معطوف په مابين کي لفظ فاصل راغلی وي نوبيا ضمير منفصل ته حاجت نشته يعني بغيرد تاکيد نه عطف په ضمير منفصل باندي جائز دي (۳) په مرفوع سره احترازراغی دمنصوب اومجرورنه اوپه متصل سره احترازراغی دضمير منفصل نه ځکه چې دضمير منفصل تاکيد نشي کيدي په بل ضمير منفصل سره لکه مثال دلفظ فاصل دپاره دادي قوله تعالى فَكُبْكِبُوا فِيهَا هُمْ وَالْغَاوُنَ: دلـه لفظ فيها فاصله اوبـاوجود ددي

ضمیر منفصل هُمْ ذکرشوي دي پس ددي ترک هم جائزده برابره خبره ده که لفظ فاصل بعدالحرف عطف وي او که قبل الحرف عطف وی لکه مَاأَشْرَكْنَاوَلَاآبَاؤُنَادلته لفظ لافاصل واقع بعدالعطف دی.
ددي قاعدي دپاره وجه داده چي ضمیرمرفوع متصل پشان د جزء د کلمي ده دوجي دبیوستوالي نه یعني دا پیوست وي په لفظ پوري پس داغیرمستقل دي او غیرمستقل ضعیف وي کچري بغیردتاکیدنه په ده باندي عطف او کړي شي نوعطف قوي دي پس عطف دقوي به په ضعیف باندي راشي. او داخبره ده یعني مرتبه دمتبوع کمزوري شوه نوځکه به ضمیرمنفصل دتاکیددپاره راشي او دامستقل دي پس عطف به دمستقل په مستقل باندي راشي.

**وَإِذَاعُطِفَ عَلَى الضَّمِيرِالْمَجْرُورِيَجِبُ إِعَادَةُحَرْفِ الْجَرِّنَحْوُمَرَرْتُ بِكَ وَبِزَيْدٍ:**

**ترجمه** او چه کله ضمیر مجرور باندي عطف کړي شي نو د حرف جر اعاده کول ضروري دي لکه مَرَرْتُ بِكَ وَبِزَيْدٍ

**تشريح** دا قاعده د ضمیرمجرور متصل سره متعلقه ده پس چي هرکله اراده دعطف اوکړی شي په ضمیر مجرورمتصل نولابدي به وي اعادي د حرف جرنه اوپدي کي دوه مذهبه دي یو مذهب دبصریینودي او بل دکوفیینو دي

**بصريين**: دبصري علماء وايي چي اعاده دحرف وجه ده په نثر (دنثرنه مرادعبارت دکتب دی.) کي او کچري حالت داضطرار وي یعني حالت دمجبوروي نوبیااعاده د حرف جرواجبه نه ده بلکه ترک کولی به شي.

**كوفيين**: دکوفي حضراتو مطلق اجازت ورکړیدي یعني به هرحالت کي اعاده دحرف جرهم جائزده اونرکوالي هم جائزده مثال مررت بك وبزيد ضمیرمجرورمتصل ده او پس دحرف نه اعاده دحرف جرشوی ده. ددي قاعدي دپاره وجه مذکوره ده.

**وَاعْلَمْ أَنَّ الْمَعْطُوفَ فِي حُكْمِ الْمَعْطُوفِ عَلَيْهِ أَعْنِي إِذَاكَانَ الْأَوَّلُ صِفَةً لِشَيْءٍ أَوْ خَبَرًالِأَمْرٍأَوْصِلَةًأَوْحَالًافَالثَّانِي كَذٰلِكَ أَيْضًا:**

**ترجمه** پوهي شه چه حکم د معطوف به شان د معطوف علیه ده یعنی که اول د څه شي صفت وي یا د امر خبر وي یا صله وي یا حال واقع شوي وي نو ثاني به هم دغه رنګه وي

**تشريح** بوی شه چي حکم د معطوف به حکم د معطوف علیه کي وي ددي مطلب دادي کچري معطوف علیه صفت وي دپاره د موصوف نو معطوف به هم صفت وي دپاره د موصوف

کچري معطوف عليه خبروي دباره دمبتدا، نو معطوف به هم خبروي دپاره دمبتدا، کچري معطوف عليه صله وي دپاره دموصول نو معطوف به هم صله وي دپاره دموصول که چيري معطوف عليه حال وي لپاره دذو الحال نو معطوف به هم حال وي لپره دذو الحال

وَالضَّابِطَةُ فِيهِ أَنَّهُ حَيْثُ يَجُوزُ أَنْ يُقَامَ الْمَعْطُوفُ مَقَامَ الْمَعْطُوفِ عَلَيْهِ جَازَ الْعَطْفُ وَحَيْثُ لَا فَلَا:

**ترجمه** او قاعده کله داده چه کوم ځائي کښ معطوف به ځائي د معطوف عليه راوړل جائز وي نو عطف به هم جائز وي. کچرته دَ سي نه وي نو عطف به هم جائز نه وي

**تشريح** دا قاعده او ضابطه ده چي کوم ځائ کي تام د معطوف په ځائ د معطوف عليه باندي کيښي نو په دي کي به عطف جائزوي او که تام د معطوف په ځائ د معطوف عليه باندي نه کيښي نو بيا به عطف جائز نه وي.

وَالْعَطْفُ عَلَى مَعْمُولَيْ عَامِلَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ جَائِزٌ إِنْ كَانَ الْمَعْطُوفُ عَلَيْهِ مَجْرُورًا مُقَدَّمًا وَالْمَعْطُوفُ كَذَلِكَ نَحْوُ فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَالْحُجْرَةِ عَمْرٌو وَفِي هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ مَذْهَبَانِ أُخْرَانِ وَهُمَا أَنْ يَجُوزَ مُطْلَقًا عِنْدَ الْفَرَّاءِ وَلَا يَجُوزُ مُطْلَقًا عِنْدَ سِيبَوَيْهِ:

**ترجمه** دوه مختلف عاملانو به دوو معمولينو باندي عطف کول جائز دي کچرته معطوف عليه مجرور او مقدم وي او معطوف هم دغه رنګه ده لکه (فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَالْحُجْرَةِ عَمْرٌو) پدي مسئله کښ دوه نور مذهبونه دي هغه دا دي چه په نزد د فراء مطلقاً عطف جائز دي او د سيبويه په مطلقاً نا جائز ده

**تشريح** دا يوه اختلافي قاعده ده چي عطف د دوه اسمينو (معمولين مختلفينو) په معمولين دعاملينو مختلفينو جائز ده خلاصه يې دا ده چي عطف دا سمينو دا سي اسمين چي پخپله معمولين مختلفين وي پس ددي عطف په داسي معمولينو جائز دي چي د هر معمول عامل جُدا يعني مختلف وي لکه في الدار زيد والحجرة عمرو الحجرة معمول مجرور ده په تقدير د حرف جر سره او عمرو معمول مرفوع ده بنابر ابتدائيت او عامل يې معنوي دي او دغه شان في الدار معمول مجرور دي عامل يې في جاره دي او زيد مرفوع دي بنابر ابتدائيت عامل يې معنوي دي پس دالحجرة عمرو عطف په في الدار زيد جائز دي او که جائز نه ده په دي کي دري مذاهب دي (١)

يومذهب دجمهوردي (٢) دويم د امام فرا (٣) دريم د سيبويه دى

(١) - **مذهب دجمهورو** دا دي دوي وايي چي ددي قسم عطف دجواز دپاره شرط

دا دي چې په جانب د معطوف عليه کې مجرور مقدم وي او په جانب د معطوف کې هم مجرور مقدم وي لکه په مثال مذکور کې معمول مجرور مقدم دي په دواړو جانبونو کې او دجواز دپاره دليل دا دي چې دا قسم عطف خلاف قياس ثابت ده ليکن خلاف قياس شی چې څنګه ثابت شي نوترآخره به هغه شان مستعمليږي پس دا قسم عطف په کلام عربي کې موجود دي لکه يو سعريدي عطف دلالت کوي.

**شعر**

اَکُلَّ امْرِءٍ تَحْسَبِيْنَ امْرَءً ا ‌ ‌ ‌ ‌ وَنَارٍ تَوَقَّدُ بِاللَّيْلِ نَارًا

**ترجمه** يه هرمرد باندي ګمان نه دسري کوي او يه هغه اور ګمان کوي چې بل وي په تياره؛ کې کل امرء مضاف مضاف اليه، يو معمول مجرور دي او تحسبين امرءًا بل معمول دي چې منصوب دي او به دويم بند کې ونار هم معمول مجرور دی او دا عطف دي سه کل امرء باندي او نارا منصوب دي او عطف دي په امرأ. پس جمهور وايي چې دا قسم عطف خو خلاف قياس ثابت دي ليکن کله چې مونږ په دقيق نظر سره تحقيق او کړو نو به دي کې په دواړو جانبونو کې مجرور مقدم دي نو څکه مونږه د دي عطف د جواز دپاره دا شرط ولګو (۲) - دويم مذهب **دامام فراء صاحب** دي دوی وايي چې دا قسم عطف جائز دي مطلق يعني دي دپاره هيڅ قسم شرائط نشته که مجرور مقدم وي او که نه وي

(۳) - دريم مذهب **دامام سيبويه صاحب** دي چې دا قسم عطف مطلقًا ناجائز دي او وجه دا ده چې په اصل کې په جانب د معطوف کې تقدير دفي جاره دي يعني في الدار زيدٌ اى في الحجرة عمرو پس اختلاف په دې خبره کې دې چې څکه کيږي يعني د جمهور او د امام فراء په نزد عطف د مفرد دي په مفرد باندي يدې شان سره چې الحجرة په الدار عطف دي او عمرو په زيدٌ باندي عطف دي او د امام سيبويه په نزعطف د جملې دي په جملي باندي يعني في الحجرة به په تقدير دفي سره عطف شي في الدار باندی او عمرو به عطف شي په زيدٌ باندي خلاصه دا ده چې د جمهور او فراء په نزد عطف دا سمعنو به معمولينو د عاملينو مختلفينو جائز دي مفردًا مفردًا او د امام سيبويه صاحب په نزد جائز دي جملتاً جملتاً لا مفردًا مفردًا. فتوی د جمهور په مذهب ده . ۱۲

# التاکید

فَصْلٌ: اَلتَّاكِيْدُ تَابِعٌ يَدُلُّ عَلٰى تَقْرِيْرِ الْمَتْبُوْعِ فِيْ مَا نُسِبَ اِلَيْهِ اَوْ عَلٰى شُمُوْلِ الْحُكْمِ لِكُلِّ فَرْدٍ مِّنَ الْاَفْرَادِ الْمَتْبُوْعِ:

**ترجمه** دریم فصل په بیان د تاکید کښ دے، تاکید هغه تابع دی چه خپل متبوع په ثابتولو باندې دلالت کوی به هغه شی کښ چه کوم متبوع طرف ته منسوب وی. او یا به دلالت کوی په شمول د حکم هر فرد ته له افرادو د مبتوع نه

**تشریح** دویم قسم د توابعو نه تاکید دې تاکید او سو کید دوا په یو الفاظ دي په نعت کي تثبیت یعني مضبوطولوته وایي او په اصطلاح کي تاکید هغه تابع دي چي دلالت کوي په مضبوطولو د متبوع په هغه شي کي چي منسوب وي مبتوع ته او دویمه معنی داده تاکید هغه تابع ده چي دلالت کوي په شمول د حکم باندې دپاره د هر یو فرد د افرادو د متبوع نه .
گویا د تاکید دوه فائدې شوې یوه فائده او غرض د تاکید دا دي چي کوم شي د متبوع طرف ته منسوب وي نو تاکید د هغه شي د تجوز احتمال لري کوي او دویمه فائده دا ده چي متبوع په افراد کثیرو دلالت کوي نو پیدي کي دا شبه او شک وی چي د متبوع یو فرد مراد دي که ډیر افراد مراد دي پس تاکید دغه شبه د افرادو د متبوع نه لرې کوي

**قیودات** په علی تقریر المتبوع سره احتراز اغی د عطف بالحروف او بدل نه د توابع دي لیکن دوی دامی قسم دلالت نکوي به فی مناسب البه سره احترازاغی د نعت او عطف بیان نه څکه چي دوی په ذات د متبوع دلالت کوي.

## اقسام د تاکید

وَالتَّاكِيْدُ عَلٰى قِسْمَيْنِ لَفْظِيٌّ وَهُوَ تَكْرِيْرُ اللَّفْظِ الْاَوَّلِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ زَيْدٌ وَجَاءَ جَاءَ زَيْدٌ وَمَعْنَوِيٌّ وَهُوَ بِالْفَاظٍ مَّعْدُوْدَةٍ وَهِيَ النَّفْسُ وَالْعَيْنُ لِلْوَاحِدِ وَالْمُثَنّٰى وَالْمَجْمُوْعِ بِاخْتِلَافِ الصِّيْغَةِ وَالضَّمِيْرِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ نَفْسُهٗ وَالزَّيْدَانِ اَنْفُسُهُمَا اَوْ نَفْسَاهُمَا وَالزَّيْدُوْنَ اَنْفُسُهُمْ وَكَذٰلِكَ عَيْنُهٗ وَاَعْيُنُهُمَا اَوْ عَيْنَاهُمَا وَاَعْيُنُهُمْ وَجَاءَتْنِيْ هِنْدٌ نَفْسُهَا وَجَاءَتْنِي الْهِنْدَانِ اَنْفُسُهُمَا اَوْ نَفْسَاهُمَا وَجَاءَتْنِي الْهِنْدَاتُ اَنْفُسُهُنَّ:

**ترجمه** تاکید په دوه قسمه دے اول تاکید لفظی دا هغی ته وئیلی شی چه اولنی لفظ

مکرروی لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ زَيْدٌ وَجَاءَ جَاءَ زَيْدٌ او دویم قسم تاکید معنوی ده دا هغه دي چه پرخو مخصوص الفاظو په ذریعې سره راولې شي او هغه الفاظ دا دي (اَلنَّفْسُ وَالْعَيْنُ) دا واحد، تثنیه او جمع لپاره دي په مختلف کیدو د صیغو او ضمیرونو سره لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ نَفْسُهٗ وَالزَّيْدَانِ اَنْفُسُهُمَا وَالزَّيْدُوْنَ اَنْفُسُهُمْ او هم دغه رنګې عَيْنُهٗ او اَعْيُنُهُمَا اَوْ عَيْنَاهُمَا وَاَعْيُنُهُمْ هم دي او د مؤنث مثال لکه جَاءَتْنِيْ هِنْدٌ نَفْسُهَا وَجَاءَتْنِي الْهِنْدَانِ اَنْفُسُهُمَا اَوْ نَفْسَاهُمَا وَجَاءَتْنِي الْهِنْدَاتُ اَنْفُسُهُنَّ

**تشريح**: تاکید په دوه قسمه ده (۱) تاکید لفظي (۲) تاکید معنوي.

(۱) **تاکيدلفظي** مکرر کول د لفظ اول ته تاکید لفظي وايي يعني دا تاکید په اعتبار د لفظ سره ده او د لفظ اول مراد دادي چې نسبت بې مابعد ته او شي اويب برابره خبره ده که لفظ اول اسم وي که فعل وي که حرف وي که مرکب وي که غیر مرکب وي که مرکب تقیدي وي که غیر تقیدي وي وغیر هم ته شامل ده لکه مثال جاءنی زید زید. د لته زید اول اګرچې مبنځ کې واقع دي ليکن داهغه لفظ اول دی چې نسبت بې مابعد نه شوی ده او د تاکید فائده دفع د توهم ده يعني هرکله چې یوزید ذکر شي نو مخاطب به شک کوي چې آیا زید راغلی دي که نه دي پس په مکرر راوړلو سره دفیعه د توهم پورته شوه دویم مثال جاء زید بدي سره دفع د وهم راغله چې زید پخپله راغی

(۲) **تاکيدمعنوي** تاکید معنوي حاصلیږي په یو خو لفظونو سره او معنوي ورته څکه وايي چې منسوب بالمعنی ده په يو خو لفظونو سره او لفظونه دادي (۱) نفسٌ (۲) عینٌ (۳) کلا (۴) کلتا (۵) کُلُّ (۶) اَجْمَعُ ددي نه علاوه دری الفاظ نور هم دي ليکن دا در يواړه تابع د اجمع دي (۱) اکتعُ (۲) ابتعُ (۳) ابصعُ پس تول شپږ الفاظ دي او ددي د استعمال طريقه داده نفسٌ وعینٌ دادواړه لفظونه راځي دپاره د تاکید په اختلاف د صيغې د مؤکد سره يعني که مؤکد واحد وي نو دا الفاظ به هم واحد ذکر کيږي او که مؤکد په تثنیې سره مستعمل وي نو داالفاظ به هم صیغې د تثنیې سره ذکر کيږي او که مؤکد په جمعی سره وي نو دوي به د جمعې صغې سره ذکر کيږي پس خلاصه دا شوه چې نفسٌ او عینٌ مستعمليږي براي تاکيد په اختلاف د صغې سره لکه مثال دادي جاءنی زيدٌ نفسه دا د مفرد مثال دي په نفسه کې ضمیر د واحد ده چې راجع مؤکد ته دي د تثنیې مثال لکه جاءنی زیدان انفسهما اونفساهمادلته یو قاعده ده دا به په بحث د مثنی کې راشي انشاء الله تعالی قاعده داده چې کله د مثنی اضافت مثنی ته اوشي نو د اولی مثنی نه تعبیر په لفظ د جمعي سره کیږي يعني داد عربو قاعده ده چې دوه تثنیې نه خوښي پس مصنفٌ څکه د جمعي صيغه راوړه ای انفسهما ونفساهما په نزدابن کسان ذکر کيږي څکه مصنفٌ په دواړو عمل کړی دي

وَكِلَا وَكِلْتَا لِلْمُثَنّٰى خَاصَّةً نَحْوُ قَامَ الرَّجُلَانِ كِلَاهُمَا وَقَامَتِ الْمَرْأَتَانِ كِلْتَاهُمَا:

**ترجمه** كلا او كلتا خاص تثنيه لپاره دي لكه قَامَ الرَّجُلَانِ كِلَاهُمَا وَقَامَتِ الْمَرْأَتَانِ كِلْتَاهُمَا

**تشريح** كلا او كلتا للمثنى مستعمليږي دپاره دتاكيد به اختلاف دضمير سره. به خاصة سره احتراز راغى دواحد او جمعي نه بلكه كلا او كلتا دواړه مختص دي به تثنيي پوري او دتثنيي نه مراد عام دي كه تثنيه اصطلاحي وي او كه تثنيه لغوي وي. **تثنيه اصطلاحي** دېته وايي چې صيغه دتثنيي ذكر شي لكه جاء ني الرجلان كلاهما. **تثنيه لغوي** دېته وايي چې دوه لفظه ذكر شي به واسطې دحرف عاطف سره لكه جاء ني زيد وعمر كلاهما. فرق په كلا او كلتا كې دادي چې كلا مختص دي دتثنيي مذكر خاصي سره او كلتا مختص دي دتثني مؤنث خاصي سره.

وَكُلٌّ وَأَجْمَعُ وَأَبْتَعُ وَأَبْصَعُ لِغَيْرِ الْمُثَنّٰى بِاخْتِلَافِ الضَّمِيرِ فِي كُلٍّ وَالصِّيغَةِ فِي الْبَوَاقِي تَقُولُ جَاءَنِي الْقَوْمُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ أَكْتَعُونَ أَبْتَعُونَ أَبْصَعُونَ وَقَامَتِ النِّسَاءُ كُلُّهُنَّ جُمَعُ كُتَعُ بُتَعُ بُصَعُ:

**ترجمه** او كُلٌّ وَأَجْمَعُ وَأَبْتَعُ وَأَبْصَعُ د تثنيه نه علاوه لپاره دي (يعني واحد او جمع لپاره) لفظ كل كښې اختلاف به ضمير سره راځي نه به صيغه كښې او په نورو به صيغو تبديلي سره راځي لكه جَاءَنِي الْقَوْمُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ أَكْتَعُونَ أَبْتَعُونَ أَبْصَعُونَ وَقَامَتِ النِّسَاءُ كُلُّهُنَّ جُمَعُ كُتَعُ بُتَعُ بُصَعُ

**تشريح** داالفاظ مستعمليږي دپاره دتاكيد غير تثنيه نه يعني راځي به دپاره دواحد او جمعي. پس كه چيري لفظ د كُلٌّ تاكيد كړى شي نو اختلاف دضمير به كې لازمي وي او باقي الفاظ به موافق دمؤكد سره مستعمليږي كه چيري مؤكد واحد وي نو اجمع او اخوات به هم صيغې دواحد ذكر كيږي او كه مؤكد جمع وي نو اجمع او خوات به صيغې دجمعي ذكر كيږي او كه مؤكد مذكر وي نو داالفاظ به هم صيغې دمذكر وي او كه مؤنث وي نو دا به هم صيغې دمؤنث وي او كه جمع سالمه وي نو دا به هم دغه شان ذكر كيږي. أَكْتَعُ: لفظي تشريح. لفظ د كتع مأخوذ دى د كُتْعٌ نه به معنى دتمام والي سره دي لكه به محاوراتو كې راځي لكه حَوْلٌ كَتِيعٌ پوره كال. بَتَعُ: د مأخوذ دى د بَتْعٌ نه به معنى دبه معنى طُوْلُ الْعُنُقِ اوږد ښت والاجي سنځ يي او كه وي. بصع مأخوذ دي د بَصْعٌ نه به معنى بهدل. پس دا دريواړه لغوي معنى به مقام دتاكيد كې معتبري نه دي او پوره تفصيل ددي به راعلم كې راروان دي ان شاء الله تعالى سوفيه

وَإِذَا أَرَدْتَ تَاكِيدَ الضَّمِيرِ الْمَرْفُوعِ الْمُتَّصِلِ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنِ يَجِبُ تَاكِيدُهُ بِالضَّمِيرِ

الْمُنْفَصِلِ نَحْوُ ضَرَبْتَ أَنْتَ نَفْسُكَ وَلَا يُؤَكَّدُ بِكُلٍّ وَأَجْمَعَ إِلَّا مَا لَهُ أَجْزَاءٌ وَأَبْعَاضٌ يَصِحُّ افْتِرَاقُهَا حِسًّا كَالْقَوْمِ أَوْ حُكْمًا كَمَا تَقُولُ اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ كُلَّهُ وَلَا تَقُولُ أَكْرَمْتُ الْعَبْدَ كُلَّهُ.

**ترجمه** چه کله نه د ضمیر مرفوع متصل تاکید په نفس او عین ذریعي سره راوړلو اراده وکړي نو د دي تاکید به په ضمیر منفصل سره راوړل ضروري دي لکه ضَرَبْتَ أَنْتَ نَفْسُكَ او نشي راوړلی کیدي تاکید په کل او اجمع ذریعي سره مګر د کوم شي چه اجزاء او حصي وي او جداوالی حسي طور باندي صحیح وي لکه قوم یا حکم په اعتبار سره وي لکه اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ كُلَّهُ او داسې نشي ونیلی چه أَكْرَمْتُ الْعَبْدَ كُلَّهُ

**تشریح** هر کله چي اراده او کړی شي دتاکید دضمیر مرفوع متصل په لفظ دنفس او عین سره نو لازمه ده چي اول به یي تاکید په ضمیر مرفوع منفصل سره او کړی شي او بیابه تاکید دنفس یادعین راوړي شي لکه مثلاً ضربتَ انت نفسك یاعینك وغیره ددي دپاره وجه داده چي نفس اوعین په غالبو او قانو کي دفعل وافع کیږي دپاره دفعل لکه یو سړی دااو وایي چي زید ضرب نفسه زید مبتدا ضرب فعل نفسه یي فاعل جمله فعلیه خبر مبتدا پس داخبره غالبه ده که چیري دتاکید په مقام کي د ضمیر مرفوع متصل تاکید په ضمیر منفصل سره او نه کړی شي نو لازم به شي التباس په مابین دفاعل او دتاکید پس دالتباس درفعې دپاره به ضمیر منفصل راوړي شي.

**ولايؤكد بكل واجمع الامالة اجزاء:** تاکید نه شي کیدي دکلُ او اجمع مګر د هغه شي چي هغې دپاره اجزاء وي او بیا په کي حصې جوړیدي یعني حې اخراق او جدا والی به کي راتلی شي حقیقتاً او حکماً مثلاً لکه لفظ دقوم ددي دپا ، وامور متعدده دي او داحقیقتاً افتراق دي په مابین دافرادو په قوم کښې ، لکه عَبْدٌ دمفرددي لیکن حصې په کي جوړیدی شي لکه اشتریتُ العبدَ کلَّهٗ ماواغست غلام په جمع سره یعني ټول غلام ماواغست ، دا امله په قدوري کي ده ،

وَاعْلَمْ أَنَّ أَكْتَعَ وَأَبْتَعَ وَأَبْصَعَ أَتْبَاعٌ لِأَجْمَعَ وَلَيْسَ لَهَا مَعْنًى هٰهُنَا بِدُوْنِهٖ فَلَا يَجُوْزُ تَقْدِيْمُهَا عَلَى أَجْمَعَ وَلَا ذِكْرُهَا:

**ترجمه** پوهی شه چه اکتع ابتع ابصع دا یول د اجمع تابع دي او دوی دپاره په مقام د تاکید کښ هیڅ معنی نشته بغیر د اجمع نه . دا یول به اجمع باندي مقدم کول او د اجمع نه بغیر ذکر کول جائز نه دي

**تشریح** بدی واعلم مصنفؒ داجمع واخوات بحث کوی چي داکتع ابتع ابصع دپاره اجمعُ متبوع دي او دا یی تابع دي چي یه مؤخر داجمعُ نه او دا په نه مستعملیږي په مقام دتاکید کي بدون لاجمعُ نه

اوددوي خپلي لغوي معاني به په مفهوم دتاکيد کي معتبري نه وي مګربه معنی داجمع به وي فقط.

## دبدل تعريف اقسام او تشريح

**فَصْلٌ**: اَلْبَدَلُ تَابِعٌ يُنْسَبُ اِلَيْهِ مَا نُسِبَ اِلٰى مَتْبُوْعِهٖ وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ بِالنِّسْبَةِ دُوْنَ مَتْبُوْعِهٖ وَ اَقْسَامُ الْبَدَلِ اَرْبَعَةٌ بَدَلُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ وَهُوَ مَدْلُوْلُهٗ مَدْلُوْلُ الْمَتْبُوْعِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ اَخُوْكَ وَبَدَلُ الْبَعْضِ مِنَ الْكُلِّ وَهُوَ مَا مَدْلُوْلُهٗ جُزْءُ مَدْلُوْلِ الْمَتْبُوْعِ نَحْوُ ضَرَبْتُ زَيْدًا رَأْسَهٗ وَبَدَلُ الْاِشْتِمَالِ وَهُوَ مَا مَدْلُوْلُهٗ مُتَعَلِّقُ الْمَتْبُوْعِ كَسُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهٗ وَبَدَلُ الْغَلَطِ وَهُوَ مَا يُذْكَرُ بَعْدَ الْغَلَطِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ جَعْفَرٌ وَرَاَيْتُ رَجُلًا حِمَارًا وَالْبَدَلُ اِنْ كَانَ نَكِرَةً مِنْ مَعْرِفَةٍ يَجِبُ نَعْتُهٗ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ وَلَا يَجِبُ ذٰلِكَ فِيْ عَكْسِهٖ وَلَا فِي الْمُتَجَانِسَيْنِ:

**ترجمه**: دا څلورم فصل په بيان د بدل کښ ده. بدل دا سي تابع ده، چه دي طرف ته هغه شي منسوب کيږي چه کوم شي د دي متبوع طرف ته منسوب کړی. او نسبت نه مقصود بدل ده نه د دي متبوع. او بدل په څلور قسمه ده (۱) بَدَلُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ. دا هغه بدل ده چه د دي مدلول بعينه د دي د متبوع مدلول ده لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ اَخُوْكَ (۲) بَدَلُ الْبَعْضِ مِنَ الْكُلِّ. او بدل البعض دا هغه بدل ده چه د دي مدلول د متبوع د مدلول نه جزء وي لکه ضَرَبْتُ زَيْدًا رَأْسَهٗ. (۳) دريم قسم بَدَلُ الْاِشْتِمَالِ. دا هغه بدل ده چه مدلول د ده به متعلق وي لپاره د مدلول دمبدل منه لکه كُسِلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهٗ (۴) څلورم قسم بدل الغلط ده. دا هغه بدل ده چه د غلطي نه پس ذکر کولي شي لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ جَعْفَرٌ وَرَاَيْتُ رَجُلًا حِمَارًا. او بدل کچرته نکره د غلي وي د معرفي نه نو واجب ده راوړل د صفت لکه د الله تعالي دا قول دي بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ او د دي په برعکس کښ يعني مبدل منه نکره وي او بدل ورله معرفه وي لکه قم اخ لك زيد. او همدغه رنګي د بدل لپاره صفت راوړل واجب ندي به هغه صورت کښ چه بدل او مبدل منه متجانسين وي ب دواړه معرفي وي لکه جاءني زيد اخوك او يا دواړه نکره وي لکه جاءني غلام لك

**تشريح**: څلورم قسم دتوابعونه بدل دي به معنی د بدله نرسره او په اصطلاح دنحو کي بدل هغه تابع دي چي منسوب کولي شي ده ته هغه شي چي کوم سي دده متبوع ته منسوب وي ليکن مقصود بالنسبت به بدل وي او دمتبوع نسبت به دپاره د بدل ذکر کيږي او متبوع مسمی کولي شي به مبدل منه سره لکه جاءني زيد اخوك اخوك بدل دي د زيد نه او زيد مبدل منه دي پس دجاءني

نسبت زيدته شوي دي ليکن دامقصودبالنسبت نه دي بلکه نسبت دجاءني اخوكَ ته شوي دي اودامقصودبالنسبت دي قيود ات . په هو المقصود بالنسبت سره احترازراغي دنعت، دتاکيد او عطف بيان نه ځکه چې په دوی کې مقصود بالنسبت متبوع وي او په مقصود بالنسبت دبدل سره احترازراغي دعطف بالحروف نه ځکه چې په دي کې متبوع اوتابع دواړه مقصود بالنسبت وي بدل په څلورقسمه دي وجه حصريې داده چې بدل به خالي نه وي يابه مصداق دبدل مبدل منه يو وي يابه يو نه وي که مصداق يې واحد وي د به بَدَلُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ وايي اوکه دبدل مبدل منه مصداق واحدنه وي نوبيابه خالي نه وي يابه مدلول دبدل جزء وي دمدلول دمبدل منه نه ديته بدل البعض وايي اوکچرې دبدل مبدل منه مابين کې علاقه وي ماسوادکليت جزئيت نه نوديته بدلاشتمال وايي اوکچرې په مذکوروکې يونه وي نوديته بدالغلط وايي لکه مثال داول دپاره جاءني زيدٌ اخوكَ دزيدمصداق داخوك دي اودا اخوك مصداق دا زيد ده دويم مثال لکه ضَرَبْتُ زَيْدًا رَأْسَهُ دلته رأس جزء دي دمصداق دزيدنه پس داعلاقه دکليت اوجزئيت ده . دريم مثال لکه سُلِبَ زيدٌ ثوبه دلته هسې علاقه ده يعني بدون الکليت جزئيت بلکه هسې په يوبل مشتمل دي چې کپړې دزيددي . څلورم مثال لکه جاءني زيدٌ جعفرٌ دلته جعفربدل دي دزيدنه يعني هرکله چې متکلم تکلم اوکه به دې خبره چې راغی ماته زيد او په حقيقت کې زيدنه وومکرجعفروونومتکلم سمدستي بعدزيدنه اسم دجعفراوړو پس ديته بدل الغلط وايي .

**قاعده** ددي قاعدي خلاصه داده چې په دي کې څلورصورتونه جوړيږي

(۱) اول صورت دادي چې بدل نکره وي اومبدل منه معرفه وي

(۲) دويم صورت دادي چې بدل معرفه وي اومبدل منه نکره وي

(۳) چې دواړه نکري وي

(۴) چې دواړه معرفي وي . پس اول دواړه مسمٰی دي په متخالفين صورتونو اوبقيه دواړه مسمٰی دي په متجانسين . اوس قاعده داده چې نقط په اولني صورت کې دبدل، نکرې ، دپاره توصيف اونعت واجب ده کقوله تعالی بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ ناصية بدل نکره ده اوکاذبة ورله صفت ذکرشوي دي .

## عطف بيان

**فَصْلٌ: عَطْفُ الْبَيَانِ تَابِعٌ غَيْرُ صِفَةٍ يُوْضِحُ مَتْبُوْعَهُ وَهُوَ اَشْهَرُ اسْمَيْ شَيْءٍ نَحْوُ قَامَ**

اَبُوْحَفْصٍ عُمَرُوَقَامَ عَبْدُاللّٰهِ اِبْنُ عُمَرَ:

**ترجمه** پنځم فصل په بیان د عطف بیان کښ دہ او عطف بیان داسې تابع دہ چه صیغه د صفت به نه وی او د خپل متبوع وضاحت به کوی او دا عطف بیان به اشهر د اسمونو د شی نه وی لکه قَامَ اَبُوْحَفْصٍ عُمَرُوَقَامَ عَبْدُاللّٰهِ اِبْنُ عُمَرَ.

**تشریح** پنځم قسم (آخری) د توابع نه عطف بیان دی تعریف یې دادې چې دا یو تابع دې داسې تابع چې صفت نه وي بلکې د خپل متبوع وضاحت کوي به غیر صفة سره احتراز راغی دصفت نه او په یوضح متبوعه سره احتراز راغی د نورو توابعو نه. وهو اشهر اسمي شئ. عطف بیان هغه مشهور اسم دې ددوه اسمونو د یو شي نه او داعبارت د نورو کتابونو نه هم داسې معلومیږي چې عطف بیان به مشهوروي د خپل متبوع نه بلکه دا خبره صحیح نه ده چې عطف بیان به ضرور مشهور وي د خپل متبوع نه بلکه دا خبره ضروري ده چې په ده سره وضاحت دیوشي حاصل شي اگر که دې مشهور نوي پس برابره خبره ده که دغه وضاحت به عطف بیان سره حاصل شي او که په متبوع دده سره حاصل شي لکه مثلاً قام ابو حفص عُمَرُ دا واړه یو اسمین د شخص واحد دي چونکه عمر زیات مشهور دي نو دلته د مصنفؒ دعبارت مطابق عطف بیان مشهور گرزیدلې دي - مثال ثاني قام عبدالله بن عمر یعني کي عبدالله اسم محزه ده. ابن عمر کنیت ده او اسم محزه مشهور وي د کنیت نه او دلته اسم کنیت ابن عمر مشهور گرزیدلي دي نو دا مثال پدې خبره دلالت کوي چې عطف بیان اسم واقع کیدي شي لیکن حه کله صفت نه وي.

وَلَايَلْتَبِسُ بِالْبَدَلِ لَفْظًا فِيْ مِثْلِ قَوْلِ الشَّاعِرِ اَنَا اِبْنُ التَّارِكِ الْبَكْرِيِّ بِشْرٍ، عَلَيْهِ الطَّيْرُ تَرْقُبُهُ وُقُوْعًا:

**ترجمه** او نه ملتبس کیږي عطف بیان بدل سره باعتبار د لفظ سره. لکه د شاعر دا قول

شعر اَنَا اِبْنُ التَّارِكِ الْبَكْرِيِّ بِشْرٍ ــ عَلَيْهِ الطَّيْرُ تَرْقُبُهُ وُقُوْعًا

**تشریح**: پدې عبارت کې د مصنفؒ غرض دادې چې د عطف بیان او بدل سره مابین کې معنوي فرق واضح دی لیکن لفظي فرق بیاني او داخکه حې سه معضو را کسو کي عطف بیان ذکروي نو ممکنه ده چې مبتدي سوهم دبدل ذهن نه راولي نو دی قسم نو هم نو دعوی د باره مصنف لفظي فرق بیاني پس معنوي فرق سه عطف بیان او بدل کې دادې حې عطف سامو ضح دي د متبوع لپاره او معصود بالنسبت به کې متبوع وي او بدل موضح نه ملکه پخپله مقصود بالنسبت وي

**لفظي فرق** توهم دبدل به بمرهغه ترکیب کي ذهن ته راځي چي عطف بیان راغلی وي دمعرفي بلا منه اوچي دغه معرفه بلالام مضاف الیه وي داره دصیغي دصفت او چي دغه صیغه دصفت هم معرفه باللام وي

**خوږي مصري په خاتمه داسم** پس عطف بیان چي کله به مثل ددي ترکیب کي واقع شي نو ممکنه ده داخبره چي توهم دبدل به کي واقع شي لکه شعر

اَنَاابْنُ التَّارِكِ الْبَكْرِي بِشْرٍ عَلَيْهِ الطَّيْرُ تَرْقُبُهُ وُقُوْعاً

پدي شعر کي بشر عطف بیان دي دالبکری دپاره چي البکري معرفه باللام ده داسي معرفه باللام چي مضاف الیه دي دپاره دالتارك او التارك پخپله معرفه باللام صیغه دصفت ده په معنی دقاتل سره یې په معنی دمُصَیِّرَ سره ده دبشر اوبکري مصداق یو دی یعنی دیو شخص اسمین دي پس ممکنه ده چي بشر بدل واقع شي دالبکري نه اوکه دینه نظر اوکي چي بشر اسم اشهر دي نو دادي دالبکري دپاره عطف بیان واقع شي اود شعر ترکیب به پدیشان سره کیږي که چیری التارك په معنی دقاتل سره شي نو انا مبتدا ابن التارك الخ ورله خبر اوالبکري اګرچي مضاف الیه دي لیکن دابه سره دبشر نه مفعول به شي دپاره دالتارك او علیه الطیر به حال واقع شي دالتارك نه او ترقبه به دعلیه دمتعلق دضمیرنه حال واقع شي او وقوع دواقع جمع ده دابه دترقبه دضمیرنه حال شي کچري التارك په معنی دمصیر سره شي نو التارك به په دي صورت کي دوه مفعولین غواړي یو مفعول به البکري بشر شي اومفعول ثاني به علیه الطیر واقع شي پس معنی دشعر به داسي شي که چیری التارك به معنی دقاتل سره شي نو معنی به داسي چي زه زوی (ای فرزند یعني بیساط ۱۲) دهغه حایم چي هغه قتل کونکی دی بکري بشر لره به حال دکون دبکری بشر کي چي مارغان انتظار کوی به بکری بشر باندي په حال دکون در نوع کي دنوع دمارغانو نه مراد داده که چیری التارك به معنی دمصیر سره شي نو معنی به داسي چي زه زوي دهغه حایم چي هغه ګرزونکی دی بکری بشر لره ایضاً غالباً دواړه معاني یو دي ـ زده کړه داخبره چي بشر عطف بیان دی دالبکری نه بدی سان سره چي دنحوي قانون دي چي عامل دمبدل منه عامل دپاره دبدل وي ددي قانون مانحت کچری بشر بدل واقع شي دبکری نه نو التارك عامل دی دالبکری دپاره پس دغه عامل به دبشر دپاره هم وي او تقدیر به داسي چي التارك بشر پس داترکیب غلط دی ځکه چي دتارك اضافت بشر ته ونه او دصفت اضافت چي کله معمول ته وسي نودا به اضافت لفظي وي او داضافت لفظي فائده دا ده چي تخفیف راولي به لفظ کي حالانکه به التارك بشر کي دغه تخفیف نه دی رامنع سوي، اګرچي دالتارك تنوین حذف سوي لیکن داد الف لام دوجي نه حذف سوی دي چي داضافت کله غیر صحیح ثابت شي نو معلومه سوه چي بشر عطف بیان دي دالبکري نه.

# اَلْبَابُ الثَّانِیْ فِی الْاِسْمِ الْمَبْنِیْ

وَهُوَاسْمٌ وَقَعَ غَیْرَمُرَکَّبٍ مَعَ غَیْرِهٖ مِثْلُ ا،ب،ت،ث وَمِثْلُ وَاحِدٌ وَاثْنَانِ وَثَلٰثَةٌ وَ کَلَفْظَةِ زَیْدٍ وَحْدَهٗ فَاِنَّهٗ مَبْنِیٌّ بِالْفِعْلِ عَلَی السُّکُوْنِ وَمُعْرَبٌ بِالْقُوَّةِ اَوْشَابَهَ مَبْنِیَّ الْاَصْلِ بِاَنْ یَکُوْنَ فِی الدَّلَالَةِ عَلٰی مَعْنَاهُ مُحْتَاجًا اِلٰی قَرِیْنَةٍ کَالْاِشَارَةِ نَحْوُهٰؤُلَاءِ وَ نَحْوِهَا اَوْیَکُوْنَ عَلٰی اَقَلَّ مِنْ ثَلٰثَةِ اَحْرُفٍ اَوْتَضَمَّنَ مَعْنَی الْحَرْفِ نَحْوُذَا وَمَنْ وَاَحَدَ عَشَرَ اِلٰی تِسْعَةَ عَشَرَوَهٰذَا الْقِسْمُ لَایَصِیْرُمُعْرَبًا اَصْلًا:

**ترجمه** دویم باب په بیان دا سم مبنی او احکامو د دی کښ ده مبنی هر هغه دا سم چه د بل سره نه وی مرکب لکه (ا۔ب۔ت۔ث) او لکه واحد اثنان و ثلثه او لکه لفظ د زید خان له دا مبني دي بالفعل په سکون سره او بالقوه معرب ده او یا مبنی الاصل سره مشابه ده پدي قرینه سره چه داپه خپله معنی بانديږ دلالت کولو نه قرینی نه محتاج ده لکه اسم اشاره مثلا هؤلاء او هم دغه رنګی نور اسماء اشارات یا به د دريو حروفو نه به کم وي یا به د حرف معنی لره متضمن وی لکه ذا او من او احد عشر نه ترتسعة عشر پوري او دا قسم بالکل معرب نه ګرځي

**تشریح** مصنفؒ چي کله فارغ شو دبحث داسم معرب نه پس شروع يې اوکړه په بيان داسم مبنی کې ۔مبنی صيغه داسم مفعول ده په وزن د مَرْمِیٌّ دابه صل کي مبْنُوي وو دبني يُبْنی نه پس واو او ياچي کله جمع شي او اول ساکن وی نو واو به په ياء بدليږي او ياء به په ياکي مدغمه شي مبْنِیٌّ شو پس ضمه نه بانصله ده نو په کسرى بدله سوه مبنِیٌّ نري جوړ سو مبني به لغت کي قرار او عدم تغير نه وايي او دعامو محاورانو مطابق د مبني معنى خايي دينګ کيښودو ۔د تعريف نه مخکي دا بيژندل ضروري دي چي مبني په دوه قسمه ده يو قسم هغه اسم مبني ده چي هغه هميشه دپاره مبني وي او معرب کيدي نه شي دويم هغه اسم مبني ده چي وي مبني لکن صلاحيت په کي دمعرب وي پس مصنف تقريباً دواړه تعريفه کړي دي اول تعريف مبني هغه اسم ده چي واقع شوي وي په ترکيب کي داسي ترکيب چي متحقق نه وي عامل دده سره مثلا لکه حروف هجاء ا۔ب۔ت۔ث الخ دامبنيات دي ليکن دخپل عامل سره واقع شي نو بيابه معرب وي لکه جاءني الفٌ رايت الفاً مررت بالف يالکه اسماء اعداد هم مبنيات دي ليکن کله چي عامل محقق شي نو بيابه معرب وي لکه جاءني احدٌ رايت احداً مررت باحدٍ يالکه اسماء معدوده زيد ۔عمر ۔بکر وغيره داهم مبنات دي

لکن کله چي دعامل سره متحقق شي نو بيا به معرب وي لکه جا ءني زيدٌ رأيت زيداً ومررت بزيدٍ.

**فان قيل** د اسم مبني تعريف ذکر شو حالانکه د حروف هجا مثال د دي د پاره غير صحيح دي ځکه د اخو حروف دي او تعريف د اسم دي نو څه وجه ده.

**قلنا** به دي حروفو کي دوه احتماله دي يو دا چي د دي حروف اشکال دي لکه مثلاً شکل د الف دا دي (ا) او شکل د ب دا دي (ب) وغيره او دي اشکالو نه مسمّيات وايي. دويم دا چي د دي حروف اسامي دي يعني نومونه د دي حرونو لکه (ا) د دي شکل نوم او اسمي الف ده وغيره پس به مثال د تعريف کي دري حروف اسمي مرادي نه اشکال او مسمّيات. پس دا به اسماؤ کي داخل شو

## تعريف د مبني او حکم د مبني

**دويم تعريف دمبني** هغه دي چي مشابه وي دمبني اصل سره او مبني اصل (مبني اصل بالقوه دي يعني صلاحيت د معرب يکي نه وي ۱۲) دري دي جمله حروف فعل ماضي امر حاضر معروف پس د په دي دريو اسباؤ کي چي دهريو سره کوم اسم مشابه او گرزي نو دا به مبني وي او د مشابهت دپاره به اصل کي اووه وجي دي لکن مصنفؒ دري وجي ذکر کړي دي چي مقصود دي

(۱) يوه وجه د مشابهت احتياج دي يعني کوم اسم چي محتاج وي هر مبني نه لکه اسماء اشارات چي محتاج دي مشار اليه نه پس دا مشابه دي دمبني لاصل سره.(۲) دويمه وجه د مشابهت دا ده چي کوم اسم بناء د حروف ثلاثه نه اقله وي (اقل من الثلاثه) لکه مَنْ ذا اي ظرف زمني وغيره.

(۳) دريمه وجه د مشابهت دا ده چي کوم اسم بغير د حرف عاطف نه متضمن او گرزي نو دا اسم به مشابه د مبني لاصل سره وي لکه اَحَدَ عَشَرَ اي احدٌ وعشرٌ او واو حذف شوي دي د پاره د دي چي احد متصل شي د عشر سره د پاره د ترکيب د اضافت تعدادي. پس اَحَدَ مبني دي او عشر هم مبني دي ځکه چي دا دواړه متضمن دي بغير د حرف عاطف نه الااثنا عشر پدي کي اثنا مبني نه دي ځکه چي دا مشابه د تثنيي سره دي پس دا معرب دي

وَحُكْمُهُ اَنْ لَّا يَخْتَلِفَ اٰخِرُهٗ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ وَحَرَكَاتُهٗ تُسَمّٰى ضَمًّا وَفَتْحًا وَكَسْرًا وَسُكُوْنُهٗ وَقْفًا وَهُوَعَلٰى ثَمَانِيَةِ اَنْوَاعِ الْمُضْمَرَاتِ وَاَسْمَاءُ الْاِشَارَاتِ وَالْمَوْصُوْلَاتِ وَاَسْمَاءُ الْاَفْعَالِ وَالْاَصْوَاتِ وَالْمُرَكَّبَاتِ وَالْكِنَايَاتِ وَبَعْضُ الظُّرُوْفِ.

**ترجمه** حکم د مبني دا دي چه آخر د دي به نه مختلف کيږي به اختلاف د عواملو سره او دي نه نوم حرکات کيخودلو شي ضمه، فتحه، کسره او سکون به نوم وقف کيخودلي شي او د اسم

مبني په اته قسمه ده (۱) مضمرات (۲) اسماء اشارات (۳) موصولات (۴) اسماء افعال (۵) اصوات (۶) مركبات (۷) كنايات (۸) بعض الظروف

**تشريح** دادی چې آخر دمبني نه مختلف كيږي په اختلاف دعواملو سره او دريواړه حالته به مبني په يو حركت نونه برقراره وي او يا به په سكون سره برقراره وي پس اعراب دمبني دري دي ضمه. فتحه. كسره او دا مسمى كولى شي په حركت بنائيه سره او دا دي اعراب تو حركت تو توجه تسمه په بحث دمعرب كې په صفحه نمبر ۳۵ باندي واضحه ده البته په مبني كې سكون هم شامل دي او سكون مسمى كولى شي په وقف سره دوجې دوقوف او سكون د نفس نه پوئي شه چې اعراب دمعرب حركات اعرابيه دي او تعبير ترې په رفع نصب او جر سره كيدي شي. دمبني دپاره اته اقسام دي اول اجمال ذكر كيدي شي او بيا د هر واحد خان له په مستقل فصل كې تفصيل راځي (۱) مضمرات (۲) اسماء الاشاراه (۳) موصولات (۴) اسماء الافعال (۵) اصوات (۶) مركبات (۷) كنايات (۸) بعض الظروف سره بعض سره احتراز راغي دهغه ظروفو نه چې كوم معربات دي يعني ټول ظروف مبني نه دي.

## المضمر

فَصْلٌ: اَلْمُضْمَرُ اِسْمٌ وُضِعَ لِيَدُلَّ عَلٰى مُتَكَلِّمٍ اَوْمُخَاطَبٍ اَوْغَائِبٍ تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ لَفْظًا اَوْمَعْنًى اَوْحُكْمًا وَهُوَ عَلٰى قِسْمَيْنِ مُتَّصِلٌ وَهُوَ مَالَا يُسْتَعْمَلُ وَحْدَهُ اِمَّا مَرْفُوْعٌ نَحْوُ ضَرَبْتُ اِلٰى ضَرَبْنَ اَوْمَنْصُوْبٌ نَحْوُ ضَرَبَنِيْ اِلٰى ضَرَبَهُنَّ وَاِنَّنِيْ اِلٰى اِنَّهُنَّ وَمَجْرُوْرٌ نَحْوُ غُلَامِيْ وَلِيْ اِلٰى غُلَامِهِنَّ وَلَهُنَّ وَمُنْفَصِلٌ وَهُوَ مَا يُسْتَعْمَلُ وَحْدَهُ اِمَّا مَرْفُوْعٌ نَحْوُ اَنَا اِلٰى هُنَّ اَوْمَنْصُوْبٌ نَحْوُ اِيَّايَ اِلٰى اِيَّاهُنَّ فَذٰلِكَ سِتُّوْنَ ضَمِيْرًا:

**ترجمه** اول فصل په بيان د اسم مضمر كښې ده، او مضمر هر هغه اسم ده چه وضع كړې شوي وي لپاره د دي چه په متكلم يا مخاطب يا غائب باندي دلالت وكړي. چه د دي ذكر مخكښې تير شوي ده خواه لفظاً وي يا معناً وي يا حكماً وي. او ضمير په دوه قسمه ده اول متصل دويم منفصل. متصل هغه ضمير ده چه د دي استعمال خان له نه كړى ضمير متصل به يا به مرفوع وي لكه ضَرَبْتُ نه ضَرَبْنَ پوري يا به منصوب وي لكه ضَرَبَنِي نه واخلي تر ضَرَبَهُنَّ پوري يا به مجرور وي لكه غُلَامِي يا لِي نه واخلي تر غُلَامِهِنَّ او لَهُنَّ پوري دوهم قسم منفصل ده او منفصل هغه ضمير ده چه استعمال د دي خان له كړى او دا ضمير به يا مرفوع وي لكه اَنَا نه هُنَّ پوري يا به

منصوب وی لکه ایای نه ایاهن پوري پس دا ، ۲۰ ، ضمیرونه دي

**تشریح** اول قسم دمبنیانو نه مضمر ده پس دتقدیم دمضمر دپاره دوه وجې دي یوه وجه داده چې دضمر په معرب والی باندي تراوسه پوري جاقول نه دي کړی دویمه وجه داده چې مضمرات ټول مبنیات دي یعنی یو قسم په کې هم معرب نه ده پس ځکه مضمر مقدم شوی ده به نورو مبنیاتو باندي.

**وجه دبناء دپاره دمضمر** مضمرات ځکه مبنی دي چې دامشابه دي دحروفو سره په احتیاج کې یعنی څنګه چې حروف محتاج وي انضمام دکلمی دیګرته دغه شان مضمرات محتاج دي مرجع ته. وجه تسمیه دضمیر داده چې دضمیر معنی ټول دي نوګویا دوي هم په خپلو کلماتو کې پوشیده اویټ پراته وي یا دضمیر معنی لاغر او کمزور تیاده نوګویا دوي په نسبت داسم ظاهر ډیر ضعیف او کمزوری دي.

**تعریف دمضمر** مضمر نوم دهغه شي ده چې دلالت کوي په متکلم یا مخاطب یا غائب باندي ګویا ضمیر به دري قسمه ده یو ضمیر دمتکلم دویم ضمیر دمخاطب او دریم ضمیر دغائب اُس مسئله داده چې په ضمیر غائب کې تقدم دمرجع ضروري دي یعنی دضمیر غائب نه به مخکې مرجع ذکروي برابره خبره ده که دغه مرجع لفظاً وي او که معناً وي او که حکماً وي او دا مسمی ده په تقدم حکمي سره پس لفظاً په تقدم لفظي سره مسمی ده او معناً په تقدم معنوي سره مسمّی ده

**تَقَدُّمِ لفظی**: تقدم لفظي دیته وایې چې مرجع مخکې دضمیر غائب نه لفظاً ذکروي او دا په دوه قسمه ده یا به تقدم لفظي حقیقتاً وي او یا به رتبتاً وي لکه ضرب زیدٌ غلامه ضمیر دغائب به غلامه کې (ه) دي چې راجع دي زید نه او زید په حقیقت کې مقدم دي دضمیرنه دویم مثال لکه ضرب غلامه زیدٌ. زید اګرچې مرجع مؤخر دي لیکن دا په تقدیر دمرتبې سره مقدم دي ځکه چې په معنی کې قائل خل مقصد بیانوی نو وایې چې وهل اوکړه دزید غلام نو دیته تقدیراً اورتبتاً وایې.

**تقدُّم معنوی**: تقدم معنوي دیته وایې چې به لفظ کې مذکور نوي لیکن از رویی معنی مذکور وی او مستنبط وي دلفظ نه پس داهم په دوه قسمه ده یا به مرجع معنوي بعینه دلفظ نه معلومیږي او یا به لفظ معین نه وي لیکن دعبارت نه معلومیږي یا دمخکې عبارت نه یا دورستنی عبارت نه او دینه سیاق او سباق هم وایې د اول دپاره مثال لکه آیت قرآنی اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی دلته

هو ضمير عدل ته راجع دي او عدل مرجع معنوي دي او دا بعينه داعدلوانه مستنبط دي دَ دويم دپاره مثال لكه وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ په ابويه كې «ه» ضمير ميت ته راجع دي او ميت مرجع معنوي دي ليكن دا دعبارت نه معلوم شوي دي ځكه چې دا واقع دوراثت ده او ميراث دميت نه پاتې كيږي.

**تقدم حكمي**: دا هغه مرجع ده چې واقع وي بعد د ضمير نه ليكن حكماً مقدم وي لكه قل هو الله احد هو ضمير راجع دي الله ته نو پس الله مرجع حكماً مقدم دي او دا راخې دپاره دا رادې دشان تعظيم د مرجع يا د قصيي دپاره حكم ذكر كيږي. وهو على قسمين الخ بدې عبارت دا علم پوري د ضمير تقسيم ذكر كيږي ضمير په دوه قسمه ده ضمير متصل. ضمير منفصل. ضمير متصل هغه ضمير ته وايي چې تنهانه مستعملږي بلكه د چاسره به متصل پيوست وي. ضمير منفصل هغه ضمير ته وايي چې تنها ذكر كيږي او د چاسره پيوست نه وي بلكه جداوي پس هر واحد دي دواړو نه په دري دري قسمه ده متصل مرفوع متصل منصوب متصل مجرور منفصل مرفوع منفصل منصوب منفصل مجرور. ددي نه ټول شپږ اقسام حاصل شو عقلاً او مستعمل پنځه اقسام دي او يو قسم چې ضمير مجرور منفصل دي نه دي مستعمل په كلام عربي كې پس هر واحد د پنځو اقسامو نه په اتلس اتلس ضمائرو مشتمل دي عقلاً بدې شان سره چې دمتكلم دپاره شپږ ضمائر دي د مذكر واحد تثنيي او جمعي او دغه شان د مؤنث متكلم هم دري ضمائر دي نو دا شپږ ثابت شو په دې طريقې سره د مخاطب شپږ ضمائر جوړيږي او دغائب هم شپږ ضمائر جوړيږي نو دا اتلس ضمائر په هر واحد د پنځو اقسامو مذكوروكې جوړيږي نو مجموعه يې نوي (۹۰) ضمائر جوړيږي ليكن دا عقلاً خبره ده او مستعمل يو لس شپېته ضمائر دي او بقيه حذف شوي دي دپاره داختصار ځكه چې هر كله دوه ضميره متحد ذكر دي نو دهغې نه يو حذف شوي ده لكه مثلاً هُمَا هُمَا د مذكر مؤنث دپاره دتثنيي راغلي دي پس يو تري حذف شوي دي او دغه شان د مخاطب نه هم انت يو حذف شوي ده او دمتكلم څلور حذف شوي دي نو دهر واحد دپاره دولس دولس ضمائر ذكر دي نو په پنځو كې دولس ته ضرب وركه چې شپېته ترې جوړشي.

وَاعْلَمْ اَنَّ الْمَرْفُوْعَ الْمُتَّصِلَ خَاصَّةً يَكُوْنُ مُسْتَتِرًا فِي الْمَاضِيْ لِلْغَائِبِ وَالْغَائِبَةِ كَضَرَبَ اَيْ هُوَ وَضَرَبَتْ اَيْ هِيَ وَفِي الْمُضَارِعِ الْمُتَكَلِّمِ مُطْلَقًا نَحْوُ اَضْرِبُ اَيْ اَنَا وَنَضْرِبُ اَيْ نَحْنُ وَ لِلْمُخَاطَبِ كَتَضْرِبُ اَنْتَ وَلِلْغَائِبِ وَالْغَائِبَةِ كَيَضْرِبُ اَيْ هُوَ وَتَضْرِبُ اَيْ هِيَ.

**ترجمه**. بوتې شه چه ضمير مرفوع متصل خاص طور بانديي په ماضي غائب او غائبې كښې پټ وي لكه ضَرَبَ كښې هُوَ او ضَرَبَتْ كښې هي او په مضارع متكلم كښې مطلقا پټ

وی. اضرب کښې انا او نضرب کښې نحن او مخاطب لپاره لکه تضرب یعني انت او غائب او غائبی لپاره لکه یضرب یعني هو او تضرب یعني هی

**تشریح:** پدې واعلم سره دضمیر دویم تقسیم بیانوی پس ضمیر به خالی نه وي یا به مُتلفظ وي یا به نوي اول ته ضمیر بارز وایي اودویم ته ضمیر مستتر وایي پس ضمیر بارز کثیر الاستعمال دی او ضمیر مستتر قلیل الاستعمال دی یعني په مذکوره پنځو اقسامو کې فقط یو قسم دی چې په هغې ضمیر مستتر مستعمل دی چې نوم یې ضمیر مرفوع متصل دی او بیا په دې یو قسم کې فقط په اووه مواضعو کې ضمیر مستتر دی او په بقیه کې ضمیر بارز دی . اووه مواضع داده دوه صیغې د فعل ماضي غائب واحد مذکر مؤنث دي لکه ضرب ای هو او ضربت ای هی او پنځه صیغې د مضارع دي دوه د غائب واحد مذکر مؤنث دي لکه یضرب ای هو او تضرب ای هی او یوه صیغه د مخاطب مضارع دی تضرب ای انت او دوه صیغې د متکلم مضارع دي لکه اضرب ای انا نضرب ای نحن پس دا اووه مواضع د ضمیر مجرور منصل دپوښتنې او بوتلی صیغې دي یعني ضمیر به دې کې مستتر وي

وَفِي الصِّفَةِ أَعْنِيْ اِسْمَ الْفَاعِلِ وَالْمَفْعُوْلِ وَغَيْرَهُمَا مُطْلَقًا:

**ترجمه** او صیغې د صفت کښې یعني اسم فاعل او اسم مفعول او د دې نه علاوه کښې مطلق پټ وی

**تشریح:** او ضمیر مستتر موجود یدې شی به صیغو د صفت کې او د صفت نه مراد اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه اسم تفضیل وغیره دي پس پدې کې به ضمیر مستتر وي مطلقاً د مطلقاً مطلب داده چې په هره صیغه کې به مستتر وي که صیغه د واحد که تثنیه وي او که جمع وي . لکه ضارب ای هو.

وَلَا يَجُوْزُ اسْتِعْمَالُ الْمُنْفَصِلِ اِلَّا لِتَعَذُّرِ الْمُتَّصِلِ كَـ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَمَا ضَرَبَكَ اِلَّا اَنَا وَاَنَا زَيْدٌ وَمَا اَنْتَ اِلَّا قَائِمًا:

**ترجمه** او د ضمیر منفصل استعمالول جائز نه دی مگر چه کله متصل متعذر وی لکه اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَمَا ضَرَبَكَ اِلَّا اَنَا وَاَنَا زَيْدٌ وَمَا اَنْتَ اِلَّا قَائِمًا کښې ضمیر را وړلې شي

**تشریح:** د دې قاعدې خلاصه داده چې وضع د ضمیر د پاره د اختصار ده یعني ضمیر متصل مختصر ده د ضمیر منفصل نه او د دې فائده او مقصد اختصار دی لکه به ضربتُ کې تُ ضمیر متصل د متکلم ده پس د مخصر ده په نسبت سره انا ته پس د نحوسانو دا قاعده او قانون ده چې به کوم

ځایي کې دضمیرمتصل استعمال آسان وي نوهلته به ضمیرمنفصل نه مستعملیږي البته چې کله ضمیرمتصل متعذرشي نو بیابه ضمیرمنفصل ذکرکیږي اودی دېره مصنفؒ خلور امثله ذکرکړي دي چې ضمیرمتصل په کې متعذردہ لکه ایّاك نعبدُ داپه اصل کې نعبدك وو ضمیرمتصل مقدم شوپه خپل عامل باندې نوك نعبد شو أس ك ضمیرمتصل متعذرشو خکه چې ك مقدم نه ذکرکیږي پس ضمیرمنفصل موراوړوچې ایاك دي نوایاك نعبد شو اوکه حوت **پوښتنه** اوکړی چې داولی مقدم شونو **جواب** به ورته ورکړی چې دامقدم شوی دېره دحصراواختصاریعني خاص تاره مونږعبادت کوُو ۔ماضربك الاانا ضمیرمنفصل ده اوپه ضرب کې دك ضمیرمتصل دتعذردوجې نه مستعمل شوي ده دېاره داختصاص ۔حرف الفاصل ده پس دنفي اواثبات په مابین کې چې فاصله راشي داداسارہ داختصاص وي یعنې وهل تانه دي کړي مګرخاص ماوهل کړيدي ۔ماأنابه پدبکی انا ضمیرمنفصل دضمیرمتصل دعذردوجې نه مستعمل دي اوداهغه موضع ده چې عامل په کې معنوي ده انامبتدا،زیدخبراو دمبتداعامل معنوي وي اوبه عامل معنوي پوري ضمیرمتصل نه پیوست کیږي نوځکه دوی محتاجه دي ضمیرمنفصل ته چې اناده ددي مقصدهم اختصاص ده

**ماانت قائماً**: ددي دپاره بوقاعده ده چې په کوم ځایي کې عامل دضمیرمتصل حرف وي نوپه حرف پوري ضمیرنه پیوست کیږي نوځکه دوي محتاجه شومنفصل ته چې انت ده

**وَاعْلَمْ اَنَّ لَهُمْ ضَمِيْرًايَقَعُ قَبْلَ جُمْلَةٍ تُفَسِّرُهُ وَيُسَمّٰى ضَمِيْرُالشَّانِ فِي الْمُذَكَّرِوَضَمِيْرُ الْقِصَّةِ فِي الْمُؤَنَّثِ نَحْوُقُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ وَاِنَّهَا زَيْنَبُ قَائِمَةٌ وَيَدْخُلُ بَيْنَ الْمُبْتَدَأِ وَالْخَبَرِصِيْغَةُ مَرْفُوْعٍ مُنْفَصِلٍ مُطَابِقٌ لِلْمُبْتَدَأِ اِذَا كَانَ الْخَبَرُمَعْرِفَةً اَوْاَفْعَلَ مِنْ كَذَا:**

**ترجمه** یوشی شه چه نحویانولپاره یو ضمیرده چه د جملی نه مخکښ واقع کیږی. چه د دي ضمیرتفسیرکوی: دی ضمیرته به مذکرکښ ضمیرشان او په مؤنث کښ ضمیرقصه ونیلی کیږی. لکه قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ او اِنَّهَا زَيْنَبُ قَائِمَةٌ د مبتدا او خبر په منځ کښ صیغه د مرفوع منفصل داخلیږی. چه د مبتدا سره مطابق وی چکله خبر معرفه وی یا اسم تفضیل مستعمل وی په منْ سره

**تشریح** په دي واعلم کې مصنفؒ دضمیردري اقسام بیانوي (۱) ضمیرالشان (۲) ضمیر قصه (۳) ضمیرفصل پس کوم ضمیرچې دجملې خبریې نه مخکې واقع شي (برابره خبره ده که جمله اسمیه وي اوکه جمله فعلیه وي) داسې جمله چې تفسیراووضاحت دضمیرکوي پس کیږي دغه

ضمیر دمفرد مذکر د پاره ذکر وو نو دیته ضمیر شان وایي او که دغه ضمیر د مفرد مؤنث د پاره ذکروي نو دیته ضمیر قصه وایي وجه تسمیه د دواړو داده چې ضمیر الشان شان ته راجع وي او هغه شان په ذهن د متکلم کې وي او ضمیر قصه ورته ځکه وایي چې داقصې ته راجع وي او هغه قصه په ذهن د متکلم کې وي لکه مثال د ضمیر الشان دادی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ هو ضمیر د مفرد مذکر دی او راجع دی شان ته یعني او وایه چې شان دادی چې الله یو دی. د ضمیر قصې د پاره مثال لکه انها زینب قائمة پدې کې هاضمیر قصې ته راجع دی یعني قصه داده په تحقیق سره چې زینب ولاړه ده یعني عاشق چې کله خپله لیلی په تصور کې ځان ته مخامخ قائمه کړي.

۳. **ضمیر فصل**: داهغه ضمیر ده چې واقع شي په مابین د مبتدا او خبر کې داسې خبر چې معرفه وي یا صیغه د اسم تفضیل مستعمل وي نو داهم یسان د معرفې گرزي پس دغه ضمیر چې کله متخلل شي نو مطابق به وي د مبتدا سره که مبتدا واحد وي نو ضمیر به هم واحد وي که تثنیه وي که جمع وي نو ضمیر به هم موافق وي. په ضمیر فصل کې اختلاف ده دخلیل په نزد ضمیر فصل حرف ده نه اسم او دنورو نحاتو په نزد اسم ده نه حرف پس مصنفؒ په دواړو قولونو باندې دعمل کولو په بناسره لفظ د صیغې ذکر که چې صیغة المرفوع منفصل الخ او صیغه حرف اسم یو لوړ شامله ده

**وَيُسَمّٰى فَصْلًا لِاَنَّهٗ يَفْصِلُ بَيْنَ الْخَبَرِ وَالصِّفَةِ نَحْوُ زَيْدٌ هُوَ الْقَائِمُ وَكَانَ زَيْدٌ هُوَ اَفْضَلَ مِنْ عَمْرٍو قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ:**

**ترجمه**: دیته نوم فصل کیښودلی شي ځکه چه دا د خبر او صفت به درمیان کښې فصل راولي لکه زَيْدٌ هُوَ الْقَائِمُ او كَانَ زَيْدٌ هُوَ اَفْضَلَ مِنْ عَمْرٍو او د الله تعالی ارشاد ده چه كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ

**تشریح**: فصل ورته ځکه وایي چې دا جدا والی راولي په مابین د معرفې او صفت کې لکه زید هو القائم پس که چیرې هو ضمیر فاصل ذکر نه شي نو بیا به التباس لازم شي چې زید موصوف د قائم ورله صفت واقع شوی ده او دا هم ممکنه ده چې زید مبتدا داده قائم ورله خبر ده پس د التباس د دفعې د پاره نحو یانو ضمیر فصل لازه که په مابین د مبتدا او خبر معرفې کې نو ځکه مسمی ده په ضمیر فصل سره. مثال ثاني کان زید هو افضل من عمرو زید اسم د کان ده افضل من عمرو ورله خبر ده معرفه ده او هو ضمیر فصل ده. دریم مثال کقوله تعالی كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ ت ضمیر اسم د کان ده او الرقیب ورله خبر معرفه ده انت ضمیر فصل ده.

# اسماء اشارات

**فَصْلٌ: اَسْمَاءُ الْاِشَارَةِ مَاوُضِعَ لِيَدُلَّ عَلٰى مُشَارٍ اِلَيْهِ وَهِيَ خَمْسَةُ اَلْفَاظٍ لِسِتَّةِ مَعَانٍ وَذٰلِكَ ذَا لِلْمُذَكَّرِ وَذَانِ وَذَيْنِ لِمُثَنَّاهُ وَتَا وَتِيْ وَذِيْ وَتِهْ وَذِهْ وَتِهِيْ وَذِهِيْ لِلْمُؤَنَّثِ وَتَانِ وَتَيْنِ لِمُثَنَّاهُ وَاُولَاءِ بِالْمَدِّ وَالْقَصْرِ لِجَمْعِهِمَا:**

**ترجمه** دویم فصل په بیان د اسماء اشراتو کښې ده اشاره هر هغه اسم ده د لپاره وضع کړې شوی وی چه په مشار الیه باندې دلالت وکړي چه هغه پنځه الفاظ دي شپږ معانو لپاره. او ذاد واحد مذکر لپاره او ذان او ذین تثنیه مذکر لپاره او تا،تی،ذی، ذه تهی، او ذهی واحد مؤنث لپاره او تان او تین تثنیه مؤنث لپاره او اولاء مد او قصر سره د جمع مذکر او مؤنث لپاره راځي

**تشریح** دویم قسم د اسماء مبنیه نه اسم اشاره ده په اسم اشاره کښې دوه مسئلې دي یوه وجه دبناء ده او دویم تعریف د اسم اشری دی

**وجه دبناء** دبناء داسم اشاری دپاره دوه وجې دی (۱) یو وجه داده چې بعضي اسماء اشارات اقل من الثلاثه دی (۲) دویمه وجه دبناء دپاره دا ده چې اسماء اشارات متشابه دي دحروفو سره په احتیاج کې یعني اسماء اشارات محتاج وی مشار الیه نه.

**تعریف** داهغه اسماء دي چې وضع شوي وی دی دپاره چه دلالت په تعین دمشار الیه باندې وکړي په اشاری حسّیه سره. اشاری حسّیه دپه وایې چې پـه ظاهري اندامونو اوپه جوارحو سره اشاره اوکړې شي یا دا چې دغه مشار الیه محسوس وي چې اندامونو سره محسوسیږي برابره خبره ده که دغه محسوس حقیقتاً وي او که حکماً تقدیراً وي دا تعمیم دپاره ددفعي داعتراض دي لکه مثلاً

**فان قیل** آیت شریف ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ذالکم اسم اشاره ده الله مشار الیه ده حالانکه الله محسوس نه دي

**قلنا** الله په هرځاې کې موجود ده او حاضر ده او دلائل هم دهغه په وجود دسته یس داحکماً دي. اسمایې اشارات تول شیږدي عملاً دري دمذکر او دری دمؤنث دي لیکن مستعمل پنځه دي ځکه چې دجمعې مذکر او جمعي مؤنث صیغه مشترکه ده اُولَاءِ اُولٰى (۱) فا: دادمذکر واحد دپاره راځي اوکله کله پري هايي تنبیهیه داخلیږي لکه هذا (۲) ذَانِ ذَیْنِ: دا دواړه

دتثنیې مذکر دپاره راځي فرق په دواړوکي داده چي ذان په حالت رفعي کښې اوذین په حالت نصبي اوجرې کي مستعمليږي

**فان قیل** په مبنیاتوکي تغیرنه راځي حالانکه ذان اوذین په حالتونوکي متغیرکیږي نوځه وجه ده؟

**قلنا** ستاخبره صحیح ده ځکه چي بعضي نحویانو داپه معرباتوکي شمارکړي دي لیکن دا تغیرد عامل د وجې نه دي بلکه دابه اصل وضع کي متغیروضع شوي ده اومبني حکم باختلاف العوامل ده

**ت**: تامقابل دها، ده داواحد مؤنث دپاره راځي اونورلغات به کې دادي چي کله کله تي ویلي شي په سائي نسبتي سره اوکله کله تري ذي جوړیږي اوکله کله تري ذه جوړیږي اوکله کله نري تهي جوړیږي اوکله کله تري ذهي جوړیږي بس اسم لغات به ساکي جوړیږي (۴) تان تین دادواړه دتثنیې مؤنث دپاره راځي علی هذا قیـس بالمذکر (۵) اولاءِ اُولئک داجمعې مذکراومؤنث دپاره مستعمليږي په مداوقصرد واړوسره .

**وَقَدْ يُلْحَقُ بِأَوَائِلِهَا هَاءُ التَّنْبِيْهِ نَحْوُهٰذَا وَهٰذَانِ وَهٰؤُلَاءِ:**

**ترجمه** او کله د دي په شروع ها، تنبیهي ورسره ملحق کیږي لکه هٰذا وهٰذانِ وهٰؤُلاءِ

**تشریح** ددي عبارت مطلب داده چي داسم اشاري په اول باندي هاین تنبیهیه داخليږي دپاره دبیداراولو دمخاطب لکه هذا هؤلاء وغیره بس په هٰذا کي ذا اسم اشاره ده اوها په معنی د أَنبه سره ده .

**وَيَتَّصِلُ بِأَوَاخِرِهَا حَرْفُ الْخِطَابِ وَهُوَ أَيْضًا خَمْسَةُ أَلْفَاظٍ لِسِتَّةِ مَعَانٍ نَحْوُكَ كُمَا كُمْ كِ كُمَا كُنَّ فَذٰلِكَ خَمْسَةٌ وَعِشْرُوْنَ الْحَاصِلُ مِنْ ضَرْبِ خَمْسَةٍ فِيْ خَمْسَةٍ وَهِيَ ذَاكَ إِلٰى ذَاكُنَّ وَذَانِكَ إِلٰى ذَانِكُنَّ وَكَذٰلِكَ الْبَوَاقِيْ:**

**ترجمه** اوکله د دي په آخر کښي حرف خطاب متصل کیږي او هغه پنځه الفاظ دي شپږ معانو لپاره لکه ک کما کم کِ کما کُنَّ دا تول پنځه په پنځوکښ ضرب کړل نو پنځه ویشت شول او د ذاک نه تر ذاکُنَّ پوري او ذانک نه تر ذانکُنَّ پوري همدغه رنګي به هي نور ګرځانونه دي

**تشریح** ددي عبارت خلاصه داده چي متصل کیږي به په آخرد اسماء اشاره پوري حروف خطابیه. اوداحروف خطابیه دتعین دمخاطب دپاره راځي بس : ابه په هرلفظ پوري متصل کیږي اواسماء اشارات ټول پنځه دي نوپنځ له به پنځ کي ضرب ورکړي - پنځه ویشت احتماله تري

جوړيږي مثلاً حروف خطابيه دادي لَكُمَا كُمْ لَكُنَّ متصل په هر لفظ پوري لکه ذاك
ذاكما الخ ذانك ذانكما الخ اولئك اولئكما الخ وكذالك البواقي.

وَاعْلَمْ اَنَّ ذَا لِلْقَرِيْبِ وَذَالِكَ لِلْبَعِيْدِ وَذَاكَ لِلْمُتَوَسِّطِ:

**ترجمه** پوهه شه چه ذا اشاره قريبي لپاره راځي او ذالك اشاره بعيدي لپاره او ذاك اشاره متوسط لپاره راځي

**تشريح** پدی واعلم کي مصنفؒ په مابين د ذا ذالِك ذاكَ کی فرق بیانی پس دادریواړه دمفرد مذکر دپاره مستعملیږي فرق په کی دادي چي ذا د قریب دپاره ذکر کیږي ځکه چي حروف په کي اقل ده او ذالِكَ د بعيد دپاره ذکر کیږي ځکه چي حروف په کي زيات دي او ذاكَ د مشار اليه متوسط دپاره ذکر کيږي (ځکه چي حروف ئکي متوسط دي پس دا مسئله راجعه او اصل ده چي اعتبار حروف لره دي ۱۲)

## الموصول

فَصْلٌ: اَلْمَوْصُوْلُ اِسْمٌ لَا يَصْلَحُ اَنْ يَكُوْنَ جُزْءً تَامًّا مِنْ جُمْلَةٍ اِلَّا بِصِلَةٍ بَعْدَهُ وَالصِّلَةُ جُمْلَةٌ خَبَرِيَّةٌ وَلَا بُدَّ مِنْ عَائِدٍ فِيْهَا يَعُوْدُ اِلَى الْمَوْصُوْلِ مِثَالُهُ اَلَّذِيْ فِيْ قَوْلِنَا جَاءَ الَّذِيْ اَبُوْهُ قَائِمٌ اَوْ قَامَ اَبُوْهُ وَهُوَ الَّذِيْ لِلْمُذَكَّرِ وَاللَّذَانِ وَاللَّذَيْنِ لِمُثَنَّاهُ وَالَّتِيْ لِلْمُؤَنَّثِ وَاللَّتَانِ وَاللَّتَيْنِ لِمُثَنَّاهَا وَالَّذِيْنَ وَالْاُلٰى لِجَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَاللَّاتِيْ وَاللَّوَاتِيْ وَاللَّاتِيْ لِجَمْعِ الْمُؤَنَّثِ وَمَا وَمَنْ وَاَيٌّ وَاَيَّةٌ وَذُوْ بِمَعْنَى الَّذِيْ فِيْ لُغَةِ بَنِيْ طَيٍّ كَقَوْلِ الشَّاعِرِ شعر فَاِنَّ الْمَاءَ مَاءُ اَبِيْ وَجَدِّيْ وَبِئْرِيْ ذُوْ حَفَرْتُ وَذُوْ طَوَيْتُ اَيْ اَلَّذِيْ حَفَرْتُهُ وَالَّذِيْ طَوَيْتُهُ وَالْاَلِفُ وَاللَّامُ بِمَعْنَى الَّذِيْ صِلَتُهُ اِسْمُ الْفَاعِلِ وَاسْمُ الْمَفْعُوْلِ نَحْوُ جَاءَنِي الضَّارِبُ زَيْدًا اَيْ اَلَّذِيْ يَضْرِبُ زَيْدًا اَوْ جَاءَنِي الْمَضْرُوْبُ غُلَامُهُ:

**ترجمه** دريم فصل په بيان د اسم موصول کښ ده. موصول هر هغه اسم ده چه د جملي جز تام کولو صلاحيت نه لري مګر د صلي په ذريعي سره چه کوم د نه پس وی او صله جمله خبريه وی، پدی جمله کښ د يو ضمير موجود بدل ضروری دی چه کوم موصول طرف ته راجع وی: د هغی مثال لکه الذی ده زمونږ پدي قول کښ لکه جاءَ الذی ابوهٗ قائمٌ اوقامَ ابوهٗ او الذی مذکر لپاره راځي او اللذان واللذين تثنيه لپاره او التی مؤنث لپاره او اللتان واللتين د مؤنث تثنيه لپاره او الذين الٰی د جمع مذکر لپاره او اللاتی واللواتی واللائی د جمع مؤنث لپاره او ما ومَن واَیّ واَيّة او ذو په معنی د الذی سره

په لغت د بنی طی کښې لکه د شاعر دا قول فَإِنَّ الْمَاءَ مَاءُ أَبِي وَجَدِّي وَبِئْرِي ذُوْ حَفَرْتُ وَذُوْ طَوَيْتُ یعنی الذی حفرته او الذی طویته او کوم الف لام چه په معنی الذی سره دي د هغې صله اسم فاعل او اسم مفعول وی لکه جَاءَنِيْ الضَّارِبُ زَيْدًا یعني جَاءَنِيْ الْمَضْرُوْبُ غُلَامُهُ

**تشریح** دریم قسم د اسماء مبنیونه موصول ده په موصول کې هم دوه خبري وي یو وجه د بناء ده او دویم تعریف د موصول ده پس د موصول د بناء وجه دا ده چې موصول مشابه ده د حروفو سره او حروف مبنی اصل دي او مشابهت یې په احتیاج کې ده یعني موصول محتاج وي صلې ته. **تعریف**: موصول هغه اسم ده چې دي جزء تام نه ګرزي د جملې نه مګر په ذکر کولو د صلې سره د دي مطلب دا ده چې موصول بغیر د صلې نه جزء تام په جمله کې نه شې واقع کیدي او د اصله به جمله خبریه وي برابره خبره ده که اسمیه وي او که فعلیه وي او لابدي به وي یو عائد او درابط نه په دغه جمله خبریه کې پشان د ضمیر به وی او راجع به وی موصول ته پس د دي عائد په وجه به د موصول او صلې په مابین کې ربط او ارتباط راځي لکه جاءني الذی ابوه قائم ابوه قائم جمله اسمیه خبریه صله ده او ضمیر الذی ته راجع ده موصول سره د صلې نه فاعل شې د جاءني جاء فعل نون وقایه ی ضمیر د متکلم مفعول به فعل سره د فاعل او مفعول به نه جمله فعلیه خبریه موصوله شو. پس اسماء موصولات شپږ دي **الذي** دا د واحد مذکر د پاره راځي.

**الذان، الذَيْنِ**: دا دواړه د تثنیې مذکر د پاره راځي الذان یې حالت رفعي کې الذين په نصبي جري کې او په دي کې اختلاف وضعي ده **والتی** دا د مفرد مؤنث د پاره راځي. **اللتان، اللتين** دا دواړه د تثنیې مؤنث د پاره راځي علی هذا القیاس **الذین، الأُلٰی** دا د جمعې مذکر د پاره راځي. **اللاتی، اللواتی، اللاء، اللائی** دا د جمعې مؤنث د پاره راځي.

**وما ومن وای وایة وذو بمعنی الذي الخ**: ما او من دواړه د موصولاتو نه دي البته کله کله د نورو معانیو د پاره هم مستعملیږي چې کله موصولي شي نو بیا به په معنی د الذی سره وي او شامل به وي مفرد مثنی جمع مذکر مؤنث عاقل بالغ صبي عبد حُر مجنون وغیروته ای به معنی د الذی سره دیا وایة معنی د التی سره ده او لفظ د ذو په معنی د الذی سره ده لیکن یو قسم ذو معرب ده په معنی د صاحب سره پس دا قسم ذو به معنی د الذی سره دی او مبنی ده په نعت د بنی طی کې مثلاً جاءني ذو قام رایت ذو قام مررت بذو قام. دا د نورو عربو په نزد موصولي نه دي لیکن فقط د بنی طی په لغت کې لکه شعر د بنی طی.

فان الماء ماء ابي وجدي          وبیری ذو حفرت وذو طویت

**ترجمه** داأبه أبه دی خما دبلار اونیکه. او کوهي خما هغه ده چي ما کنستلی ده او هغه ده چي ما راغونډ کړی دي پس په دي شعر کي ذو په معنی دالذي سره ده ای الذي حفرته والذي طویته.

**والالف واللام:** دینه الف لام اسمي وایي داخکه موصولي ده او مدخول ددوي اسم فاعل او اسم مفعول ده پس که صله یي اسم فاعل وي نو تعبیر به تري سه فعل معروف سره کیدیشي او که صله یي اسم مفعول وي نو تعبیر به سري سه فعل مجهول سره کیدي شي لکه جاءني الضارب زیدا ای الذي یضرب زیدا و جاءني المضروب غلامه ای الذي یضرب غلامه.

**وَيَجُوزُ حَذْفُ الْعَائِدِ مِنَ اللَّفْظِ إِنْ كَانَ مَفْعُولًا نَحْوُ قَامَ الَّذِيْ ضَرَبْتُ أَيِ الَّذِيْ ضَرَبْتُهُ:**

**ترجمه** او د لفظونه ضمير حذف کول جائز دی که چيری هغه مفعول واقع شوی وی لکه قَامَ الَّذِيْ ضَرَبْتُ أَيِ الَّذِيْ ضَرَبْتُهُ

**تشریح** ددي قاعدي خلاصه داده چي حذف دعائد دلفظ دصلي نه جائزده پدي شرط سره که چیری داعائد مفعول به وي او حذف دعائد په هغه وخت کي هم جائزده چي کله دده په وجه په کلام کي طول پیدا کیږي مثال. قام الذي ضربت ای ضربته ضمیر د مفعول به دي حذف شوي ده.

**وَاعْلَمْ أَنَّ أَيًّا وَأَيَّةً مُعْرَبَةٌ إِلَّا إِذَا حُذِفَ صَدْرُ صِلَتِهَا كَقَوْلِهِ تَعَالَى ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا أَيْ هُوَ أَشَدُّ:**

**ترجمه** پوهي چه أیٌ او ایه معرب ده چه کله د دي صلي شروع حصه حذف کړي شي لکه د الله تعالی دا قول ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا أَيْ هُوَ أَشَدُّ

**تشریح** پدي واعلم کي مصنفؒ دأیّ وأیّةٌ داعراب او دبناء صورتونه بیانوي پس داهم دموصولاتونه دی کله معرب وي او کله مبني په ضمي سره وي خلاصه یي داده چي ددي دوارولفظونو خلور صورته جوړیږي وجه دحصریي داده چي د لفظونه به خالي نوي یا به مضاف واقع شوي وي یا به نه وي که چیری مضاف واقع وي نو دوه احتمالات دي یا به صدر دصلی (صدر دصلی اونئی جزء دصلی ته وایي ۱۲) مذکوروي او یا به محذوف وي که چیری مضاف نه وي نو بیا هم دي کي هم دوه احتماله دي یا به صدر د صلی مذکوروي او یا به محذوف وي پس یول خلور صورتونه حاصل شو

اوس تفصیل داده چي په دریو صورتونو کي به د الفظونه معرب وي هغه داد چي دالفظونه کله مضاف واقع وي او صدر دصلی مذکوروي او چي کله بدون الاضافت وي برابره

خبره ده که صدر دصلې مذکور وي او که محذوف وي نو په وخت اضافت کې يوصورت او په وخت دغيراضافت کې دواړه صورتونه په دي دريوصورتونوکې به دالفظ نه معرب وي فقط په يوصورت کې به مبني په ضمې سره وي هغه داچې کله مضاف وي اوصدردصلې محذوف وي لکه مثال قوله تعالی ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا زمونږمقصدپه أَيُّهُمْ کې دې ده داموصول ده اواشدعلی الرحمن عتيا صله ده بس اول جزدصلې نه حذف شوی ده چې هو ده ای هوالذ اشدعلی الخ. ای دلته مبني ده په دي شان سره چې کله صدردصلې محذوف شي نوای محتاج شي صدردصلې ته پس مشابهت په کې داحتیاج دحروفو سره راغی نو داصورت څکه مبني ده يعني دبناوجه يې داده. مصنف فقط دمبنی مثال ذکرکه اودمعرب مثالونه يې ترک کړل څکه چې بحث دمبني ده

## اسماء افعال

فَصْلٌ: أَسْمَاءُ الْأَفْعَالِ هُوَ كُلُّ اِسْمٍ بِمَعْنَى الْأَمْرِ وَالْمَاضِي نَحْوُ رُوَيْدَ زَيْدًا أَيْ أَمْهِلْهُ وَهَيْهَاتَ زَيْدٌ أَيْ بَعُدَ:

**ترجمه** خلورم فصل په بيان د اسماء افعال کښ دي دا هر هغه اسم ده چه په معنی د امر اوماضي سره وي لکه رُوَيْدَ زَيْدًا يعني بعُدَ

**تشريح** خلورم قسم داسماء مبنيونه اسماء افعال دي پس په دي کې هم دوه خبري دي يوه وجه د بناء، ده اوبل تعريف ده

**وجه دبناء** اسماء افعال څکه مبني دي چې دامناسب دمبنيانوسره دي په دي شان سره چې يابه په معنی دماضي سره وي اويابه په معنی دامرحاضرسره وي اودادواړه مبني الاصل دي نوګوياسماء افعال مشابه دمبني الاصل سره دي

**تعريف** اسماء افعال هغه دي چې کائن اوثابت وي په معنی دماضي يادامرحاضرسره نه دمضارع سره. لکه رُوَيْدَ زَيْدًا رويدبه معنی دامهل سره دي اوامهل په معنی دأَنْظِرْ سره ده صيغه دامرحاضرده بل مثال لکه هيهات زيدًا اي بَعُدَ زَيْدٌ اَلْبُعْدَ صيغه دماضي مجهول ده اسماء افعال ټول نهه دي په شعراو کې ذکردي.

نه بود اسمای افعالی کذان شش ناصبند دُونَكَ بَلْهَ عَلَيْكَ حَيَّهَلْ باشد وها

پس رویند باز رافع اسم راهیهات دان بازشتان است وسرعان یادگیراین بیتها

اَوْ كَانَ عَلَى وَزْنِ فَعَالِ بِمَعْنَى الْأَمْرِ وَهُوَ مِنَ الثُّلَاثِيِّ قِيَاسٌ كَنَزَالِ بِمَعْنَى اِنْزِلْ وَتَرَاكِ بِمَعْنَى اُتْرُكْ:

**ترجمه** دا اسم به په وزن د فعال سره وي او په معنی د امر به وي او د ثلاثي مجرد نه قیاس ده لکه نزال په معنی د انزل سره او تراك په معنی د اترك سره

**تشریح** داعطف ده په والمنقض باندي خلاصه یې داده چي یو قسم اسماء افعال هغه دي چې کوم ذکرشو او دویم قسم اسماء افعال دادي چې په وزن د فَعَالِ باندي وي او په معنی دامرحاضرسره وي پس ددي دباره قاعده داده چي په اعتبار د حروفو سره ثلاثي وي نودا به قیاس کولی شي په قاعدي وزنی سره لکه نَزَالِ بروزن فَعَالِ ثلاثي مزید دي په معنی د اِنْزِلْ امرحاضرسره ( نازل که ، یالکه تَرَاكِ بروزن فَعَالِ په معنی د اُتْرُكْ سره ده او ددي نه علاوه که چیري په وزن درباعي یاخماسي راشي نو دا به قیاسي نوي بلکه دا به سماعي وي چي اوبه دلي به دعربو نه لکه مثلاً به وزن درباعي مزیدو ده لفظه راغلي دي یو لفظ دغرغاده به معنی د دلاهب سره بلقب الصبیان ته وایي یعنی ماشومانو ته دلوبو کولو حکم کول . اوبل لفظ دقرقاده به معنی دصوات سره جاته د آوازونو کولو حکم کولو ته وایي پس دا سماعي لفظونه دي بغیر د قیاس نه .

وَيَلْحَقُ بِهِ فَعَالِ مَصْدَرًا مَعْرِفَةً كَفَجَارِ بِمَعْنَى الْفُجُوْرِ اَوْ صِفَةً لِلْمُؤَنَّثِ نَحْوُ يَافَسَاقِ بِمَعْنَى فَاسِقَةٍ وَيَالَكَاعِ بِمَعْنَى لَاكِعَةٍ اَوْ عَلَمًا لِلْاَعْيَانِ الْمُؤَنَّثَةِ كَقَطَامِ وَغَلَابِ وَحَضَارِ وَهٰذِهِ الثَّلَاثَةُ لَيْسَتْ مِنْ اَسْمَاءِ الْاَفْعَالِ وَاِنَّمَا ذُكِرَتْ هٰهُنَا لِلْمُنَاسَبَةِ:

**ترجمه** او لاحق کیږي به د سره فعال په حال کون د دي کښ چه دا مصدر به معرفه وي لکه فجار به معنی د فجور سره یا به د مؤنث صفت وي لکه فساق په معنی د فاسقة سره یا لکاع به معنی دلاکعة سره یا به خاص د مؤنث علم وي لکه قطام ، غلاب حضار دا دری واړه د اسماء افعالو نه نه دي صرف مناسبت دوجه نه دلته ذکر کړي شو

**تشریح** ددي عبارت خلاصه داده چي دریم قسم هغه اسمایي افعال دي چي نه وي په معنی دماضي سره او نه دامرحاضرسره بلکه مشابه وي فقط په وزن کې د فعال سره او دا یوخو مواضع دي (۱) ، اوله موضع داده چي کله مصدر معرفه د فعال به وزن راشي لکه فجار په معنی دالفجور سره ده چي دامصدر معرفه ده . (۲) ، دویمه موضع داده چي کله ملحقه

شي صیغه د صفت دپاره د مؤنث په فعال بوزي لکه فساق په معنی د فاسقة یالکع لکاع (لکاع په معنی د خوار سره دي لکه خوئ ' روایې جی خوارشي ۱۲) په معنی لاکعة سره پس داهم مشابه د فعال امری سره ده نو څکه مبنیات دي ۳: د ریمه موضع داده چې کوم اعین یعني نومونه د مؤنثانو مشابه اوګرزي د فعال امری سره نو دا به هم مبنیات وي لکه قطام (قطام معدول ده د قطاباینه او غلاب معدول او حضار معدول ده د حضایارنه او تمار معدول ده د تمایارنه ۱۲) . غلاب حضار اوبولفظ بقول استاذی نمار ده او دا نومونه په دوه قسمه دي چې په آخر کې یې راء وي هغې ذوات الراء وایې اوچې راء یې په آخرکې نه وي هغې نه غیرذوات الراء وایې پس نامونه مشابه د فعال امری سره دي او یوسبب په کې علمیت دي او بل سبب په کې عدل دي نو څکه مبنیات ګرزیدلي دي .

## الاصوات

**فَصْلٌ**: اَلْاَصْوَاتُ كُلُّ لَفْظٍ حُكِيَ بِهٖ صَوْتٌ كَغَاقٍ لِصَوْتِ الْغُرَابِ اَوْصُوِّتَ بِهٖ الْبَهَائِمُ كَنَخٍّ لِاِنَاخَةِ الْبَعِيْرِ:

**ترجمه** پنځم فصل په بیان د اصواتو کښې ده اسم صوت دا هر هغه لفظ ده چه دې ذریعې سره دبو آواز حکایت شوي وي لکه غاق د کارغه آواز لپاره یا پدې سره آواز شوي وي څناورو ته لکه نخ د اوښ کینولو لپاره

**تشریح** پنځم قسم د مبنې تو نه اصوات ده. اصوات د صوت جمع ده او د صوت دوه معنی دي ۱، آواز کولو ته وایي ۲، مطلق آواز یعني نفس صوت ته وایي.

**وجه دبناء**: اصوات به ترکیب کې نه شي واقع کیدي یعني داسې قسم ترکیب په کې نشته چې دخیل عامل سره متحقق شي پس تعرف د مبنی بري صادق ده څکه اصوات مبنیات دي

**تعریف** مصنفؒ د اصواتو دوه اصطلاحي معنی ذکرکړي دي

**اوله معنی** اصوات هرهغه لفظ ته وبلی شي چې حکایت کولی شي سه ده سره دبل آواز یعني چې په ده سره بل آواز نقل کړی شي لکه لفظ غاق یصوت الغراب دا د کارغه او از نقل کولو ته وایي لکه یو سړی غاق غاق وایي نو بندي کې مقصد د فصی حکایت نقل کول وي یالکه د سپي آواز نقل کول وغیره وغیره . او صُوِّتَ به دا د اصوات دو بمه معنی ده یعنی

داهر هغه لفظ ده چي حکايت په آواز سره کيدي شي خناور وسره لکه داوبن دکښولو دپاره لفظ دنخ ذکر کيږي يا دخناورو درابللو دپاره يادشړلو دپاره دبرونو دپاره دخناوروچي کوم الفاظ مستعمليږي دېته اصوات وايي اودريم قسم اصوات داهم شماردي چي کله انسان دافسوس تعجب په وخت کي کوم الفاظ دخلی نه اوباسي لکه آه وغيره يادتکليف اودردپه وخت کي لکه واه وغيره داهم اصوات شميرلی شي۔

## المركبات

**فَصْلٌ**: اَلْمُرَكَّبَاتُ كُلُّ اِسْمٍ رُكِّبَ مِنْ كَلِمَتَيْنِ لَيْسَتْ بَيْنَهُمَا نِسْبَةٌ:

**ترجمه** دښپږم فصل سره بيان دمرکبانو کښ ده مرکب هر هغه اسم ده چه مرکب وی د دووکلمونه او د دوی په درميان کښ هيڅ نسبت نه وی

**تشريح** شپږم قسم دمبنياتونه مرکبات مبنيه دي په المرکبات کي الف لام عهدي ده اوبه دي سره اشاره هغو مرکب ته نوي ده چي هغه مبنيات دي

**تعريف** داهر هغه اسم ده چي مرکب دکلمتينونه داسي کلمي چي په مابين دُدوي کي هيڅ قسم نسبت نه وي نه په کي نسبت اضافي وي نه په کي نسبت اسنادي وي اونه په کي نسبت توصيفي وي يعني مرکبات نول شپږدي پس دادري قسم تري خارج شول ځکه چي دامعربات دي اودري اقسام بقيه مبني دي يو مرکب بنائی دی دويم مرکب صوتی دي دريم مرکب تعدادي دي

**فان قيل** په تعريف کي دکلمتين په عوض کي اسمين پکارده

**قلنا** کلمتين ځکه ذکرشوي ده چي تعريف دمرکب سره مل شي داسي قسم مرکبانو ته لکه مثلاً سيبويه اوبعنيتمز په سيبويه کي اول جزاسم ده اودويم جزءصوت ده اودغه شان بخت اسم ده اونصر فعل ده پس دابه کلمتينو سره داخل شوبه مرکبات مبنو کي۔

فَاِنْ تَضَمَّنَ الثَّانِيْ حَرْفًا يَجِبُ بِنَاؤُهُمَا عَلَى الْفَتْحِ كَاَحَدَعَشَرَاِلٰى تِسْعَةَ عَشَرَاِلَّا اِثْنَيْ عَشَرَفَاِنَّهَا مُعْرَبَةٌ كَالْمُثَنّٰى وَاِنْ لَّمْ يَتَضَمَّنْ ذٰلِكَ فَفِيْهَا لُغَاتٌ اَفْصَحُهَا بِنَاءُالْاَوَّلِ عَلَى الْفَتْحِ وَاِعْرَابُ الثَّانِيْ غَيْرَمُنْصَرِفٍ كَبَعْلَبَكَّ نَحْوُجَاءَنِيْ بَعْلَبَكَّ وَرَاَيْتُ بَعْلَبَكَّ وَمَرَرْتُ بِبَعْلَبَكَّ:

**ترجمه** که چيری په دي مرکب کښ دا دويمه کلمه متضمنه وه حرف لره نو واجب ده مبني کول د دواړو کلمو په فتحې سره لکه احد عشر نه واخلی تر تسعة عشر پوری ،مگر په

اثنا عشر کښ دا اوله کلمه معربه ده په شان د تثنيې. او که چيري دا دويمه کلمه نه وه متضمنه حرف لره نو بيا مرکب کښ بيا ډير لغات دي چه افصح بري لغاتو کښ داده چه اوله کلمه به مبني وي په فتحې سره او دويمه کلمه به معربه وي او غير منصرف به وي لکه بعلبك سلا جَاءَنِيْ بَعْلَبَكُّ وَرَأَيْتُ بَعْلَبَكَّ وَمَرَرْتُ بِبَعْلَبَكَّ

**تشریح** ددي عبارت خلاصه داده چي يا به دويمه کلمه په مرکب کي متضمنه دحرف دپاره وي يا به نه وي پس که چيری دويمه کلمه متضمنه دحرف دپاره وي نو واجبه ده چي دواړه کلمي به مبني په فتحې سره وي لکه احدعشر اي احد وعشر تا تسعة عشر الا اثنا عشر . عشر دويمه کلمه ده او دا متضمنه ده دپاره دحرف چي واوتري حذف شوي ده مگر اثنا عشر بري مستثنی ده خکه چي مشابه د تثنيې سره او معرب ده . دی قسم مرکباتو ته مرکب تعدادي وايي پس که چيری دويمه کلمه متضمنه دحرف لپاره نه وي نوسه دی کي تقريباً څلور لغات دی لکن فصيح او راجع لغت دادي چي اوله کلمه به مبني په فتحې سره وي او دويمه کلمه به معرب غيرمنصرف وي لکه بعلبك (بعلبك دی قسم نه مرکب امتزاجي هم وايي او مرکب بنايي ورته هم وايي - ۱۲) بعل مبني ده په فتحې سره او مبني خکه ده چي دا په وسط کي ده او په وسط کي اعراب نه جاری کیږي او په فتحې سره خکه دي چي فتحه اخف الحرکات ده بك معرب غيرمنصرف ده يعني کسره او تنوين به بري ممنوع وي لکه جاء نی بعلبك . رايت بعلبك ومررت ببعلبك حالت جري به فتحې سره وي خکه چي کسره پري نه شي راتلي

## الكنايات

فَصْلٌ: الْكِنَايَاتُ هِيَ أَسْمَاءٌ تَدُلُّ عَلَى عَدَدٍ مُبْهَمٍ وَهِيَ كَمْ وَكَذَا أَوْ حَدِيْثٍ مُبْهَمٍ وَهُوَ كَيْتَ وَذَيْتَ:

**ترجمه** اووم فصل په بيان د کناياتو کښ ده، کنايات هر هغه اسماء دي چه کوم په عدد مبهم باندي دلالت کوي چه هغه کَمْ و کَذَا دي يا يو خبري مبهم باندي دلالت کوي لکه كَيْتَ وَذَيْتَ

**تشریح** اووم قسم د مبنيو ته کنايات دي . لفظ د کنايات مطلق ذکر دي لکن الف لام په کي عهدي دی په دي سره اشاره هغه کناياتو ته شوي ده چي هغه مبني دي کنايات جمع د کناية ده په معنی هغه خبره چي دهغي مراد او مقصد واضح نه وي بلکه پوشيده وي **تعريف** کنايات هغه اسماء دي چي دلالت کوي په اعداد ومبهمو باندي يا به دلالت کوي به حديث مبهم باندي . د عدد

مبهم مقدار دبولسو نه تریوکم سلوپوري دي اودي دپاره دوه لفظه مستعمل وي کم اوکذا (کم وکذا وجه دبنا، يې داده چه کوم استفهامي متضمن دحرف استفهام دپاره دي اوکم خبري محمول دي په استفهامي باندي. کذا ځکه مبني دي چې ذا يکې اشاره ده اوك يکې حرف ده نوداهم دمبنياتونه دي ۱۲) لکه مثلاً څوك سائل اوايي چې کم درهماً عندك ستاسره څومره پيسې دي نوپه جواب دکنايې کې ورته اوايي چې کذا سره دپورته کولو ددوارو لاسونودګوتو.

بعني داکنايه ده چې څماسره شل درهمه دي دحديث مبهم نه مرادهغه خبري دي چې دمتکلم اومخاطب په مابين کې پټې وي لکه کيت (داځکه مبني ده چې په ترکيب کې دخپل عامل سره نه ده واقع بس تعريف دمبني پدي صادق دي ۱۲) وذيت ددي تعبيربه لغت فارسي کې په جنيست چنيست سره کيږي اوبه اردوکې ايساايسابه پښتوکي داسي داسي باندي پشان نور داسې الفاظ چې مرادترې علاوه متکلم اومخاطب نه بل څوته نه حاصليږي.

**وَاعْلَمْ اَنَّ كَمْ عَلٰى قِسْمَيْنِ اِسْتِفْهَامِيَّةٌ وَمَا بَعْدَهَا مَنْصُوْبٌ مُفْرَدٌ عَلَى التَّمِيْزِ نَحْوُ كَمْ رَجُلًا عِنْدَكَ وَخَبَرِيَّةٌ وَمَا بَعْدَهَا مَجْرُوْرٌ مُفْرَدٌ نَحْوُ كَمْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ اَوْ مَجْمُوْعٌ كَمْ رِجَالٍ لَقِيْتُهُمْ وَمَعْنَاهُ التَّكْثِيْرُ:**

**ترجمه** پوهي شه چه کم په دوه قسمه ده اول استفهامي ده دي مابعد به تميز کيدلو دوجه نه مفرد منصوب وي لکه كَمْ رَجُلًا عِنْدَكَ دويم قسم کم خبري ده، د دي مابعد به مفرد مجرور وي لکه كَمْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ يا به مجموع وي لکه كَمْ رِجَالٍ لَقِيْتُهُمْ معنى د دي به کثرت وي

**تشريح** پدي واعلم کې مصنف دکم قسمين بيانوي چې کم په دوه قسمه ده (۱) کم استفهامي (۲) کم خبري. کم استفهامي ديته وايي چې دلالت به استفهام اوبه سوال استفسارباندي کوي لکه مثلاً كَمْ رَجُلًا عِنْدَكَ ستاسره څومره سړي دي داکم استفهامي دي اوددي بعد لفظ به منصوب مفردوي لکه رجلاً مفرد منصوب ده حالانکه دلالت په کثيرافرادوکوي اودامنصوب ده بنابرتميزيعني داتميزواقع ده اودنصب دپاره وجه داده چې داسماع دعربونه داسې ده کم خبري ديته وايي چې دي سره خبرورکولي شي دپاره دکثرت اوکم خبرمابعد لفظ يعني تميزبه مجروروي کله به مفردوي اوکله به جمع وي لکه کم مال انفقته مال مجرورمفردي او مجموع لکه کم رجال لقيتهم داجمع مثال ده ددي تميزدمجرورکيدو وجه داده چې دامشابه ده دعدد کثيرسره اوعدد کثيرمجروروي.

**وَتَدْخُلُ مِنْ فِيهِمَا تَقُوْلُ كَمْ مِنْ رَجُلٍ لَقِيْتُهُ وَكَمْ مِنْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ:**

**ترجمه** په دې دواړو کښې لفظ مِنْ داخلیږي لکه كَمْ مِنْ رَجُلٍ لَقِيْتُهُ او كَمْ مِنْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ

**تشریح** ددې قاعدې خلاصه دا ده چې داخلیږي ورسره دکم استفهامي او خبرې دواړو نه من بیانیه پدې کې دوه احتماله دي که چیرې په مابین دکم او تمیز کې فاصله نه وي نو بیا ذکر دمن جائز دي او که فاصله وي نو بیا واجب دي داول دپاره مثال لکه کم من رجل لقیته پدې کې فاصله نشته خکه که چیرې من ترې لرې کړې شي نو معنی بیا هم صحیح ده دثاني دپاره مثال لکه آیت شریف كَمْ مِنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنَاهَا دا من واجب ده خکه چې فاصله موجود ده په مابین دکم او تمیز کې

**وَقَدْ يُحْذَفُ التَّمْيِيْزُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ نَحْوُ كَمْ مَالُكَ اَىْ كَمْ دِيْنَارًا مَالُكَ وَكَمْ ضَرَبْتَ اَىْ كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتَ:**

**ترجمه** او کله به تمیز د قرینې موجود والي دوجه نه حذف کیږي لکه كَمْ مَالُكَ یعني كَمْ دِيْنَارًا مَالُكَ او كَمْ ضَرَبْتَ یعني كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتَ

**تشریح** ددې قاعدې خلاصه دا ده چې کله قرینه دانه موجوده وي په تمیز دکم باندې نو بیا حذف دتمیز جائز دي لکه کم مالك ای کم دینارًا مالك دلته قرینه دا ده چې مالك مرفوع ده او تمیز دکم منصوب یا مجرور وي نو معلومه شوه چې مالك تمیز نه ده بلکه تمیز دینارًا ده چې حذف شوي ده۔ دپاره مثال لکه کم ضربتَ ای کم ضربة ضربتَ.

**وَاعْلَمْ اَنَّ كَمْ فِي الْوَجْهَيْنِ يَقَعُ مَنْصُوْبًا اِذَا كَانَ بَعْدَهُ فِعْلٌ غَيْرُ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ بِضَمِيْرِهِ نَحْوُ كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ وَكَمْ غُلَامٍ مَلَكْتَ مَفْعُوْلًا بِهِ وَنَحْوُ كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتَ مَصْدَرًا وَكَمْ يَوْمًا سِرْتَ وَكَمْ يَوْمٍ صُمْتُ مَفْعُوْلًا فِيْهِ وَمَجْرُوْرًا اِذَا كَانَ قَبْلَهُ حَرْفُ جَرٍّ اَوْ مُضَافٌ نَحْوُ بِكَمْ رَجُلًا مَرَرْتَ وَعَلٰى كَمْ رَجُلٍ حَكَمْتُ وَغُلَامَ كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ وَمَالَ كَمْ رَجُلٍ سَلَبْتُ وَمَرْفُوْعًا اِذَا لَمْ يَكُنْ شَىْءٌ مِنَ الْاَمْرَيْنِ مُبْتَدَاً اِنْ لَمْ يَكُنْ ظَرْفًا نَحْوُ كَمْ رَجُلًا اَخُوْكَ وَكَمْ رَجُلٍ ضَرَبْتُهُ وَخَبَرًا اِنْ كَانَ ظَرْفًا نَحْوُ كَمْ يَوْمًا سَفَرُكَ وَكَمْ شَهْرٍ صَوْمِيْ:**

**ترجمه** پوهه شه چه کم په دواړو صورتونو کښې منصوب واقع کیږي او د نه پس به دا سې فعل نه وي چه د نه اعراض کوي په ضمیر کښې مشغولیدلو دوجه نه لکه كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ وَكَمْ غُلَامٍ مَلَكْتُ په حال کون ده کښې چه دا مفعول به ده او لکه كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتُ په حال

کون د دی کښې چه دا مفعول مطلق ده او كَمْ يَوْمًا سِرْتَ وَكَمْ يَوْمًا صُمْتُ په حال کون د دي کښ چه دا مفعول فيه ده. او کم به مجرور وی چه کله د نه مخکښی حرف جریا مضاف وی لکه بِكَمْ رَجُلًا مَرَرْتَ وَعَلٰى كَمْ رَجُلٍ حَكَمْتُ وَغُلَامَ كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ وَمَالَ كَمْ رَجُلٍ سَلَبْتَ او کم به مرفوع وی چه کله د دوو امرونو نه یو امر مبتدا وی، کچرته ظرف نه وی لکه كَمْ رَجُلًا أَخُوكَ وَكَمْ رَجُلٍ ضَرَبْتُهُ او خبر به وی کچرته ظرف وی لکه كَمْ يَوْمًا سَفَرُكَ وَكَمْ شَهْرًا صَوْمِي.

**تشريح** بدي واعلم کي مصنفؒ دکم داعراباتو محلاً ذکر کړی دی بس کم به واقع کیږي په محلاتو ثلا ثه وودنصب کي (۱) دکم نه بعد به کله فعل یا شبه فعل وي دا سي فعل چي مشغول وي په مفعول کي نه په ضمیر کي لکه کم رجلاً ضربت وکم غلام ملکتُ دلته کم په محل دنصب کي واقع ده ضربت بدون الضمیر دي او عمل به رجلاً کوي (۲) کله کله محل دنصب په مصدر سره وي يعني مفعول مطلق به واقع وي لکه کم ضربةً ضربت اوکم ضربت ضربتُ (۳) کله کله محل دنصب په مفعول فیه سره وي لکه کم یوماً سرت اوکم یوم صُمْتُ.

**محل د جر** کله کله کم په محل د جر کي واقع کیږي په هغه وخت کي چي مخکي تري حرف جر راغلی وي یا مضاف لکه خلو امثله مذکور في الکتاب دي دوه دکم استفهامي دپاره دي اول دجر دويم دمضاف او دوه امثله دکم خبري دپاره ذکر دي کتب وربسي مطالعه که.

**محل درفعي** کم که چیری په محل دنصب او جر کي نوي نو بیابه دوه احتماله جوړیږي (۱) که چیری کم مستعمل په ظروفو کي نه وي نو دا به مرفوع وي بنابر ابتدا ئیت (۲) که مستعمل په ظروفو کي وي نو دا به مرفوع بنابرخبریت وي امثله مذکور في الکتاب دي. ددي خلاصه دا شوه چي کم په محلاتو داعرابو ثلاثه وو کي مستعمل دی شي.

# الظروف المبنية

فَصْلٌ: اَلظُّرُوْفُ الْمَبْنِيَّةُ عَلٰى اَقْسَامٍ مِنْهَا مَا قُطِعَ عَنِ الْاِضَافَةِ بِاَنْ حُذِفَ الْمُضَافُ اِلَيْهِ كَقَبْلُ وَبَعْدُ وَفَوْقُ وَتَحْتُ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ اَيْ مِنْ قَبْلِ كُلِّ شَيْءٍ وَمِنْ بَعْدِ كُلِّ شَيْءٍ هٰذَا اِذَا كَانَ الْمَحْذُوْفُ مَنْوِيًّا لِلْمُتَكَلِّمِ وَاِلَّا كَانَتْ مُعْرَبَةً وَعَلٰى هٰذَا قُرِئَ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلٍ وَمِنْ بَعْدٍ وَتُسَمّٰى الْغَايَاتِ.

**توجمه** انم فصل په بيان د ظروف مبنى كښ دى او دا په قسمه باندي دي. ديكښ بعض هغه اسما، ظروف دي چه د اضافت نه قطع كړي شوى دى بدي طريقې سره چه د هغې مضف اليه حذف كړي شوي وى لكه قَبْلُ وَبَعْدُ وَفَوْقُ وَتَحْتُ او د الله پاك ارشاد دي لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ يعنى مِنْ قَبْلِ كُلِّ شَيْءٍ وَمِنْ بَعْدِ كُلِّ شَيْءٍ دا په هغه وخت كښ چكله دا اسم محذوف د متكلم په نسب كښ موجود وى كچرته نه وو نو بيا به معرب وى د وجه نه ونبلى شوى دى لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلٍ وَمِنْ بَعْدٍ او ديته ئى نوم غايات كيخودلو

**تشريح** اته قسم دمبنياتو نه بعض ظروف دى او دا دمبنياتو آخري قسم ده او مخكي په اجمال كى مصنف بعض الظروف ذكر كړي وو نو دلته څكه ظروف مقيد كړى شو په قيد د المبنيه سره پس بعض ظروف مبنى دى.

**منها:** بعضى د ظروفونه هغه مبنى دي چې هغه منقطع گرزيدلى وي دپاره داضافت يعني هغه ظروف چي مضاف اليه يې محذوف منوي وي . په نيت دمتكلم كي ،لكه بَعْدُ قَبْلُ، فَوْقُ، تَحْتُ وغيره دا ظروف مكانى دي او دامشتمل دي په احتمالاتو ثلاثو پابه مضاف اليه دقبل بعد مذكوروي ب به محذوف وي كه مذكوروي نو په دي صورت كي قبل بعد وغيرها معرب وي . كه مضاف اليه محذوف وي نو په دي كي دوه احتماله دي يابه محذوف نَسْيًا مَنْسِيًّا وي يابه محذوف منوي وي . نسيا منسيا دينه وايې چي نه مذكوروي او نه په نيت دمتكلم كي وي . منوي دينه وايي چي مذكورنه وي ليكن به نيت دمتكلم كي به وي لكه مثال قال الله تعالى لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ دلته اگرچي من جاره ذكر ليكن جرئې نه دي وركړى څكه چي دا مبنى په ضمى سره دي او مضاف اليه ئې محذوف منوي دي تقدير يې دادى اى من كل شئ ومن بعدكل شئ دا په نيت دمتكلم كى وي . ددي دنفس بنا، دپاره

وجه داده چې مضاف اليه نزد ي حذف شې نودامحتاج شې دغه محذوف ته نوپس مشا بهت يې دحروفو سره په احتياج کې ده ځکه مبنى دي اومبنى په ضمې سره دي ددې دپاره وجه داده چې ضمه ثقيل الحرکت ده اوددې نه مضاف اليه حذف شوي دي نو أس ثقيل حرکت غواړي نوضمه ورته أبخلې شوه .

**وتسمى الغايات:** داقسم ظروف مسمى کړې شوي دي په غايات سره . داجمع دغاية ده په معنى انتهااونهايت ته وايي پس ددې سره يې مناسبت پدې شان سره ده چې دمضاف اليه دحذف نه ورستودمتکلم صوت اوکلام په دې ځايې انتها، نه رسي ځکه ورته غايات وايي .

**مِنْهَا حَيْثُ بُنِيَتْ تَشْبِيْهًا لَّهَا بِالْغَايَاتِ لِمُلَازَمَتِهَا اِلَى الْاِضَافَةِ اِلَى الْجُمْلَةِ فِى الْاَكْثَرِ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ وَقَدْ يُضَافُ اِلَى الْمُفْرَدِ كَقَوْلِ الشَّاعِرِ (شعر) اَمَا تَرٰى حَيْثُ سُهَيْلٍ طَالِعًا اَىْ مَكَانَ سُهَيْلٍ فَحَيْثُ هٰذَا بِمَعْنٰى مَكَانَ وَشَرْطُهَا اَنْ تُضَافَ اِلَى الْجُمْلَةِ نَحْوُ اِجْلِسْ حَيْثُ يَجْلِسُ زَيْدٌ:**

**ترجمه.** يو د ظروف مبينه نه حيث ده او دا مبنى کړې شوي په غايات سره او د دې تشبيه ئې ورکړه دې د وجه نه چه اکثر استعمال ئې اضافت الى الجمله طرف ته لازميږي لکه د الله تعالى دا قول سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ او کله به دا مفرد طرف ته مضاف وي لکه د شاعر دا قول اَمَا تَرٰى حَيْثُ سُهَيْلٍ طَالِعًا يعنى مَكَانَ سُهَيْلٍ دلته به معنى د مکان سره ده او دلباره شرط داده چه جملې طرف ته به مضاف وى لکه اِجْلِسْ حَيْثُ يَجْلِسُ زَيْدٌ

**تشـريح** لفظ دحيثُ مبنى ګرځيدلى ده دوجې دمشابهت نه ددې غاياتو سره اومشابهت يې داده چې حيثُ لازم الاضافت ده اودغه شان غايات هم لازم الاضافت ده اګرچې مضاف اليه يې محذوف وي ليکن به نيت دمتکلم کې وي نوګويادمشابهت دحيثُ دپاره وجه دلزوم (اومبنى په ضمې سره ځکه دي چې دامحمول کړى شوي ده په غاياتوباندى اګرچې مضاف اليه ترحذف کيږي نه ليکن دمشاکلت دوجې نه په ضمې سره ده (۱۲) ده . دحيثُ اضافت اکثر (داکثر مطلب دادي چې کله دحيثُ اضافت مفرد ته هم کيږي ليکن مختار قول دادي چې اضافت دحيث جملې ته شرط دې دوجې داکثروالى نه (۱۲) جملې ته کيږي لکه قوله تعالى سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ . لايعلمون جمله ده اودامضاف اليه ده دپاره دحَيْثُ وقديضاف الخ قد په معنى دقليل سره ده اوکله کله دحيثُ

اضافت مفرد ته هم کیږي لکه قول الشاعر اماتري حیث سهیل طالعاً طالعامضاف الیه مفرد ده او حیث به معنی دمکان سره ده ای اماتري مکان سهیل طالعا ـ دیته حیثُ مکانی وایی۔

وَمِنْهَا اِذَا وَهِيَ لِلْمُسْتَقْبِلِ وَاِذَا دَخَلَتْ عَلَى الْمَاضِيْ صَارَ مُسْتَقْبِلًا نَحْوُ اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ فِيْهَا مَعْنَى الشَّرْطِ وَيَجُوْزُ اَنْ تَقَعَ بَعْدَهَا الْجُمْلَةُ الْاِسْمِيَّةُ نَحْوُ اٰتِيْكَ اِذَا الشَّمْسُ طَالِعَةٌ وَالْمُخْتَارُ الْفِعْلِيَّةُ نَحْوُ اٰتِيْكَ اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَقَدْ تَكُوْنُ لِلْمُفَاجَاتِ فَيُخْتَارُ بَعْدَهَا الْمُبْتَدَأُ نَحْوُ خَرَجْتُ فَاِذَا السَّبُعُ وَاقِفٌ:

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه اذا ده او دا مستقبل لپاره راځی او چه کله به فعل ماضی داخل شی نو د مستقبل معنی ورکوی لکه اِذَاجَاءَنَصْرُاللّٰهِ او په دې کښې معنی دا شرط وی او دي نه پس جمله اسمیه واقع کیدل جائز دی لکه اٰتِيْكَ اِذَاالشَّمْسُ طَالِعَةٌ او بنه خبره داده چه به جملې فعلیې کښې واقع شی لکه اٰتِيْكَ اِذَاطَلَعَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ او کله مفاجات لپاره هم راځی غوره خبره داده چه دې نه پس د مبتدا اوی لکه خَرَجْتُ فَاِذَاالسَّبُعُ وَاقِفٌ

**تشریح** اذا ظرف زمانی ده او وجه دبناېي داده چې اذا متضمن ده حرف شرط سره او حروف ټول مبنی دي. اذا رازی دپاره دمستقبل اګرکه په ماضی داخل شي خو معنی به دماضی مستقبل ته اړه وی. یعني غالبه داده چې دماضی معنی استقبال ته نقل کوي لکه اِذَاجَاءَنَصْرُاللّٰهِ دلته جاء صیغه اګرچې دماضی ده لیکن معنی داستقبال ورکوي چې په هغه وخت کې به راشي امداد دالله تعالی. پس چې اذا کله شرطی شي نو بیا د اذا نه بعد جمله اسمیه هم راتلی شي او جمله فعلیه هم لیکن مختاره او راجح داده چې بعد تري جمله فعلیه راشي لکه امثله مذکورفی الکتاب دي. او کله کله اذا به معنی مفاجاتیه سره هم راځی مفاجئت به معنی د اچانك او ناساپه سره ده یعني یو کار چې سمدسی اچانك واقع شي لکه ضَرَبْتُ فاذالسبع واقف دیته اذا مفاجاتی وایي او دې قسم اذا دپاره بهتره داده چې بعد تري مبتداء یعني جمله اسمیه واقع شي.

وَمِنْهَا اِذْ وَهِيَ لِلْمَاضِيْ وَتَقَعُ بَعْدَهَا الْجُمْلَتَانِ الْاِسْمِيَّةُ وَالْفِعْلِيَّةُ نَحْوُ جِئْتُكَ اِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَاِذِ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ:

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه اذ ده او دا د ماضی لپاره راځی او د نه پس دواړه جملې واقع کیږي جمله اسمیه وی او که فعلیه لکه جِئْتُكَ اِذْطَلَعَتِ الشَّمْسُ وَاِذِالشَّمْسُ طَالِعَةٌ

**تشریح** او بعضې ظروفو مبنيونه اظرفي هم مبني د دحکه وضع دا ذپه شان دحروفوده يعني اقل من ثلاثة أحرفٍ دي. اذوضع شوي دپاره دماضي ده اگر که به مستقبل داخل شي ليکن معنى به د مستقبل نه فعل ماضي ته بدلوي يعني اذ مقابل د اذا ده او د اذا نه بعد جمله اسميه او فعليه دواړه راتللی شي ځکه چې اذ په معنى د شرطيت سره نه ده. اصله مذکور في الکتاب دي.

وَمِنْهَا أَيْنَ وَأَنّٰى لِلْمَكَانِ بِمَعْنَى الْإِسْتِفْهَامِ نَحْوُ أَيْنَ تَمْشِيْ وَأَنّٰى تَقْعُدُ وَبِمَعْنَى الشَّرْطِ نَحْوُ أَيْنَ تَجْلِسْ أَجْلِسْ وَأَنّٰى تَقُمْ أَقُمْ:

**ترجمه** يو د ظروف مبنيه نه اين او انی ده مکان لپاره راځي په معنی د استفهام سره لکه أَيْنَ تَمْشِيْ وَأَنّٰى تَقْعُدُ او د شرط په معنی سره هم راځي لکه أَيْنَ تَجْلِسْ أَجْلِسْ وَأَنّٰى تَقُمْ أَقُمْ

**تشریح** دا دواړه لفظونه راځي د پاره دمکان په معنی د استفهام او استفسار سره يعني په دې سره تپوس دمکان کيدې شي او دېته ظروف مکاني استفهامي وايي لکه اين تمشي وانّى تقعد او کله په معنى د شرط سره هم راځي يعني دا لفظونه به شرط واقع کيږي او ورسته به ترې جزاء ذکر کيږي لکه اين تَجْلِسْ أَجْلِسْ چې کوم ځای ته کيناستل کوې هلته به زه کينم. دلته متکلم خپل فعل جزاء گرزولي ده. د پاره د شرط د فعل د مخاطب.

وَمِنْهَا مَتٰى لِلزَّمَانِ شَرْطًا أَوِاسْتِفْهَامًا نَحْوُ مَتٰى تَصُمْ أَصُمْ:

**ترجمه** يو د ظروف مبنيه نه متى ده زماني لپاره راځي خو په معنی د شرط او استفهام سره راځي لکه متى تصم اصم

**تشریح** او بعضي د ظروفو مبنيه نه متى ده وجه د بناء يې دا ده چې متى متضمن د حرف استفهام د پاره ده او متى وضع شوي ده د پاره د زماني يعني ظروف زماني دي او په دوه قسمه دي يو متى شرطي ده او بل متى استفهامي ده اول مثال د متى شرطي د پاره لکه متى تَصُمْ أَصُمْ متى نصم جمله شرطيه ده اصم جمله جزائيه ده کوى معنى دا سى ده چې په کومه زمانه کې ته روژه وې نو څما به هم روژه وي مثال متى استفهامي د پاره لکه متى تُسَافِرُ أُسَافِرْ دا استفهامي ده چې کله ته سفر کې زه به سفر کوم.

وَمِنْهَا كَيْفَ لِلْإِسْتِفْهَامِ حَالًا نَحْوُ كَيْفَ أَنْتَ أَيْ فِيْ أَيِّ حَالٍ أَنْتَ:

**ترجمه** يو د ظروف مبنيه نه کيف ده استفهام لپاره راځي يعني حال معلومولو لپاره دي لکه كَيْفَ أَنْتَ أَيْ فِيْ أَيِّ حَالٍ أَنْتَ

**تشریح** کیف خکه مبني ده چې متضمن دا ستفهام دپاره ده او د کیف خبله معنی استفهامي حالي ده لکه کیف انت ای کیف حالُ انت . پدې سره جسماني پوښتنه کیدېشي یعني کیف حالكَ ستاحال څنګه ده ای صحتك .

وَمِنْهَا اَیَّانَ لِلزَّمَانِ اِسْتِفْهَامًا نَحْوُ اَیَّانَ یَوْمُ الدِّیْنِ :

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه ایان ده دا زماني لپاره راځي استفهام په صورت کښې لکه اَیَّانَ یَوْمُ الدِّیْنِ

**تشریح** دا ظرف زماني ده وجه دبناء یې داده چې متضمن دا استفهام لره لکه اَیَّانَ یَوْمُ الدِّیْنِ . بوده سه لکه جزاء وی . فرق په مابین دمتی اوایان کې لفظ دمتی عام ده په ماضي یا استقبال کې مستعملیږي . اولفظ دایان خاص ده په استقبال پورې دویم فرق داده چې لفظ دمتی عام دې په هر امر کې راتلې شي او لفظ دایان خاص دې دپاره دعظیم الشان اُمورو لکه مثال مذکورچې یوم الدین بوعظیم امر دی یوم الجزاء ده .

وَمِنْهَا مُذْ وَمُنْذُ بِمَعْنٰی اَوَّلِ الْمُدَّةِ اِنْ صَلُحَ جَوَابًا لِمَتٰی نَحْوُ مَا رَاَیْتُهُ مُذْ اَوْ مُنْذُ یَوْمُ الْجُمُعَةِ فِیْ جَوَابِ مَنْ قَالَ مَتٰی مَا رَاَیْتَ زَیْدًا اَیْ اَوَّلُ مُدَّةِ الْقِطَاعِ رُؤْیَتِیْ اِیَّاهُ یَوْمُ الْجُمُعَةِ وَبِمَعْنٰی جَمِیْعِ الْمُدَّةِ اِنْ صَلُحَ جَوَابًا لِکَمْ نَحْوُ مَا رَاَیْتُهُ مُذْ اَوْ مُنْذُ یَوْمَانِ فِیْ جَوَابِ مَنْ قَالَ کَمْ مُدَّةً مَا رَاَیْتَ زَیْدًا اَیْ جَمِیْعُ مُدَّةِ مَا رَاَیْتُهُ یَوْمَانِ :

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه مذ او منذ ده دا اول مدت لپاره راځي که چیرې ته متی د جواب ورکولو صلاحیت لري لکه مُذْ اَوْ مُنْذُ یَوْمُ الْجُمُعَةِ دا په هغه وخت کښې وئیلی شی چه کله څوک پوښتنه او کړي چه تا د کله نه زید ندی لیدلی . ما چه کله نه هغه ندی لیدلی د هغې اول مدت هغه ورځ د جمعه ده او د جمیع مدت لپاره هم راځي که چیرې ته هغې کښې جواب د کم ورکولو صلاحیت دی لکه رَاَیْتُهُ مُذْ اَوْ مُنْذُ یَوْمَانِ داد هغه سري په جواب کښې وئیلی شی چه تا کله نه زید ندی لیدلی یعني تمام مدت د نه لیدلو هغه دوه ورځې دی چه ندی لیدلی

**تشریح** وجه دبناء یې داده چې یو ځاي کې مذ او منذ په حروفو جارو کې داخل دی لکه

با وتا وکاف ولام واو مذ منذ خلا رُبَّ حاشا من عدا في عن علی حتی الی

پس حروف اصلي مبنیات دي نو دا قسم مذ او منذ اسمي ده نو دا مشابه د حروفو سره ده بله وجه داده چې مُذْ اَقل من الثلاثة اَحْرُفْ ده او مُنْذُ محمول ده په مذ باندې . معنی د مُذْ او مُنْذُ دا ظروف زماني دي او په دې کې دوه احتماله دي بابه هرواحد د مذ او منذ نه ذکرشوي وي په جواب د متی

استفهامي کې او یا به ذکروي په جواب دکم استفهامي کې که چیري اول وي نو ددي نه به مراد او معنی د فعل ابتدايي زمانه وي لکه مثال چې په متی استفهامي سره سائل سوال او کړي چې مَتٰی مَارَأَیْتَ زَیْدًا ددي په جواب کې مارأیته مذ او منذ یوم الجمعة یعني مانه دي لدلی زید دورځې د جمعې نه پدې کې ابتدا د فعل ذکرشوه که چیري هر احد مذ او منذنه په جواب دکم استفهامي کې وي نو ددي نه به مراد دفعل تمامه او جمعه زمنه مراد وي لکه سائل چې کله پوښتنه او کړي چې کَمْ مُدَّةً مَارَأَیْتَ زَیْدًا ددي جواب داده چې مارأیته مذ او منذ یومان پدې کې تامه مُدّه دفعل مراد ده یعني مانه ده لدلی زید دوه ورځې دمذ او منذنه به فقط یو ذکرکیږي.

**وَمِنْهَا لَدٰى وَلَدُنْ بِمَعْنٰى عِنْدَ نَحْوُ اَلْمَالُ لَدَیْكَ وَالْفَرْقُ بَیْنَهُمَا اَنَّ عِنْدَ لَایُشْتَرَطُ فِیْهِ الْحُضُوْرُ وَیُشْتَرَطُ ذٰلِكَ فِیْ لَدٰى وَلَدُنْ وَجَاءَ فِیْهِ لُغَاتٌ اُخَرُ لَدْنِ وَلُدْنِ وَلَدَنْ وَلَدُ وَلُدُ وَلَدْ:**

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه لدی او لدُن ده چه په معنی د عند سره راځی لکه اَلْمَالُ. لَدَیْكَ او د دواړو په درمیان کښ فرق دا ده چه عند لپ ره د سي حضرول ضروري ندي او لدی او لدُن کښ د شي حاضرول ضروري دي او لدن کښ نور لغات هم شته لَدْنِ وَلُدْنِ وَلَدَنْ وَلَدُ وَلُدُ وَلَدْ

**تشریح** داځکه مبنیات دي چې په دې کې نور لغت ده لکه مثلاً لَدْ لُدْ لَدِ لُدِ وغیره دالغات اَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ اَحْرُفٍ دي سر لدی او لَدُنْ ځکه مبني دي او دا په معنی د عند سره ده لکه اَلْمَالُ لَدَیْكَ اَیْ اَلْمَالُ عِنْدَكَ البته فرق په کې داده چې په عند کې حضور دشي شرط نه ده لکه مثلاً د زید سره په واسکټ کې مال وي او سائل پوښتنه کوي نو په عندك سره به تپوس کوي او که مال د زید په خزانه کې وي نو بیاهم په عندك سره تپوس کولی شي. او لدی او لدن دپاره حضور د شي شرط ده لکه مثلاً المال لدی جَیْبِكَ ایا ستاسره په جیب کې مال شته. یاالمال لدی خزانتك آیا ستاسره په خزانه کې مال شته

**وَمِنْهَا قَطُّ لِلْمَاضِی مَنْفِیٌّ نَحْوُ مَارَأَیْتُهُ قَطُّ:**

**ترجمه** یو د ظروف مبنیه نه قط ده ماضی منفی لپ ره راځی لکه مَارَأَیْتُهُ قَطُّ

**تشریح** ض ، مسدده ده ای قط وجه دبناء یې داده چې بدی کې یونعت دقطّ هم مستعمل ده او دا اقل من ثلاثة احرُف ده بس قطّ محمول کړی شوي ده په دې باندې. قط به معنی دهیڅ کله سره ده او راځی دپاره دنفي دتاکید په ماضي کښي فقط. لکه مارأیته قطّ مانه ده لیدلی هغه لره هیڅ کله. یعني کله مي هم نه ده لیدلی. کله کله په قط باندې

فالانتهاٴ نبه هم داخلیږی لکه فقط داراخي دانتهاد فعل دپاره.

**وَمِنْهَا عَوْضُ لِلْمُسْتَقْبِلِ الْمَنْفِيْ نَحْوُ لَا أَضْرِبُهُ عَوْضُ:**

**ترجمه** او د ظروف مبنيه نه عوض ده چه دا مستقبل منفي لپاره راځي لکه لَا أَضْرِبُهُ عَوْضُ

**تشريح** عَوْضُ مقابل دقطّ ده يعني داراخي دپاره دنفي دتاكيد دمستقبل فقط. اوپه دهرا سره دد يعني معنى دټولي زماني به کې پرته دد همسکي. لکه لَا أَضْرِبُهُ عَوْضُ زه به نه وهم دده لره هيشه دپاره. وجه دبناٴ داده چې دعوضُ مضاف اليه هم محذوف منوي ده په شان دقبلُ بعدُ. لکه اى عوضُ كُلَّ دَهْرٍ

**وَاعْلَمْ أَنَّهُ إِذَا أُضِيفَ الظُّرُوْفُ إِلَى الْجُمْلَةِ أَوْ إِلَى إِذْ جَازَ بِنَاؤُهَا عَلَى الْفَتْحِ كَقَوْلِهِ تَعَالَى هٰذَا يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ وَكَيَوْمَئِذٍ وَحِيْنَئِذٍ وَكَذٰلِكَ مِثْلُ وَغَيْرُ مَعَ مَا وَأَنْ وَأَنَّ تَقُوْلُ ضَرَبْتُهُ مِثْلَ مَا ضَرَبَ زَيْدٌ وَغَيْرَ أَنْ ضَرَبَ زَيْدٌ:**

**ترجمه** پوهه شه چه کله د ظروفو اضافت جملې ظرف ته وشي يا اذ طرف ته نو د دې مبني برفتح کيدل جائز دي لکه د الله تعالى د قول هٰذَا يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ او لکه يَوْمَئِذٍ وَحِيْنَئِذٍ او همدغه رنګې کلمه د مثل او غير او لفظ د ما ان. اَنْ ده لکه نه او وائې ضَرَبْتُهُ مِثْلَ مَا ضَرَبَ زَيْدٌ وَغَيْرَ أَنْ ضَرَبَ زَيْدٌ

**تشريح** پدې واعلم کې مصنفؒ هغه ظروف ذکر کوي چې دي معربات ليکن کله کله مبني کول دهغې هم جائزدي پس چې کله دظروفو معربو اضافت جملې ته وشي يا اذ ته وشي نو دا به مبني په فتحې سره وي ددې دپاره وجه دجواز دبناٴ داده چې جمله بذات خپله نه معرب ده او نه مبني ده ليکن نحاة جمله په مبنياتو کې شماري نو ګوياچې دظروفو معربو اضافت الى المبني او ګرزيد. او چه کله اذ ته اضافت وشي نو اذ بخپله مبني الاصل ده نو ګويا دا هم اضافت الى المبني او ګرزيد ځکه بنا دې ظروفو جائزه ده دجواز مطلب داده چې اعراب پرې هم جائزده. وكذالك يعني دغه شان لفظ دمثلُ او دغيرُ اضافت چې کله ما. ان وانّ مفتله ته وشي نو دا به مبني وي په فتحې سره ځکه چې دا هم اضافت الى المبني دي پس بناٴ هم جائزه ده او اعراب پدې جائزده، مثله مذكورفى الكتاب.

**وَمِنْهَا أَمْسِ بِالْكَسْرِ عِنْدَ أَهْلِ الْحِجَازِ:**

**ترجمه** او د دې نه يو امس دے د اهل حجازو په نزد د يه کسرې سره ده

**تشريح** لفظ دامس پرونې تيره شوې ورځ ته وايې ددې په اعراب اوبناٴ کې اختلاف ده يو مذهب د اهل حجاز وده دوې وايي چې لفظ دامس مبني ده په کسرې سره پدې شرط چې مضاف وي

او په معرفه باللام وي بل مذهب د بعضو دے دوي وايي چې په حنسيت د شرط مذکورسره دامعرب ده او دريم احتمال په کې داده چې نه مضاف وي او نه معرفه باللام دي نو بالفظ د مبني معرب ده اتفاقاً . بحث د مبني سرته اورسيد والله الموفق والمعين

# الخاتمة

وَالْخَاتِمَةُ فِيْ سَائِرِ اَحْكَامِ الْاِسْمِ وَلَوَاحِقِهٖ غَيْرِ الْاِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ وَفِيْهَا فُصُوْلٌ :

**ترجمه** او خاتمه د اسم بقيه احکامو او لواحقو د دي کښ ده. داسي احکام چه کوم د معرب او مبنی نه علاوه دي او بدی کښ يو څو فصلونه دي

**تشريح** هرکله چې مصنفؒ فارغ شو د دواړو بابونو د اسم نه چې بيان د معرب او مبني وو پس شروع يې او کړه په خاتمه کې او داخاتمه مرتب کړې شوې ده په بيان د هغه اقسامو او احکامو د اسم کې چې بغير د اعراب او بناء نه نور لواحقات د اسم دي مثلاً اسم به کله مذکر وي کله به مؤنث وي او کله به معرفه وي کله به نکره وي وغيره نو کله به معنی د تمام سره وي ليکن دلته به معنی د باقی سره ده او لفظ د سائر ماخوذ دے د سورنه په معنی د حې يو شې او خوړلی شي او دهغی نه څه باقي پاتې شي نو ګوياد اېښودي ده په بغير د اعراب او بناء نه .

**وفيها فصول اي عشر فصول** يعني د اسم بقيه احکامات اقسام مرتب دي په لس فصلونو کې .

فَصْلٌ : اِعْلَمْ اَنَّ الْاِسْمَ عَلٰى قِسْمَيْنِ مَعْرِفَةٌ وَنَكِرَةٌ اَلْمَعْرِفَةُ اِسْمٌ وُضِعَ لِشَيْءٍ مُّعَيَّنٍ وَهِيَ سِتَّةُ اَقْسَامٍ اَلْمُضْمَرَاتُ وَالْاَعْلَامُ وَالْمُبْهَمَاتُ اَعْنِيْ اَسْمَاءَ الْاِشَارَاتِ وَالْمَوْصُوْلَاتِ وَالْمُعَرَّفُ بِاللَّامِ وَالْمُضَافُ اِلٰى اَحَدِهَا اِضَافَةً مَعْنَوِيَّةً وَالْمُعَرَّفُ بِالنِّدَاءِ

**ترجمه** پوهه شه چه اسم په دوه قسمه دے يو معرفه بل نکره. معرفه هر هغه اسم دے چه وضع کړې شوی وي لپاره د شي معين او دا دي شپږ اقسام دي: (۱) مضمرات (۲) علام (۳) مبهمات يعني اسماء اشارات او اسماء موصولات (۴) معرف باللام (۵) او مضاف به وي يو ددي نه او دا اضافت به معنوی وي (۶) معرف بالنداء

**تشريح** په دي فصل کې د اسم تقسيم دے په اعتبار د معرف او مخصص سره چې اسم په دوه قسمه دے معرفه او نکره وجه د حصر يې دا ده چې دا اسم به خالي نه وي يا به دلالت کوي په يو شي معين باندې يا به نه کوي که دلالت کوي په شي معين باندې نو دے اسم معرفه وايي او که دلالت نه کوي دېته اسم نکره وايي ، شي معين عام دے که مفرد معين وي او که زيد او که جنس معين وي لکه

أ ـ مه دا دزمرو يو جنس ده يعني خاص ده اوكه جمله معينه وي بيا به كلمه باندي الف لام داخل شي
نو بيا به معرفه وايي. پس دمعرفي شپږ اقسام دي، اجمالا

۱، **المضمرات** ضمائر يول معارف دي

۲، **اعلام** اعلام جمع دعلم ده يعني نومونه هم ټول معارف دي.

۳، **مبهمات** په مبهماتو کي دوه قسمه دي يو اسماي اشارات دي او بل اسماي موصولات دي
ديته مبهمات څکه وايي چي اشاره بغير دمشار اليه نه مبهمه وي متکلم ته او دغه شان اسم موصول
هم مبهم وي بغير دصلي نه څکه ورته مبهمات وايي.

۴، **معرفه باللام** هغه اسم چي الف لام پري داخل شي برابره خبره ده که الف لام عهدي وي لکه
دخل السوق په السوق کي الف لام عهد ذهني ده. فعصى فرعون الرسول دا الف لام عهد خارجي دي
خواه که لام جنسي وي لکه الرجل خيرمن المرأة خواه که لام استغراقي وي لکه ان الانسان لفي
خسر اى جميع الانسان. په تحقيق سره ټول مسلمان په خساره کي دي،

۵، پنځم قسم **معرفه** هغه اسم چي مذکوره څلورو اقسامو کي يو ته مضاف شي په اضافت معنويه
سره لکه غلامه يا غلام الذي عندي په اضافت معنويه سره احتراز راغي د اضافت لفظي نه څکه
چي دا مفيد دتعريف دپاره نه وي.

۶، **معرفه بالنداء** په کوم اسم چي حرف نداء داخله شي اگر که نکره وي پس دا به معرفه گرزي.

وَالْعَلَمُ مَا وُضِعَ لِشَيْئٍ مُعَيَّنٍ لَايَتَنَاوَلُ غَيْرَهُ بِوَضْعٍ وَّاحِدٍ

**ترجمه** او علم هر هغه اسم ده چه معين شي لپاره وضع شوي وي. چه دا اسم به نه
شاملېږي غير نه په وضع واحدي سره

**تشريح** ددي عبارت نه دا معلوميږي چي مصنفؒ دمذکوره اجمال تفصيل ترک کړي ده
البته داعلام تفصيل ذکر کوي څکه چي اعلام مخکښي په کتاب کي نه دي ذکر شوي او د بقيو
تفصيل مخکي تېر شوي ده مثلاً د مضمراتو اشاراتو موصولاتو تفصيل په بحث دمبني کي
ذکر شوي ده او معرف باللام به علاماتو د اسم کي په صفحه ۲۳ باندي ذکر شوي دي او معرفه
بالنداء په بحث دمنادي کي په صفحه ۸۷ باندي مذکور دي او دغه شان بحث دمضاف الى
احدهما الاربعة اقسام مذکوره په بحث دعلاماتو د اسم کي په صفحه ۲۳ مذکور دي. فقط بوقسم
چي اعلام دي ددي تعريف مصنف دلته کوي چي علم هغه اسم ده چي وضع شوي وي د پاره

د یو شخص معین نه غیر د شمول نه دپاره شرط ده وضع واحدی شرط . وضع لسی واحد قید ځکه راوړلی شي چې علم مشترک به کې داخل شي لکه مثلا د یو شخص دپاره ظاهرشاه اسم وضع شي نو ممکنه ده چې دا اسم متناول او شامل شي غیرته نو مصنف ځکه قید د وضع واحد راوړې چې دا اسم اګرکه مشترک وي لیکن د هر یو دپاره وضع واحد ده لکه مثلا ظاهرشاه خو وروړه نو دا وضع واحد خو پلار ګرزولي ده دپاره د یو شخص معین چې هغه دی اوبل ظاهرشاه خو به کلي کې یو دوست ده نو هغه دپاره خان مستقله وضع واحده ده چې پلار ورله دا اسم وضع کړیدی.

اَعْرَفُ الْمَعَارِفِ الْمُضْمَرُ الْمُتَكَلِّمُ نَحْوُ اَنَا وَنَحْنُ ثُمَّ الْمُخَاطَبُ نَحْوُ اَنْتَ ثُمَّ الْغَائِبُ نَحْوُ هُوَ ثُمَّ الْعَلَمُ ثُمَّ الْمُبْهَمَاتُ ثُمَّ الْمُعَرَّفُ بِاللَّامِ ثُمَّ الْمُعَرَّفُ بِالنِّدَاءِ وَالْمُضَافُ فِي قُوَّةِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ وَالنَّكِرَةُ مَا وُضِعَ لِشَيْءٍ غَيْرِ مُعَيَّنٍ كَرَجُلٍ وَفَرَسٍ:

**ترجمه** او اعرف المعارف ضمیر متکلم دی لکه انا نحن بیا ضمیر مخاطب لکه انت بیا ضمیر غائب لکه هو بیا علم بیا مبهمات بیا معرف باللام بیا نداء او مضاف په قوت د مضاف الیه کښې وي. او نکره هر هغه اسم ده چه وضع کړی شوی وی دپاره د غیر معین لکه رجل، فرس.

**تشریح** اعرف او مشهور په معارفو کې هغه دی چې کوم ترتیب مصنف په اجمال کې ذکر کړی دی اول مضمرات وروسته متکلم بیا مخاطب بیا غائب بیا اعلام وغیره نو دی کې اختلاف دی شرح د ترک نه.

## اسماء العدد

فَصْلٌ: اَسْمَاءُ الْعَدَدِ مَا وُضِعَ لِيَدُلَّ عَلٰى كَمِّيَّةِ اَحَدِ الْاَشْيَاءِ:

**ترجمه** اسم عدد دا هر هغه عدد ده چه وضع کړي شوي وی د لپاره چه د افرادو اشیاء معدودات په مقدار باندې دلالت وکړی

**تشریح** د دویم فصل ده په دې کې د اسماء العدد بیان ده . عدد په لغت شمیره ته وایي او په اصطلاح کې مصنف ذکر کړی ده . کمیت په معنی د مقدار او اندازې سره ده . احد الاشیاء په معنی د افراد الاشیاء سره ده پس معرف به داسې شې چې دا هغه اسم دی چې وضع شوي دي دپاره ددې چې دلالت کوي په مقدار په اندازې د اشیاؤ د افرادو پس دې اندازې د شمیرته اسم عدد وایي او چې کوم شې به دی سره شمیر کړی شي هغه ته اسم معدود وایي.

وَاُصُوْلُ الْعَدَدِ اِثْنَا عَشَرَةَ كَلِمَةً وَاحِدَةً اِلٰى عَشَرَةٍ وَمِائَةٌ وَاَلْفٌ.

**ترجمه** او بنیادی عدد ټول دولس دي واحد نه تر عشر پورې او مائة او الف

**تشریح** د عدد بنیادي کلمې دولس دي د واحد نه تر عشر پورې لس کلمې دا دي او یوه کلمه
مائة ۱۰۰ دا او بله کلمه ألف ۱۰۰۰ ده په معنی سل او زر. دا دولس کلمات دي دېته اصول
العدد ځکه وایې چې د تمامو اعدادو دارومدار په دې باندې مرتب دي یعنې هر عدد او هندسه د دې
دولسو اصولو نه جوړېږي نو ګویا د بنیادي ارکان او کلمات اعدادو دي د پره د تمام شمېر.

وَاسْتِعْمَالُهُ مِنْ وَاحِدٍ إِلَى اثْنَيْنِ عَلَى الْقِيَاسِ أَعْنِي لِلْمُذَكَّرِ بِدُوْنِ التَّاءِ
لِلْمُؤَنَّثِ بِالتَّاءِ تَقُوْلُ فِيْ رَجُلٍ وَاحِدٌ وَفِيْ رَجُلَيْنِ اِثْنَانِ وَفِيْ اِمْرَأَةٍ وَاحِدَةٌ وَفِيْ
اِمْرَأَتَيْنِ اِثْنَتَانِ وَثِنْتَانِ وَمِنْ ثَلٰثَةٍ إِلَى عَشَرَةٍ عَلٰى خِلَافِ الْقِيَاسِ أَعْنِيْ لِلْمُذَكَّرِ
بِالتَّاءِ تَقُوْلُ ثَلٰثَةُ رِجَالٍ إِلٰى عَشَرَةِ رِجَالٍ وَلِلْمُؤَنَّثِ بِدُوْنِهَا تَقُوْلُ ثَلٰثُ نِسْوَةٍ إِلٰى عَشْرِ نِسْوَةٍ
وَبَعْدَ الْعَشَرَةِ تَقُوْلُ أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا وَاثْنَا عَشَرَ رَجُلًا وَثَلٰثَةَ عَشَرَ رَجُلًا إِلٰى تِسْعَةَ عَشَرَ رَجُلًا وَإِحْدٰى
عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَاثْنَتَا عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَثَلٰثَ عَشْرَةَ اِمْرَأَةً إِلٰى تِسْعَ عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَبَعْدَ ذٰلِكَ تَقُوْلُ عِشْرُوْنَ
رَجُلًا وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً بِلَا فَرْقٍ بَيْنَ الْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ إِلٰى تِسْعِيْنَ رَجُلًا وَامْرَأَةً وَاحِدٌ وَعِشْرُوْنَ
رَجُلًا وَإِحْدٰى وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً وَاثْنَانِ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَاثْنَتَانِ وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً وَثَلٰثَةٌ وَ
عِشْرُوْنَ رَجُلًا وَثَلٰثٌ وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً إِلٰى تِسْعَةٍ وَتِسْعِيْنَ رَجُلًا وَتِسْعٍ وَتِسْعِيْنَ اِمْرَأَةً ثُمَّ تَقُوْلُ
مِائَةُ رَجُلٍ وَمِائَةُ اِمْرَأَةٍ وَأَلْفُ رَجُلٍ وَأَلْفُ اِمْرَأَةٍ وَمِائَتَا رَجُلٍ وَمِائَتَا اِمْرَأَةٍ وَأَلْفَا رَجُلٍ وَأَلْفَا
اِمْرَأَةٍ بِلَا فَرْقٍ بَيْنَ الْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ وَإِذَا زَادَ عَلَى الْمِائَةِ وَالْأَلْفِ يُسْتَعْمَلُ عَلٰى قِيَاسِ مَا
عَرَفْتَ وَيُقَدَّمُ الْأَلْفُ عَلَى الْمِائَةِ وَالْمِائَةُ عَلَى الْآحَادِ وَالْآحَادُ عَلَى الْعَشَرَاتِ تَقُوْلُ عِنْدِيْ
أَلْفٌ وَمِائَةٌ وَوَاحِدٌ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَأَلْفَانِ وَمِائَتَانِ وَاثْنَانِ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَأَرْبَعَةُ آلَافٍ وَتِسْعُ
مِائَةٍ وَخَمْسٌ وَأَرْبَعُوْنَ اِمْرَأَةً وَعَلَيْكَ بِالْقِيَاسِ:

**ترجمه** او د دې استعمال د واحد نه تر اثنین پورې د قیاس مطابق ده یعنې مذکر
بغیر التاء او مؤنث بالتاء سره راوستل لکه یو سړي لپاره واحد او دوو سړو لپاره اثنان او یوې
ښځې لپاره واحدة او دوو ښځو لپاره اثنتان و ثنتان او درې نه تر لس پورې خلاف القیاس په
راځي یعنې مذکر بالتاء سره راوستل لکه ثَلٰثَةُ رِجَالٍ نه تر عَشَرَةِ رِجَالٍ پورې او مؤنث
بغیر التاء راوستل لکه ثَلٰثُ نِسْوَةٍ إِلٰى عَشْرِ نِسْوَةٍ پورې او پس د عشرة نه به یا أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا وَاثْنَا عَشَرَ
رَجُلًا وَثَلٰثَةَ عَشَرَ رَجُلًا نه تر تسعة عشر رجلا پورې او مؤنث لپاره إِحْدٰى عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَاثْنَتَا عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَثَلٰث

عَشَرَةَ اِمْرَأَةً اِلٰى تِسْعَ عَشَرَةَ اِمْرَأَةً پورې او پس له دينه به ته عِشْرُوْنَ رَجُلًا وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً نه تر تسعون رجلا او تسعون امرأة پورې د مذکر او مؤنث په درميان کښې فرق نه بغير وئيل. او همدغه رنگې اَحَدٌ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَاِحْدٰى وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً وَاثْنَانِ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَاثْنَتَانِ وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً وَثَلٰثَةٌ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَثَلٰثٌ وَعِشْرُوْنَ اِمْرَأَةً اِلٰى تِسْعَةٍ وَتِسْعِيْنَ رَجُلًا وَتِسْعٍ وَتِسْعِيْنَ اِمْرَأَةً پورې . دې نه پس به ته مِأَةُ رَجُلٍ او اَلْفُ رَجُلٍ وَاَلْفُ اِمْرَأَةٍ وَمِأَتَا رَجُلٍ وَمِأَتَا اِمْرَأَةٍ وَاَلْفَا رَجُلٍ وَاَلْفَا اِمْرَأَةٍ د مذکر او مؤنث په درميان کښې فرق نه بغير وئيل جه کله عدد به الف او مأة باندې ور زيات شي نو : هغې طريقه هغه ده چه کومه تا مخکښې زده کړه به وخت د لکلو کښې الف په مأة باندې مقدم کولې شي او احاد په عشرات باندې مقدم کولې شي لکه عِنْدِيْ اَلْفٌ وَمِأَةٌ وَاحِدٌ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَاَلْفَانِ وَمِأَتَانِ وَاثْنَانِ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا وَاَرْبَعَةُ اٰلَافٍ وَتِسْعُ مِأَةٍ وَخَمْسٌ وَاَرْبَعُوْنَ اِمْرَأَةً بدې باندې نور په خپله قياس کړه

**تشريح** مصنفؒ داسماء الاعداد داستعمال دپاره دواعد ذکر کوې څکه چې عدد به يا د مذکر د پاره ذکر شوې يا به د مؤنث دپاره ذکر شوې وي نو سه د واحد دپاره يا به دتثنيې دپاره ذکر وي پس بيا دې کې دوه قاعدې دې يوې ته قياس وايي يعني بغير د قاعدې نه چې کوم اعداد مستعمليږي دپاره د ذکورو او اناثو يعني دمعدود سره به موافق ذکر کيږي که معدود مذکر وي نو عدد به هم مذکر بدون التاء ذکر کيږي او که معدود مؤنث وي نو عدد به مع التاء ذکر کيږي او د اقياس به فقط به واحد او اثنان کې جارې کيږي او د به دهرې عشرې اولنې دواړه جزئين وي لکه مثلاً د مذکر مثال رجل واحد (بدون التاء) رجلين اثنان . د مؤنث مثال لکه واحدة امرءة اثنتان وثنتان امرأتين (مع التاء) . د ثلاثه نه ترعشره پورې به خلاف القياس ذکر کيږي دا وېمه قاعده ده يعني دابه دقاعدې موافق ذکر کيږي او قاعده داده چې د ذکورو دپاره به مع التاء ذکر کيږي او داناثو دپاره به بدون التاء ذکر کيږي او داقاعده به په هره عشره کې جارې کيږي د شميرو انتها پورې لکه ثلاثة رجال الى عشرة رجال للمؤنث ثلث نسوة الى عشر نسوة (دعشر نسوة نه بعد به به اولې دوه کلمې موافق دقياس سره وي لکه احد عشر رجلاً اثناعشر رجلاً احدى عشرة نسوة او اثنتا عشرة نسوة او دثلثة عشر نه تر تسعة عشر پورې خلاف القياس دې يعني اول جزء به خلاف القياس وي او عشر به موافق دقياس سره ذکر کيږي لکه ثلثة عشر رجلاً ثلث عشرة نسوة (۱۲) دعقود ثمانيه دپاره قاعده ده چې دا به د مذکر او مؤنث دواړو دپاره يو شان ذکر کيږي لکه عشرون رجال ونساء عقود ثمانيه دبته وايي عشرون . ثلاثون . اربعون . خمسون . ستون . سبعون . ثمانون . تسعون . د اته دې لفظ

دالف او ماءٌ به هم برابره مستعملیږي البته دننني په ره ماٌت او الفار اخې. د ماة نه بعدبه هم دغه سن ذکر کیږي لکه څنګه چې ظاهر کړل مونږه **خلاصه** ددې قواعدو خلاصه داده چې دشمیرپه هره عشره کې به اولی دواړه کلمې د ټبه سي دقیاس موافق وي او دریونه ترلسوپوري به خلاف القياس وي به هره عشره کي اوعقود تمامبه به يو شان ذکر کیږي او دغه شان لفظ دالف او ماة به هم یوشان وي البته فقط دننني دپاره به الفاناو یلی کیږي. البته کې چیري هندسي زیږي شي نوددي دقاعدې ده چې الف به راوړي شي بیابه ماة راوړي شي اوبیابه بیکن راوړي شي اوبیا به دهن راوړي سی لکه یوسړی اووایي چې خمسره یوزربوسل اوپنځه سپیره روسي دي سی عندي الف وماة وخمس وستون درهما اودنانیر . دابه من جانب اليمين ذكر كيږي به الفاظو کې او به هندسو کې به داسې وي لکه څنګه چې دانګلش شمیره ۱۱۶۵ ۱۱۶۵ به انګلسي کېنی One thousint one hundred sixty five

**فان قيل** مصنف داول کړي ده چې دثلاثه نه ترعشره پوري به خلاف القياس ذکر کیږي حالانکه به قرآن مجید کې عسربدون التاء مستعمل دی دره دمذکرلکه آیت کریمه من جاءبالحسنةفلهعشرامثالها

امثال جمع دمثل ده اودا مذکر ده نويکاره ده چې عشره مع التاء ذکر شوي وي

**قلنا** ددي امثال نه تعبیربه لفظ دجماعة سره شوي ده نو ګویادا تانیث معنوي ده بل جواب داده چې دعشر نه تامضاف اليه سلب کړیده.

**فـان قيـل** څه وجه ده چې عددبین العشرات به خلاف القیاس ذکر کیږي یکاره ده چې دذکور دپاره بدون التاء ذکر کیدي او دانثو دپاره مع التاء ذکر کیدي یعني خلاف ولی نه ذکر کیږي ؟

**قلنا** مذکراصل ده به نسبت سره مؤنث ته او اصل مقدم وي پس نحاتو چې کله استعمال دعددوضع کولو نومخکي بې اصل ته ترجیح ورکړه چې مذکر ده پس تابي لاتقه دمذکردپاره اوګرزوله پدیشان سره چې دثلاثه نه الی عشره پوري دااعداد جمعي دي نودوي دهربین العشرنه تعبیر به لفظ دجماعة سره اوکړو او جماعة مفردمؤنث ده نو ځکه دذکورودپاره مؤنثات ذکرکیږي اودیته نحاة خلاف القياس ځکه وایي چې دایه اعتبار داصل وضعي سره دغه شان وضع شوي دي اوپه دي کې هيڅ قسمه قیاس نه کیږي بلکه قاعدي موافق دی. اوخلاف ځکه نه شي ذکرکیدي چې ترجیح دفرعي راځي به اصل اومقدم باندي یعني مذکر اصل دی.

**وَاعْلَمْ اَنَّ الْوَاحِدَ وَالْاِثْنَيْنِ لَا مُمَيِّزَ لَهُمَا اِلَّا اَنَّ لَفْظَ الْمُمَيِّزِ يُغْنِيْ عَنْ ذِكْرِ الْعَدَدِ فِيْهِمَا**

**تَقُوْلُ عِنْدِيْ رَجُلٌ وَرَجُلَانِ وَاَمَّا سَائِرُ الْاَعْدَادِ فَلَابُدَّ لَهَا مِنْ مُمَيِّزٍ اَلثَّلٰثَةُ اِلَى الْعَشَرَةِ مَخْفُوْضٌ مَجْمُوْعٌ تَقُوْلُ ثَلٰثَةُ رِجَالٍ وَثَلٰثُ نِسْوَةٍ اِلَّا اِذَا كَانَ الْمُمَيِّزُ لَفْظَ الْمِائَةِ فَحِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ مَخْفُوْضًا مُفْرَدًا تَقُوْلُ ثَلٰثُ مِائَةٍ وَتِسْعُ مِائَةٍ وَالْقِيَاسُ ثَلٰثُ مِئَاتٍ اَوْ مِئِيْنَ وَمُمَيِّزُ اَحَدَ عَشَرَ اِلٰى تِسْعَةٍ وَتِسْعِيْنَ مَنْصُوْبٌ مُفْرَدٌ تَقُوْلُ اَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا وَاِحْدٰى عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَتِسْعَةٌ وَتِسْعُوْنَ رَجُلًا وَتِسْعٌ وَتِسْعُوْنَ اِمْرَأَةً.**

**ترجمه** يونى شه چه واحد او اثنين لپاره مميز نشته ځكه چه هغه لفظ چه د دوى د باره تميز واقع كيږى استغنا. راولى له ذكر د عدد نه لكه عِنْدِيْ رَجُلٌ وَعِنْدِيْ رَجُلَانِ بهرحال باقى اعدادو لپاره د مميز ذكر كول ضرورى ندى. پس ثلثة نه عشرة پورى د دې تميز به مجرور وى لكه ثَلٰثَةُ رِجَالٍ وَثَلٰثُ نِسْوَةٍ چكله مميز لفظ مِائَةٌ وى نو پدې وخت كښ به تميز مفرد مجرور وى لكه ثَلٰثُ مِائَةٍ وَتِسْعُ مِائَةٍ حالانكه قياس ثَلٰثُ مِئَاتٍ اَوْ مِئِيْنَ وو. او احد عشر نه تسعة و تسعين پورى به تميز مفرد منصوب وى لكه اَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا وَاِحْدٰى عَشْرَةَ اِمْرَأَةً وَتِسْعَةٌ وَتِسْعُوْنَ رَجُلًا وَتِسْعٌ وَتِسْعُوْنَ اِمْرَأَةً

**تشريح** پدې عبارت كې مصنفؒ د تميز او معدود د اعرابو بحث كوي مخكښ زده كړه داخبره چې د واحد اثنان او واحدة اثنتان د باره به تميز نه شي ذكر كيدې ځكه چې عدد كم شي فائده ذكر كوي نو د واحد او اثنان پخپله په تميز باندې تصريح كوي يعني تميز پخپله مقدار بياني پس داسې ونيل غلط دي چې عندي واحد رجل بلكه داسي به ونيلي شي چې عندي رجل وعندي رجلان او دا عرب قول ده چې رجل واحد او رجلان اثنان په تاكيد باندې محمول ده او د بقيه تمامو اعدادو د پاره به تميز ذكر كيږي ځكه چې تميز د عدد نه منفي نه دي بلكه د تميز مقصد دا دي چې اجمال نه بعد تفصيل راشي پس د اتفصيل فقط به واحد او اثنان كې حاصل ده بغير د تميز نه او په بقيه اعدادو كې لابدي ده د ذكر كولو د تميز نه پس زده كړه داخبره چې د ثلاثه نه تر عشر پورې به د عدد د پاره تميز جمع ذكر كيږي او وي به مكسوره لكه ثلثة رجال برابره خبره ده كه جمعيت د تميز لفظاً وي لكه مثال مذكور يا معناً وي لكه ثلاثة رهط. د دې تميز د جمعيت د پاره وجه دا ده چې د ثلاثه نه تر عشر پورې جمع قلت ده پس مناسبه ده چې جمع راوړې شي د پاره د دې چې د عدد او معدود په مابين كې فرق رانه شي او سره ددې نه چې دلالت او كې په جمعيت باندې او كسره ورته ځكه وركړې شوي ده چې د اتميز په كثرت استعمال كې د عدد د پاره مضاف اليه وي او كل مضاف اليه مجرور. كه چيرې د ثلاثه نه تر عشر پورې تميز لفظ د مائة راشي نو دا به مجرور مفرد وي مگر سره د لحاظ ساتلو د جمعي نه لكه ثلثُ مئة الى تسع مائة جمع مؤنث سالمه

لکه ثلاثُ مأت برانې جمع مذکر سالمه لکه ثلثُ مئتين . ددې دپاره وجه داده چې مائة مفرد ده پس ددې جردوجی مضاف اليه نه دې اولفظ دمأت اومئتين غير اضاف دې خکه چې دجمع مذکر سالمی اودجمعی مؤنث سالمی دپاره عددنه مضاف کيږي . خکه مجرورنه ده .۔ نزده کړه ورسته ددې نه چې داحد عشرنه ترتسعة وتسعون پورې. ديولسونه ترپوکم سلوپورې ددې تميزبه منصوب مفردوي لکه احد عشررجلاً واحدیٰ عشرة امرأة الی تسعة وتسعون رجلاً وتسع وتسعون امرأةً دنصب وجه ددې دپاره داده چې دلته داضافت لاره بنده ده اوکه چيرې اضافت اوکړی شي نوبيابه درې کلمې په يوه کلمه کې جمع شي او دا قبيح ده . دافرادوجه بې داده چې دلته عددپه کثرت دلالت کوي اودتميزکثرت نه حاجت نشته پس خکه به داتميزمنصوب مفردوي.

**وَمُمَيِّزُمِائَةٍ وَأَلْفٍ وَتَثْنِيَتِهِمَا وَجَمْعِ الْأَلْفِ مَخْفُوضٌ مُفْرَدٌ تَقُوْلُ مِائَةُ رَجُلٍ وَمِائَةُ امْرَأَةٍ وَأَلْفُ رَجُلٍ وَأَلْفُ امْرَأَةٍ وَمِائَتَا رَجُلٍ وَمِائَتَا امْرَأَةٍ وَأَلْفَا رَجُلٍ وَأَلْفَا امْرَأَةٍ وَثَلٰثَةُ آلَافِ رَجُلٍ وَثَلٰثُ آلَافِ امْرَأَةٍ وَقِسْ عَلٰى هٰذَا:**

**ترجمه** دمأة او الف او دوې دواړو تثنيه او الف د جمع تميز به مجرور وي لکه مِائَةُ رَجُلٍ وَمِائَةُ امْرَأَةٍ وَأَلْفُ رَجُلٍ وَأَلْفُ امْرَأَةٍ وَمِائَتَا رَجُلٍ وَمِائَتَا امْرَأَةٍ وَأَلْفَا رَجُلٍ وَأَلْفَا امْرَأَةٍ وَثَلٰثَةُ آلَافِ رَجُلٍ وَثَلٰثُ آلَافِ امْرَأَةٍ بدې باندې نور عددونه ورقياس کړه

**تشريح** ددې خلاصه داده چې مميزدمائة به مجرورمفردوي اوتميزدالف به هم مجرورمفردوي لکه مائةُ رجلٍ اوالف رجلٍ . اوتثنيه دمائة به هم دغه شان وي لکه مائتارجلٍ اوتثنيه دالف به هم دغه شان وي لکه الفارجلٍ وامرأة البته دمائة دجمعی دپاره تميزسره دمائة نه متروک ده پس ثلث مائة رجلٍ غلط ده اودالف جمع الاف ده داهم قياس په مذکوررو لکه ثلاثة الاف رجلٍ.

# مذکراومؤنث

**فَصْلٌ**: اَلْاِسْمُ اِمَّا مُذَكَّرٌ وَاِمَّا مُؤَنَّثٌ فَالْمُؤَنَّثُ مَافِيهِ عَلَامَةُ التَّانِيثِ لَفْظًا اَوْ تَقْدِيرًا وَالْمُذَكَّرُ مَابِخِلَافِهِ وَعَلَامَةُ التَّانِيثِ ثَلَاثَةٌ اَلتَّاءُ كَطَلْحَةَ وَالْاَلِفُ الْمَقْصُورَةُ كَحُبْلٰى وَالْاَلِفُ الْمَمْدُوْدَةُ كَحَمْرَاءَ وَالْمُقَدَّرَةُ اِنَّمَا هُوَ التَّاءُ فَقَطْ كَاَرْضٍ وَدَارٍ بِدَلِيلِ اُرَيْضَةٍ وَدُوَيْرَةٍ:

**ترجمه** اسم به یا مذکر وی یا به مونث وی. مؤنث هغه ده چه په کښې علامه د تانیث وی لفظاً یا تقدیراً او مذکر هغه ده چه کوم د دې خلاف وی. بیا علامت د تانیث درې دی اول تاء لکه طلحة او الف مقصوره لکه حُبلٰی او الف ممدوده لکه حَمراء او تاء مقدره فقط لکه أرضٌ او دارٌ په دلیل د أُریضةٌ او دُوَیرة سره

**تشریح** په تیرشوی فصل کې بحث داعداد وذکر شو سره د ذکور و د أنا ثو نو پکار ده چې دلته بحث د مذکر او مؤنث مرتب کړی شی

**فان قیل** مذکر مقدم ده په مونث باندې خلقةً رتبةً پس مصنفؒ په اجمال کې مذکر مقدم کړو لیکن په تعریف کې مؤنث مقدم ده په مذکر باندې دې د څه وجه ده.

**قلنا** تقدیم د مؤنث په مذکر باندې صحیح ده ځکه د مؤنث تعریف وجودي ده او د مذکر تعریف عدمي ده او وجود مقدم دي په عدم باندې.

مؤنث هغه اسم ده چې په هغې کې علامت د تانیث وی لفظاً یا تقدیراً لکه طلحة بدې کې علامت د تانیث لفظی ده چې تاء تانیثی ده او یا تقدیر لکه ارضٌ دا په اصل کې ارضة وو او دلیل پرې دادې چې د ارضٌ تصغیر أُریضة ده او تصغیر خبل اسم اصل ته معادکوي پس د ارض نه تاء حذف شوي ده د پاره د اختصار نو کوم بادا علامه د تانیث تقدیري ده دې نه وروسته زده کړه داخبره چې علامه لفظی عام ده برابره خبره ده که حقیقتاً وي او که حکماً وي لکه امراة ناقة طلحة وغیره دا حقیقتاً علامه تانیثی ده او د حکمی مثال لکه عقرب بدې کې څلورم حرف علامه د تانیث حکمی ده ځکه چې ددې تصغیر عقیرب راځی یا لکه لفظ د حائض دا صفت د مؤنث سره خاص ده. والمذکرالخ مذکر هغه اسم ده چې وی په خلاف د تانیث نه یعنې مشتمل به نه وي په علامات د تانیث باندې

# علامات دتانیث او اقسام د تانیث

**علامات دتانیث:** علامت تانیث درې دي

(۱) هغه تاء ده چې په وخت دوقف کې بدلیږي په هاء باندې لکه طلحة ای طلحه، دا دسرې نوم دی

(۲) دویم علامت دتانیث الف مقصوره دي مخبرد سره شرطونه دي اول شرط دا دی چې واقع وي بعد د حروفو ثلاثو نه دویم شرط دا دی چې د الحاق دپاره نه وي لکه ارطی دا دجعفر سره ملحق ده پس دپته الف مقصوره الحاقیه وايي. دریم شرط دا دی چې الف د محض زیادت دپاره نه وي قبعثری د الف د محض زیادت دپاره راغلی ده پس دا قسم الفین تري خارج شول او حبلی او لیلی وغیره الف مقصوره دي

(۳) دریم علامت د تانیث الف ممدوده ده دا هغه الف ده چې وي په آخر د کلمې کې او بعد تري همزه راغلي وي لکه حمراء سره سخه، خضراء شنه سخه، سوداء توره ښخه، وغیره

ثُمَّ الْمُؤَنَّثُ عَلٰى قِسْمَيْنِ حَقِيقِيٌّ وَهُوَ مَا بِإِزَائِهِ مُذَكَّرٌ مِنَ الْحَيْوَانِ كَامْرَأَةٍ وَنَاقَةٍ وَلَفْظِيٌّ وَهُوَ مَا بِخِلَافِهِ كَظُلْمَةٍ وَعَيْنٍ وَقَدْ عَرَفْتَ أَحْكَامَ الْفِعْلِ إِذَا أُسْنِدَ إِلَى الْمُؤَنَّثِ فَلَا نُعِيدُهَا:

**ترجمه** بیا مؤنث په دوه قسمه ده اول حقیقي دا هغه ده چې دي مقابله کښې مذکر حیوان وي لکه اِمْرَأَةٍ و نَاقَةٍ او لفظي هغه ده چې د خلاف وي لکه ظُلْمَةٍ و عین او تاسو پیژندلي احکام د فعل چې کله مؤنث طرف ته مسند وي مونږ د هغې اعاده نه کوو

**تشریح** مؤنث په دوه قسمه ده حقیقي او لفظي. حقیقي دیته وايي چې دهغې په مقابله کې دجنس حیوان نه مذکر موجود وي لکه دامراة په مقابله کې رجل ده او دلیلی په مقابله مجنون ده لفظي دیته وایي چې دهغې په مقابله کې مذکر نه وي دجنس دحیواناتو نه لکه ظلمة. عین عینیة ددي دپاره تصغیر دي تاء په کې مقدره ده من الحیوان قید احترازي ده پدي سره دا قسم مؤنثات خارج شول لکه څوک به دا توهم کوي چې دظلمة په مقابله کې نور مذکر موجود دي پس دا غیر حیوان دي.

# د مثنیٰ تعریف او تشریح

**فَصْلٌ:** اَلْمُثَنّٰى اِسْمٌ أُلْحِقَ بِآخِرِهٖ أَلِفٌ أَوْ يَاءٌ مَفْتُوحٌ مَا قَبْلَهَا وَنُونٌ مَكْسُورَةٌ لِيَدُلَّ عَلٰى أَنَّ مَعَهٗ آخَرَ مِثْلَهٗ نَحْوُ رَجُلَانِ وَرَجُلَيْنِ هٰذَا فِي الصَّحِيحِ:

**ترجمه** مثنیٰ هر هغه اسم ده چې په آخر کښې الف یا یاء ما قبل مفتوح او نون

مکسوره پیوست وی د لپاره چه پدي خبري دلالت وکړی چه د سره ده دي په مثل بل هم شته لکه رِجُلَانِ او رَجُلَيْنِ. دا الحق په صحيح کښې ده

**تشريح** پدي فصل کې بحث دتثنيې ده. مثنی په لغت کې راغونډولوته وايې لکه آيت قرآني اَلَا اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ يثنون په معنی دغونډولو سره ده يعني راغونډي کړي سينې خپلې. تثنيه مقدمه ده په جمع باندي ځکه چې جمع دتثنيې نه وروسته جوړيږي. تعريف دمثنی داده. مثنی يواسم ده داسې اسم چې محلق شوي وي په آخردمفرديوري الف اويا. ماقبل مفتوح وي په آخرکې نون مکسور وی ددي دپاره چې دلالت اوکې پدي خبره چې ددي مفرد سره بومفرد بل هم شته پس دبسه مثنی وايې لکه رجلٌ مفرد ده اورجلانِ تثنيه ده. مضاف باخره مقدر ده ای بخره مفرد ده بس په باخره کې ه ضميرمفردته راجع ده. اوپه معه کې هم ه ضميرمفردته راجع ده. داقاعده فقط دصحيح کلمانو دپاره ده اوصحيح کلمات په اصطلاح دنحوکې هغه دي چې نوي حرف علت په آخردهغې کې.

اَمَّا الْمَقْصُوْرَةُ فَاِنْ كَانَتْ اَلِفُهٗ مُنْقَلِبَةً عَنْ وَاوٍ وَكَانَ ثُلَاثِيًّا رُدَّ اِلٰى اَصْلِهٖ كَعَصَوَانِ فِيْ عَصًى وَاِنْ كَانَتْ عَنْ يَاءٍ اَوْ وَاوٍ وَهُوَ اَكْثَرُ مِنَ الثُّلَاثِيِّ اَوْ لَيْسَتْ مُنْقَلِبَةً عَنْ شَيْءٍ تُقْلَبُ يَاءً كَرَحَيَانِ فِيْ رَحًى وَمُلْهَيَانِ فِيْ مُلْهًى وَحَبَارَيَانِ فِيْ حَبَارٰى وَحُبْلَيَانِ فِيْ حُبْلٰى:

**ترجمه** بهرحال اسم مقصور کښې کچرته الف په واو سره بدل شوي وی او ثلاثی وی نو فعل اصل ته به واپس کیږی لکه عصا په اصل کښې عصوان وو، کچرته الف په واو يا ياء سره بدل شوي وی او ثلاثی نه زائد وی ب څه شی سره بدل شوي نه وی نو په ياء سره بدليږی لکه رَحَی په اصل کښې رَحَيَان وو او مُلْهٰی به اصل کښې مُلْهَيَان او حُبَارٰی به اصل کښې حُبَارَيَان وو او حُبْلٰی په اصل کښې حُبْلَيَان وو

**تشريح** دالف مقصوره دتثنيې دپاره د قاعده ده که حېری کلمه ثلاثی وی نوبيابه اوګوري که چېری الف مقصوره بدل دواونه راغلی وی نو الف به خپل اصل نه معادشي اوالف اونون مکسوربه په آخردغه کلمه کې رواړولې شي لکه عصی داپه اصل کی عصوٌ ووبعد دالف اونون دراوړلونه تري عصوان جوړشو. اوکه حېری الف مقصوره بدل ديا نه راغلی وي نوبيانه خپل اصل ته معادشي اودغه شان قاعده به په کې جاري شي لکه رحی داپه اصل کې رحیٌ ووبس دقاعدي نه رحيان تثنيه جوړه شوه. که چېری الف په کلمه غيرثاني کې وي نوبيابرابره خبره ده که بدل واونه وي اوکه بدل ديانه وي بس تثنيه به ددی کلمانوفقط په ياسره راځي لکه مُلهان دراصل ملهی ملهوٌ وو وغيره.

وَأَمَّا الْمَمْدُوْدُ فَإِنْ كَانَتْ هَمْزَتُهُ أَصْلِيَّةً تَثْبُتُ كَقُرَّاآنِ فِيْ قُرَّاءٍ وَإِنْ كَانَتْ لِلتَّانِيْثِ تُقْلَبُ وَاوًا كَحَمْرَاوَانِ فِيْ حَمْرَاءَ وَإِنْ كَانَتْ بَدَلًا مِنْ أَصْلٍ وَاوًا أَوْ يَاءً جَازَ فِيْهِ الْوَجْهَانِ كَكِسَاوَيْنِ وَكِسَائَيْنِ:

**ترجمه** بهرحال الف ممدوده کښې که چیرې همزه اصلي وي نو باقي به پاتې کولی شی لکه قُرَّآء کښې قرا ان که چیرې تانیث لپاره وي نو بیا به په واو سره بدلیږي لکه حمرا، کښې حمراوان. که چیرې اصل نه واو یا یا، سره بدل شوی وي نو بیا تثنیه کښې دواړه وجې جائز دي لکه کساوین کسائین

**تشریح** دا هغه الف ده چې وی سه آخر د کلمه کې او بعد ترې همزه وي لکه حمرآء سره بنځه ددې د تثنیت دپاره داقاعده ده که چیرې همزه اصلي وي نو دا همزه به باقي وي په خپل حال باندې او الف او نون مکسور به آخر ددې کی راشي لکه قرآء مفرد دی او تثنیه ددې قرآان ده. که چیرې همزه علامت د تانیث وي نو دا همزه به په واو بدلیږي ځکه چې علامت د تانیث په وسط کې نه راځي لکه حمرآء ددې تثنیه حمراوان راځي او که څوک دا **سوال** اوکړي چې دا همزه د په یا بدله شي نو څه حرج به وي پس **جواب** به دا اوکړي چې بیا به سه حالت نصبي او جرې کې دوه یای جمع شي او دا د عربو په نزد قبیحه ده. که چیرې همزه بدل راغلی وي د واو اصلي یا د یای اصلي نه پس جائزده په تثنیت ددې کې وجهان یو وجه دا ده چې همزه ثابته پاتې شي لکه کساءای کساءان دویمه وجه دا ده چې دغه همزه په واو بدله شي لکه کساءای کساوان دا دواړه وجې په دې کې جائز دي.

وَيَجِبُ حَذْفُ نُوْنِهِ عِنْدَ الْإِضَافَةِ تَقُوْلُ جَاءَنِيْ غُلَامَا زَيْدٍ وَمُسْلِمَا مِصْرٍ وَكَذٰلِكَ تُحْذَفُ تَاءُ التَّانِيْثِ فِيْ تَثْنِيَةِ الْخُصْيَةِ وَالْأَلْيَةِ خَاصَّةً تَقُوْلُ خُصْيَانِ وَأَلْيَانِ لِأَنَّهُمَا مُتَلَازِمَانِ فَكَأَنَّهُمَا شَيْءٌ وَاحِدٌ:

**ترجمه** او نون د تثنیه په وخت د اضافت کښې حذف کول واجب دي لکه جَاءَنِيْ غُلَامَا زَيْدٍ مُسْلِمَا مِصْرٍ او همدغه رنګې د تانیث هم حذف کیږي د خصیه او الیه په تثنیه کښې خاص کو لکه خصیان او الیان. دواړه د بوبل لپاره لازم دي نو ګویا دواړه شی د حد شول

**تشریح** واجبه ده دا خبره چې په وخت د اضافت کې به نون غورزیږي ځکه چې نون د تمامی په تول له کلمه باندې دلالت کوي او اسم تام بغیر د بغیرنه نه مضاف کیږي (یعني مصاف او مضاف الیه په مابین کې شدة اتصال وي او نون انفصال راولی ځکه به حذف کیږي (۱۲) پس

داسې به وي لکه جاء نی غلامازيد وغيره.

**وكذالك الخ:** قاعده داده چې څنګه په وخت داضافت کې نون حذف کيږي دغه شان به دمونث نه تاهم حذف کيږي په وخت دتثنيت کې ليکن داقاعده هسې قياس کړی شوي ده څکه چې دهري تثنيې مونث نه تانه حذف کيږي لکه شجرة شجرتان. بلکه بعض مواضعو کې تای تانيث حذف کيږي دوجې دشدت اتصال نه لکه خصيته ددې تثنيه خصيان راځي اوخصيتان هم جائزده ليکن دواړه خصيې ديوبل سره لازمې دي پس دوجې داتصال نه به ناحذف شي.

وَاعْلَمْ أَنَّهُ إِذَا أُرِيْدَ إِضَافَةُ مُثَنًّى إِلَى الْمُثَنّٰى يُعَبَّرُ عَنِ الْأَوَّلِ بِلَفْظِ الْجَمْعِ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا وَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا وَذٰلِكَ لِكَرَاهَةِ اجْتِمَاعِ تَثْنِيَتَيْنِ فِيْمَا تَأَكَّدَ الْإِتِّصَالُ بَيْنَهُمَا لَفْظًا وَمَعْنًى:

**ترجمه** پوهې شه چه کله د تثنيې تثنيې طرف ته اضافت وشي نو د اول تثنيې نه به د جمع تعبير کولې شی لکه د الله تعالی دا قول فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا وَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا او دا مکروه والی د دوو تثنيو د اجتماع دوجه نه راغلی په هغه اشياء کښ چه اتصال مؤکد ده په اعتبار د لفظ او معنی سره

**تشريح** ددې واعلم خلاصه داده چې هرکله دمثنی اضافت بلې مثنی ته اوشي برابره خبره ده که مثنی مذکروي که مونث وي که مرفوع وي که منصوب وي که مجرورووي پس داولې تثنې نه به تعبيرپه مفرديا په جمعې سره کيږي څکه چې دمضاف اومضاف اليه په مابين کې شدت اتصال وي نوځکه به دوه تثنې نه جمع کيږي لکه فقدصغت قلوبکما قلوب جمع ده او اضافت يې کماتثنې ته شوي دي کچرې قلبان کماذکرکړي شي نوبيابه شدت اتصال واقع شي په مماثل تثنيتينو کې اوداعربوپه نزمکروه تحريمي ده. پس ددې نه زده کړه داخبره چې داولې تثنې نه تعبيرپه لفظ دجمعې سره اولې دي څکه چې دتثنې سره دجمعې مناسبت دومره زيات دې چې کله کله تثنيه دجمعې معنی هم ورکوي لکه هم شاهدين هم ضميرد جمعې دي اوشاهدين تثنيه ده پس معنی دجمعې ورکوي البته کچرې مضاف په مثل دتثنې وي نوبياتعبيرپه مفردسره جائزدې بلکه دابن مالکؒ په نزواجب دې.

# د مجموع تعریف، اقسام، تشریح

**فَصْلٌ:** اَلْمَجْمُوْعُ اِسْمٌ دَلَّ عَلٰی اٰحَادٍ مَقْصُوْدَةٍ بِحُرُوْفِ مُفْرَدِهٖ بِتَغْیِیْرٍ مَا اِمَّا لَفْظِیٌّ كَرِجَالٍ فِیْ رَجُلٍ اَوْ تَقْدِیْرِیٌّ كَفُلْكٍ عَلٰی وَزْنِ اُسْدٍ فَاِنَّ مُفْرَدَهٗ اَیْضًا فُلْكٌ لٰكِنَّهٗ عَلٰی وَزْنِ قُفْلٍ فَقَوْمٌ وَرَهْطٌ وَنَحْوُهُمَا وَاِنْ دَلَّ عَلٰی اٰحَادٍ لٰكِنَّهٗ لَیْسَ بِجَمْعٍ اِذْ لَا مُفْرَدَ لَهٗ:

**ترجمه** پنځم فصل په بیان د مجموع کښ ده او مجموع هر هغه اسم ده چه باندي دلالت کوي په افراد مقصوده باندي چه ددي مفرد په حروفو کښي معمولي غوندي تبدیلي راغلي دا تبدیلي به یا لفظاً وي لکه رِجَالٌ په رَجُلٌ کښ یا به تقدیري وي لکه فُلْكٌ په وزن د اُسْدٌ چه ددې مفرد هم فُلْكٌ ده په وزن د قُفْلٌ سره. بس قَوْمٌ او رَهْطٌ او په مثل د دې اگرچه دلالت کوي په افراد مقصوده باندي لیکن هغه جمع نه ده ځکه چه د هغې مفرد نشته

**تشریح** پدې فصل کې مصنفؒ د جمعې متعلق قواعد، تعریف مع اقسامه ذکر کوي پس زده کړه داخبره چې مجموع او جمع یو اسم ده تعریف یې دادې چې دا یو اسم ده چې دلالت کوي په افراد و باندې داسې افرادچې مقصود وي په حروفو مفرد و سره بعد د تغیر او تبدل نه په ده غه حروفو مفرد و کښ بس دېته جمع وايي. دغه تغیر او تبدل عام ده که حقیقتاً وي او که حکماً وي لکه رجل واحد فرد او مفرد دی او جمع یې رجال ده بېته تغیر حقیقي وایي. د تغیر حکمي مثال لکه فلك دا مفرد هم ده، او جمع هم ده پس کجري په وزن د قفل شي نو بیا به مفرد وي او کجري په وزن د اسد شي نو بیا به لفظ د فلك جمع وي لکه **قَوْمٌ ورهطٌ الخ** ددې عبارت مقصد دادي چې د جمع د پاره مفرد لازمي ده ورنه اسم جنس به وي لکه قوم او رهط او یشان ددې جمع نه شي کیدی ځکه چې ددې د پاره مفرد نشته.

اَلْجَمْعُ عَلٰی قِسْمَیْنِ مُصَحَّحٌ وَهُوَ مَا لَمْ یَتَغَیَّرْ بِنَاءُ وَاحِدِهٖ وَمُكَسَّرٌ وَهُوَ مَا یَتَغَیَّرُ فِیْهِ بِنَاءُ وَاحِدِهٖ:

**ترجمه** بیا جمع په دوه قسم ده (۱) جمع صحیح (۲) جمع مکسر جمع صحیح هغې ته ونیلي شي چه د واحد په وزن کښ څه تغیر نه وي راغلی. او جمع مکسر هغې ته ونیلي شي چه د واحد وزن پکښې بدل شوی وي

**تشریح** جمع په دوه قسمه ده یو د جمع مُصَحّحه ده او دویمه جمع مکسره ده اولنی ته جمع صحیح جمع سلامته او جمع سالمه هم وایي ځکه چې د دواحد نه کې سلامت او ثابت باقي ساتي وي او مُصَحّح اسم مفعول ده د باب تفعیل نه مصدر یې تصحیح ده په معنی سلامت ساتي کیدل لکه مسلمٌ

مفردي او جمع یې مسلمون راځي د مفرد بناء سه کې سلامته ده پس جمع مکسره په خلاف ددې ده او مکسرهم د بب تفعیل نه د اسم مفعول صیغه ده مصدر یې تکسر دی په معنی ماتې دل چنانچه په دې کې بناء د واحد مات سوې وي لکه رجل رجال بناء د مفرد په الف سره مات سوه.

وَالْمُصَحَّحُ عَلٰى قِسْمَيْنِ مُذَكَّرٌ وَهُوَ مَا أُلْحِقَ بِاٰخِرِهٖ وَاوٌ مَضْمُوْمٌ مَا قَبْلَهَا وَنُوْنٌ مَفْتُوْحَةٌ كَمُسْلِمُوْنَ أَوْ يَاءٌ مَكْسُوْرٌ مَا قَبْلَهَا وَنُوْنٌ كَذٰلِكَ لِيَدُلَّ عَلٰى أَنَّ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْهُ نَحْوُ مُسْلِمِيْنَ وَهٰذَا فِي الصَّحِيْحِ، أَمَّا الْمَنْقُوْصُ فَتُحْذَفُ يَاؤُهٗ مِثْلُ قَاضُوْنَ وَدَاعُوْنَ وَالْمَقْصُوْرُ تُحْذَفُ أَلِفُهٗ وَيَبْقٰى مَا قَبْلَهَا مَفْتُوْحًا لِيَدُلَّ عَلٰى أَلِفٍ مَحْذُوْفَةٍ مِثْلُ مُصْطَفَوْنَ وَيَخْتَصُّ بِأُولِي الْعِلْمِ وَأَمَّا قَوْلُهُمْ سِنُوْنَ وَأَرَضُوْنَ وَثُبُوْنَ وَقُلُوْنَ فَشَاذٌّ وَيَجِبُ أَنْ لَا يَكُوْنَ أَفْعَلَ مُؤَنَّثُهٗ فَعْلَاءُ كَأَحْمَرَ وَحَمْرَاءَ وَلَا فَعْلَانَ مُؤَنَّثُهٗ فَعْلٰى كَسَكْرَانَ وَسَكْرٰى وَلَا فَعِيْلًا بِمَعْنٰى مَفْعُوْلٍ كَجَرِيْحٍ بِمَعْنٰى مَجْرُوْحٍ وَلَا فَعُوْلًا بِمَعْنٰى فَاعِلٍ كَصَبُوْرٍ بِمَعْنٰى صَابِرٍ وَيَجِبُ حَذْفُ نُوْنِهٖ بِالْإِضَافَةِ نَحْوُ مُسْلِمُوْ مِصْرَ:

**ترجمه** جمع صحیح په دوه قسمه ده اول مذکر دا هغه جمع ده چه په آخر کښې واو ما قبل مضمون او نون مفتوحه ور سره پیوست وي لکه مُسْلِمُوْنَ یا یاء ما قبل مکسور او نون مفتوحه ور سره پیوست وي چه په دې خبرې دلالت وکړي چه د سره زیات دي لکه مسلمین او دا په صحیح کښې راځي. بهرحال اسم منقوص کښې یاء حذف کیږي لکه قاضون او داعون اسم مقصور کښې د دې الف حذف کیږي او د دې ما قبل به مفتوح پاتې کولې شي د لپاره چه په الف محذوفه باندې دلالت وکړي لکه مصطفون دا جمع د اهل علمو لپاره خاص ده. او د دوی دا قول چه اَرَضُوْنَ، ثُبُوْنَ او قُلُوْنَ دا شاذ دي. او واجب ده د هر هغه اسم جمع راوړل چه هغه أَفْعَلُ نه وي. چه دا مؤنث فعلاء راځي لکه أَحْمَرُ د دې مؤنث حمراء راځي. او نه به فعلان وي چه د دې مؤنث فعلی ده لکه سُکْرَان د دې مؤنث سکرى راځي. او نه به وي فعيل په معنی د مفعول سره لکه جريح په معنی مَجْرُوحْ. او نه به فعول وي په معنی د فاعل سره لکه صبور په معنی د صابر سره. او نون د جمع صحیح به په وخت د اضافت کښې حذف کول واجب وي لکه مسلمو مصر

**تشریح**: جمع صحیح په دوه قسمه ده مذکر مؤنث جمع صحیح مذکر هغه اسم ده چې د هغې د مفرد په آخر پورې واو ما قبل مضموم یا یاء ما قبل مکسور او نون مفتوحه ملحق شوي وي د پاره د دلالت په دې خبره چې د دې مفرد سره نور اکثر یې د مفرد نوده لکه مسلمون او مسلمین. دا قاعده د صحیح کلمانو د پاره ده. کچرې د جمعې صحیح مذکر مفرد په آخر کې

یاماقبل مکسوروی نودا قاعده ده چې به وخت دجمعه کې به یاء حذف کیږي لکه قاضُونَ داجمع دقاضِیْ ده دابه اصل کې قاضِیُوْنَ وو دیا ضمه موماقبل ته ورکړه دوجې دثقالت نه پس ساکنه شوه وواوهم ساکن ده نو یا حذف شوه اوواوبا قي پاتي شو دپاره دبرداشت دثقلت دضمې نه نو قاضُوْنَ جوړشو. که چیری په آخرد مفرد کې الف مقصوروي نوداقاعده ده چې الف به حذف کیږي دوجې دالتقاءِ ساکنینو نه لکه مُصْطَفَوْنَ داپه اصل کې مُصْطَفَیُوْنَ وو بس یاپه الف بدله شوه ځکه چې ماقبل بې مفتوح ده اوواوهم ساکن ده پس الف (چې بدل دیانه دي) حذف شی بس مُصْطَفَوْنَ به شي دمونث پوري خاص تفصیل نشته.

وَمُؤَنَّثٌ وَهُوَمَا أُلْحِقَ بِاٰخِرِهِ اَلِفٌ وَتَاءٌ نَحْوُمُسْلِمَاتٌ وَشَرْطُهُ اِنْ كَانَ صِفَةً وَلَهُ مُذَكَّرٌ اَنْ يَكُوْنَ مُذَكَّرُهُ قَدْ جُمِعَ بِالْوَاوِ وَالنُّوْنِ نَحْوُمُسْلِمُوْنَ وَاِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مُذَكَّرٌ فَشَرْطُهُ اَنْ لَا يَكُوْنَ مُؤَنَّثًا مُجَرَّدًا عَنِ التَّاءِ كَحَائِضٍ وَالْحَامِلِ وَاِنْ كَانَ اِسْمًا غَيْرَصِفَةٍ جُمِعَ بِالْاَلِفِ وَالتَّاءِ بِلَا شَرْطٍ كَهِنْدَاتٍ:

**ترجمه** او دویم قسم د جمع هغه جمع مؤنث ده چه د دي په آخر کښ الف او تاء پیوست کیږی لکه مُسْلِمَاتٌ او د دپاره شرط دا ده کچرته صیغه د صفت وی او مذکر لپاره هم وی نو د دي جمع مزکر به واو او نون سره راځی لکه مُسْلِمُوْنَ، کچرته مذکر نه وی نو بیا دلپاره شرط دا ده چه هغه اسم به داسې مؤنث نه وی چه د تاء نه خالی وی لکه حائض او حامل او کچرته هغه اسم داسې مؤنث وی چه صیغه د صفت نه وی نو د سره به الف او تاء بغیر د شرط نه لګولی شی لکه هِنْدَاتٌ

**تشریح** دجمعي صحیح دویم قسم مؤنث ده تعریف یې مذکورفی الکتاب ده پس شرط دمؤنث دپاره دا ده که چیری مفرد دمؤنث اسم جامد وي نو بیا هیڅ قسم شرط نشته ددي دپاره (یعنې ددي جمع به په الف او تاء سره راځی لکه مسلمات ۱۲) اوکچري مفرد دمؤنث صیغه مشتق وي نو بیا به کتلي شي که چیری ددي مذکرجمع په واونون سره وي نو ددي جمع مؤنث سالمه به په الف اوتاء سره راځي. که چیری د جمعي مؤنث دپاره مذکرنه وي نوشرط دا ده چې خالی نه وي دتاء دتانیث نه اوکه ت.انیث په کې نه وی نو بیا به ددي جمع په الف اوتا سره نه راځي ځکه چې التباس لازمیږي دهغه جمعي سره چې کومه دتاء التانیث ده لکه جمع دحائض حائضات غیرجائزده ځکه چې حائضات جمع دحائضه ده په حائض اوحائضة کې معنوي فرق ده یعني حائض بالغي جینی ته وایې اوحائضةً هغه جینی نه وایې چې فی الحال په حیض کې مبتلا وي پس

ځکه دغه مفرد جمع مؤنث په الف تا سره غیر جائز ده چي مع التاء وي ځکه چي التباس راځي نو شبه دتوهم به وي چي داجینکی بالغاني دي که مرضی دي.

**وَالْمُكَسَّرُ صِيَغُهُ فِي الثُّلاثِيِّ كَثِيرَةٌ تُعْرَفُ بِالسَّمَاعِ كَرِجَالٍ وَأَفْرَاسٍ وَفُلُوسٍ وَفِي غَيْرِ الثُّلاثِيِّ عَلَى وَزْنِ فَعَالِلَ وَفَعَالِيلَ قِيَاسٌ كَمَا عَرَفْتَ فِي التَّصْرِيفِ:**

**ترجمه**. د جمع مکسر صیغې په ثلاثي کښ ډیري دي چه هغه په سماع سره پیژندلی شي لکه رِجَالٌ. أَفْرَاسٌ. فُلُوسٌ او غَيْرِ الثُّلاثِيِّ په وزن د فَعَالِلَ او فَعَالِيلَ باندي راځي قیاس ځرنګه چه تاسو په علم صرف کښ پیژندلی دی

**تشریح** جمع مکسره چي بناء دواحدپه کي ماته وي پس دامستعمل ده په ثلاثي کي په کثرت سره ځکه ددي دباره څه اوزان اوابنیه مقررنشته بلکي ددي تعلق دسماع سره ده لکه رجال جمع رجل ده افراس جمع دافرس ده اوفلوس جمع دفلس ده ماتوپسوته وایي چي په لغت پښتوکي تري تعبیر په ماتي پیسي سره کیږي. اودا قسم جمع په غیرثلاثي کي په دوه وزنونو سره مستعمله ده قیاساً یو وزن فعالل ده لکه مساجد اودویم وزن فعاليل ده لکه مصابيح وغيره اودا تاسو پیژندلي دي په علم الصرف کي

**ثُمَّ الْجَمْعُ أَيْضًا عَلَى قِسْمَيْنِ جَمْعُ قِلَّةٍ وَهُوَ مَا يُطْلَقُ عَلَى الْعَشَرَةِ فَمَا دُونَهَا وَأَبْنِيَتُهُ أَفْعُلٌ وَأَفْعَالٌ وَأَفْعِلَةٌ وَفِعْلَةٌ وَجَمْعُ الصَّحِيحِ بِدُونِ اللامِ كَزَيْدُونَ وَمُسْلِمَاتٍ وَجَمْعُ كَثْرَةٍ وَهُوَ مَا يُطْلَقُ عَلَى مَا فَوْقَ الْعَشَرَةِ وَأَبْنِيَتُهُ مَا عَدَا هٰذِهِ الْأَبْنِيَةِ:**

**ترجمه** بیا جمع په دوه قسمه ده (١) جمع قلت (٢) جمع کثرت. (١) جمع قلت هغې ته وئیلی شي چه په لسو او کم د لسو باندي اطلاق کیږي او د دې اوزان دا دي أَفْعُلٌ. أَفْعَالٌ. أَفْعِلَةٌ. فِعْلَةٌ او د صحیح دواړي جمع بغیر دلام نه راځي لکه زَيْدُونَ وَمُسْلِمَاتٌ (٢) جمع کثرت هغې ته وئیلی شي چه د لسو نه زیات باندي اطلاق کیږي او د دې اوزان مذکوره اوزان نه بغیر دي

**تشریح** یعني جمع دمعانیو اومصداق په اعتبار سره په دوه قسمه ده (١) جمع قلت (٢) جمع کثرت. پس جمع قلت هغه جمع ده چي اطلاق یې تر درو نه ترلسو پوري (یعني په تسعة باندي) کیږي په دي کي دمصنفینو اختلاف ده دمصنفؒ په نزد عشرهم په جمع قلت کي داخل ده اودنورو مصنفینو په نزد لفظ عشره په جمع کثرت کي داخل دي او مختاره هم داده بلکه په دي فتوی ده څه دا طرف نه دجمعی قلت دپاره یو اوزان شپږ دي خلور مذکور في الشعر دي اودوه

وزنه خارجي دي چې يووزن جمع مذكر سالمه ده اودويم وزن جمع مؤنث سالمه ده اوددې نه ماسوى اوزان دجمعي مكسري دي. اوزان دجمعي قلت

جمع قلت راچهارست بنيه افعُل افعالٌ فعلةٌ افعلةٌ

افعلُ لكه اكلب جمع دكلب ده. افعال لكه اقوال جمع دقول ده. فعلة لكه غلمة جمع دغلام ده. افعلة لكه اشربته جمع دشربة دہ.

## د مصدر تعريف او تشريح

فَصْلٌ: اَلْمَصْدَرُ اِسْمٌ يَدُلُّ عَلَى الْحَدَثِ فَقَطْ وَيُشْتَقُّ مِنْهُ الْاَفْعَالُ كَالضَّرْبِ وَالنَّصْرِ مَثَلًا وَاَبْنِيَتُهُ مِنَ الثُّلَاثِيِّ الْمُجَرَّدِ غَيْرُ مَضْبُوْطَةٍ تُعْرَفُ بِالسَّمَاعِ وَمِنْ غَيْرِهِ قِيَاسِيَّةٌ كَالْاِفْعَالِ وَالْاِنْفِعَالِ وَالْاِسْتِفْعَالِ وَالْفَعْلَلَةِ وَالتَّفَعْلُلِ مَثَلًا:

**ترجمه** مصدر هغه اسم ده چه صرف په حدث باندي دلالت كوي او ده نه نور افعال مشتق وي لكه ضرب ،وهل. نصر ،مدد كول مثلاً او د دي اوزان د ثلاثي مجرد نه اخستلي شوي دي چه هغه په سماع سره پيژندلي شي او د غيرثلاثي مجرد نه قياس ده لكه أفعَل انفعل. استفعال، فعللة، تفعلل وغيره

**تشريح** د مصدر مشتقات چونكه اسم فاعل، اسم مفعول وغيره لپاره اصل ده خكه ني دا مقدم كړو. او مصدر هر هغه اسم ده چه صرف په معنى حدثي باندي دلالت كوي په بل شي باندي دلالت نه كوي يعني زمانه او نسبت الى الفاعل باندي دلالت نه كوي د مصدر اوزان ثلاثي مجرد نه منضبط ندي بلكه د اهل عربونه اوريدلو سره معلوميږي قياسي نه دي. سيبويه رحمة الله عليه د ډير تتبع نه پس د ۳۲ قول ني كړي ده بعض ۳۵ او بعض ۵۰ قول كړي ده.او غير ثلاثي مجرد يعني ثلاثي مزيدفيه رباعي مجرد رباعي مزيد فيه د دي مصدر اوزان د اهل عربو په سماع باندي موقوف نه دي بلكه قياسي دي د لپاره مخصوص اوزان مقرر دي مثلا د كومي ماضي وزن افعل وي نو ددي مصدر به افعال راځي او د كومي ماضي وزن چه انفعل وي نو ددي مصدر به انفعال راځي او د كومي ماضي وزن چه استفعل وي نو ددي مصدر به استفعال راځي او د كومي ماضي وزن چه فعلل راځي نو ددي مصدر به فعللة راځي به او د كومي ماضي وزن چه تفعلل راځي نو ددي مصدر به تفعلل به راځي

فَالْمَصْدَرُ اِنْ لَمْ يَكُنْ مَفْعُوْلًا مُطْلَقًا يَعْمَلُ عَمَلَ فِعْلِهٖ اَعْنِيْ يَرْفَعُ الْفَاعِلَ اِنْ كَانَ لَازِمًا نَحْوُ اَعْجَبَنِيْ قِيَامُ زَيْدٍ وَيَنْصِبُ مَفْعُوْلًا اَيْضًا اِنْ كَانَ مُتَعَدِّيًا نَحْوُ اَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ عَمْرًا:

**ترجمه** مصدر که چیرې مفعول مطلق نه وي دا به خپل فعل سره عمل کوي، مراد زما یعني فاعل ته به رفع ورکوي. کچرته هغه مصدر لازمي وي لکه أَعْجَبَنِي قِيَامُ زَيْدٍ. کچرته متعدي وي نو خپل مفعول ته به نصب ورکوي لکه أَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ عَمْرًا

**تشریح** مصدر که چیرې مفعول مطلق نه وي نو په شان د فعل په عمل کوي او که چیرې مصدر لازمي وي نو فاعل ته به رفع ورکوي لکه أَعْجَبَنِيْ قِيَامُ زَيْدٍ، بدي کښې قیام مصدر لازمي ده، د بناء بر فاعل زید ته رفع ورکړه. که چیرې د فعل متعدي مصدر وي نو فاعل ته به رفع او مفعول ته به نصب ورکول کیږي لکه أَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ عَمْرٍو پدي کښې ضرب متعدي ده. زید ته بناء بر فاعل رفع ورکړی شوی ده او عمرا ته بناء بر مفعول نصب ورکړي شوی دی

**وَلَا يَجُوْزُ تَقْدِيْمُ مَعْمُوْلِ الْمَصْدَرِ عَلَيْهِ فَلَا يُقَالُ أَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ ضَرْبُ عَمْرًا وَلَا عَمْرًا ضَرْبُ زَيْدٍ:**

**ترجمه** او جائز نه ده مقدم کول د معمول په مصدر باندي لکه أَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ ضَرْبُ عَمْرًا او داسې ونیل هم صحیح ندي چه عَمْرًا ضَرْبُ زَيْدٍ

**تشریح** معمول د مصدر په مصدر باندي مقدم کول جائز ندی لکه هغه فاعل وي یا مفعول وي وجه ئې دا ده چه مصدر عامل ضعیفه ده، عامل ضعیفه معمول مقدم کښې عمل نشي کولی لهذا أَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ ضَرْبُ عَمْرًا یا عَمْرًا ضَرْبُ زَيْدٍ، داسې ونیل صحیح ندی

**وَيَجُوْزُ إِضَافَتُهُ إِلَى الْفَاعِلِ نَحْوُ كَرِهْتُ ضَرْبَ زَيْدٍ عَمْرًا وَإِلَى الْمَفْعُوْلِ بِهِ نَحْوُ كَرِهْتُ ضَرْبَ عَمْرٍو زَيْدٌ:**

**ترجمه** او جائز نده اضافت د مصدر فاعل طرف ته لکه كَرِهْتُ ضَرْبَ زَيْدٍ عَمْرًا یا مفعول طرف ته لکه كَرِهْتُ ضَرْبَ عَمْرٍو زَيْدٌ

**تشریح** د مصدر اضافت فعل طرف ته جائز ده خو په هغه وخت کښې چه کله فاعل لفظاً مجرور وي مضاف الیه کیدلو دوجه نه او معنیً مرفوع وي فاعل کیدلو دوجه نه کچرته ورسې مفعول به وي نو هغه به منصوب وي لکه كَرِهْتُ ضَرْبَ زَيْدٍ عَمْرًا، پدي کښې ضرب مصدر فاعل طرف ته مضاف ده او د مصدر اضافت مفعول به طرف ته جائز ده په هغه وخت کښې چه کله فاعل مذکور وي نو دا به مرفوع وي لکه كَرِهْتُ ضَرْبَ عَمْرٍو زَيْدٌ، پدي کښې ضرب مصدر عمر مفعول به طرف ته مضاف دي عمر لفظ مجرور ده او معنی منصوب ده مفعول به کیدلو دوجه نه او زید مرفوع ده فاعل دوجه نه

**وَأَمَّا إِنْ كَانَ مَفْعُوْلًا مُطْلَقًا فَالْعَمَلُ لِلْفِعْلِ الَّذِيْ قَبْلَهُ نَحْوُ ضَرَبْتُ ضَرْبًا عَمْرًا**

فَعَمْرٌو وَمَنْصُوبٌ بِضَرَبْتُ:

**ترجمه و تشریح** کچرته مصدر مفعول مطلق وی سں عمل به ورکولی شی هغه فعل ته چه کوم د نه مخکښ وی لکه ضَرَبْتُ ضَرْبًا عَمْرًا اوهلو زید به وهلو سره، بدی کښ ضرب مصدر مفعول مطلق ده پدی وخت کښ به عمل مصدر ته نښی ورکولی، بلکه ضَرَبْتُ عَمْرًا عامل په ناصبه وی وجه ئی داده چه فعل عامل قوی ده او مصدر عامل ضعیفه ده چه قوی وی نو عمل به ضعیف کښ کول جائز نه ده

## د اسم فاعل تعریف او تشریح

فَصْلٌ: اِسْمُ الْفَاعِلِ اِسْمٌ مُشْتَقٌّ مِنْ فِعْلٍ لِيَدُلَّ عَلٰى مَنْ قَامَ بِهِ الْفِعْلُ بِمَعْنَى الْحُدُوْثِ وَصِيْغَتُهُ مِنَ الثُّلَاثِيِّ الْمُجَرَّدِ عَلٰى وَزْنِ فَاعِلٍ كَضَارِبٍ وَنَاصِرٍ وَمِنْ غَيْرِهِ عَلٰى صِيْغَةِ الْمُضَارِعِ مِنْ ذٰلِكَ الْفِعْلِ بِمِيْمٍ مَضْمُوْمَةٍ مَكَانَ حَرْفِ الْمُضَارَعَةِ وَكَسْرِ مَا قَبْلَ الْآخِرِ كَمُدْخِلٍ وَمُسْتَخْرِجٍ:

**ترجمه** اسم فاعل هغه اسم ده چه مشتق وی د فعل نه دلپاره چه دلالت وکړی په هغه ذات باندی چه کوم د سره قائم ده په طریقی د حدوث سره، او د ثلاثی مجرد نه به وزن د فاعل سره راځی لکه ضَارِبٌ او نَاصِرٌ صیغه د اسم فاعل بعینه صیغه د مضارع د دغه فعل ده خو لیکن په ځائی د حرف مضارعت باندی میم مضمومه راوړلی شوه او ما قبل نه به کسره ورکړی شوه لکه مُدْخِلٌ وَمُسْتَخْرِجٌ

وَيَعْمَلُ عَمَلَ فِعْلِهِ الْمَعْرُوْفِ اِنْ كَانَ بِمَعْنَى الْحَالِ اَوِ الْاِسْتِقْبَالِ وَمُعْتَمِدًا عَلَى الْمُبْتَدَأِ نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ اَوْ ذِي الْحَالِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ ضَارِبًا اَبُوْهُ عَمْرًا اَوِ الْمَوْصُوْلِ نَحْوُ مَرَرْتُ بِالضَّارِبِ اَبُوْهُ عَمْرًا اَوِ الْمَوْصُوْفِ نَحْوُ عِنْدِيْ رَجُلٌ ضَارِبٌ اَبُوْهُ عَمْرًا اَوِ الْهَمْزَةِ الْاِسْتِفْهَامِ نَحْوُ اَقَائِمٌ زَيْدٌ اَوْ حَرْفِ النَّفْيِ نَحْوُ مَا قَائِمٌ زَيْدٌ:

**ترجمه** اسم فاعل خپل فعل معروف په شان عمل کوی که چیری هغه حال یا استقبال په معنی سره وی او په مبتدا باندی اعتماد وی لکه زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ یا ذوالحال باندی لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ ضَارِبًا اَبُوْهُ عَمْرًا یا موصول باندی لکه مَرَرْتُ بِالضَّارِبِ اَبُوْهُ عَمْرًا یا موصوف باندی لکه عِنْدِيْ رَجُلٌ ضَارِبٌ اَبُوْهُ عَمْرًا یا همزه استفهام باندی لکه اَقَائِمٌ زَيْدٌ یا حرف نفی باندی لکه مَا قَائِمٌ زَيْدٌ

فَاِنْ كَانَ بِمَعْنَى الْمَاضِيْ وَجَبَتِ الْاِضَافَةُ مَعْنًى نَحْوُ زَيْدٌ ضَارِبُ عَمْرٍو اَمْسِ

هٰذَا اِذَا كَانَ مُنَكَّرًا اَمَّا اِذَا كَانَ مُعَرَّفًا بِاللَّامِ يَسْتَوِيْ فِيْهِ جَمِيْعُ الْاَزْمِنَةِ نَحْوُ زَيْدُنِ الضَّارِبُ اَبُوْهُ عَمْرًا اَلْاٰنَ اَوْغَدًا اَوْاَمْسِ:

**ترجمه** كه چيرى اسم فاعل په معنى د ماضي سره وي نو اضافت معنوي واجب ده لكه زَيْدٌ ضَارِبُ عَمْرٍوۤاَمْسِ دا په هغه وخت كښ چه كله اسم فاعل نكره وي او چه كله معرف باللام وي نو په دي كښ به ټولې زماني برابرى وى لكه زَيْدُنِ الضَّارِبُ اَبُوْهُ عَمْرًا اَلْاٰنَ اَوْغَدًا اَوْاَمْسِ

## تشريح د اسم فاعل

**خلاصه** دااووم فصل د اسم فاعل په بحث كي مرتب كړى شوي ده پس فرق په فاعل اواسم فاعل كي دا ده چي فاعل اسم جامد وي لكه ضرب زيد زيد فقط فاعل ده يعني ضرب پري واقع شوي ده . اسم فاعل هغه اسم ته وايي چي مشتق وي د مصدر نه لكه ضارب ناصر فاتح وغيره اوتعريف د اسم فاعل داده داهغه اسم ده چي مشتق وي د فعل ( يعني مصدر ) نه دپاره ددي چي دلالت اوكي په يو ذات د اسي ذات چي دافعل ده سره قائم وي په طريقي د حدوث اوتجدد سره

**قيودات** اسم مشتق من فعل . په دي سره اسماء جوامد نول خارج شول دفعل نه مراد لغوى معنى ده ځكه چي د اسم فاعل اشتقاق دفعل لغوي نه كيږي نه دفعل اصطلاحي نه . په علي من قام به الفعل سره احترازراغى د اسم مفعول او اسم تفضيل نه ځكه چي اسم مفعول دلمن وقع عليه الفعل دپاره موضوع ده او اسم تفضيل دلمن قام به الفعل مع الزيادت دپاره موضوع ده . په بمعنى الحدوث سره احترازراغى د صفت مشبه نه ځكه چي صفت مشبه په صفت دائمه باندي دلالت كوي او اسم فاعل په صفت حادثه باندي دلالت كوي بعيه بحث د اسم فاعل او قبل المصدر ترك كړي شو دوجي د اسانتيا او دوجي د بوج كيدو د ذهن زما .

## د اسم مفعول تعريف او تشريح

فَصْلٌ : اِسْمُ الْمَفْعُوْلِ اِسْمٌ مُشْتَقٌّ مِنْ فِعْلٍ مُتَعَدٍّ لِيَدُلَّ عَلٰى مَنْ وَقَعَ عَلَيْهِ الْفِعْلُ وَصِيْغَتُهٗ مِنَ الْمُجَرَّدِ الثُّلَاثِيِّ عَلٰى وَزْنِ مَفْعُوْلٍ لَفْظًا كَمَضْرُوْبٍ اَوْتَقْدِيْرًا كَمَقُوْلٍ وَمَرْمِيٍّ وَمِنْ غَيْرِهٖ كَاسْمِ الْفَاعِلِ بِفَتْحِ مَا قَبْلَ الْاٰخِرِ كَمُدْخَلٍ وَمُسْتَخْرَجٍ وَيَعْمَلُ عَمَلَ فِعْلِهِ الْمَجْهُوْلِ بِالشَّرَائِطِ الْمَذْكُوْرَةِ فِيْ اِسْمِ الْفَاعِلِ نَحْوُ زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ غُلَامُهٗ

اَلْاٰنَ اَوْغَدًااَوْاَمْسِ:

**ترجمه** اتم فصل په بیان د اسم مفعول کښې ده. اسم مفعول دا هغه اسم ده چه د فعل متعدی نه مشتق وی، دا په هغه چا باندي دلالت وکړی چه چ باندي فعل واقع شوي وی او د دې صیغه د ثلاثی مجرد نه د مفعول په وزن سره راخی لفظاً لکه مضروب یا تقدیراً لکه مقول او مرمیٰ، د ثلاثی مجرد نه علاوه د اسم فاعل په وزن سره راخی. آخر نه ما قبل به فتحه وی لکه مُدْخَلٌ مُسْتَخْرَجٌ دا د فعل مجهول په شان عمل کوی. په هغه شرطونو سره چه کوم اسم فاعل کښې ذکر شوی دی لکه زَيْدٌمَضْرُوْبٌ غُلَامُهٗ اَلْاٰنَ اَوْغَدًااَوْاَمْسِ

**خلاصه** دا اتم فصل ده. دا هغه اسم ده چې مشتق وي د فعل متعدي نه د پاره د دې چې دلالت اوکې په يو ذات داسې ذات چې واقع شوي وي فعل د فاعل په ده باندي. په اسم مشتق سره احترازراغی د هغه اسم نه چې مشتق نه وي خکه چې هغي ته اسم مفعول ويلی کیږي بلکه تعبیرتري فقط په مفعول سره کیږي په من فعل متعدی سره احترازراغي د فعل لازم نه خکه چې د اسم مفعول د فعل لازم نه مستق کیږي به علی من وقع علیه الفعل سره احترازراغی د اسم د فعل او صفت مشبه نه او بدي سره سری هغه اسم تفضیل هم خارج سو کوم چې فاعل راخي او کوم چې د مفعول د پاره راخي لکه اشهر، ډیر مشهور، یا لکه عغرق ډیر مسهور خکه چې دا من وقع علیه الفعل مع الزیادت د پاره موضوع ده. بقیه بحث ترك کړی سو خکه چې خما ذهن نوربرداست نشي کولی.

# فصل الصفة المشبهة

**فَصْلٌ**: اَلصِّفَةُ الْمُشَبَّهَةُ اِسْمٌ مُشْتَقٌّ مِنْ فِعْلٍ لَازِمٍ لِيَدُلَّ عَلٰى مَنْ قَامَ بِهِ الْفِعْلُ بِمَعْنَى الثُّبُوْتِ وَصِيْغَتُهَا عَلٰى خِلَافِ صِيْغَةِ اِسْمِ الْفَاعِلِ وَالْمَفْعُوْلِ اِنَّمَا تُعْرَفُ بِالسِّمَاعِ كَحَسَنٍ وَصَعْبٍ وَظَرِيْفٍ وَهِيَ تَعْمَلُ عَمَلَ فِعْلِهَا مُطْلَقًا بِشَرْطِ الْاِعْتِمَادِ الْمَذْكُوْرِ:

**ترجمه** صفت مشبه دا هغه اسم ده چه د فعل لازمي نه مشتق وي د لپاره د چه دلالت وكړي په هغه ذات باندي چه چا سره فعل قائم وي په طريقې د ثبوت سره او صفت مشبه د اسم فاعل او اسم مفعول صيغې نه خلاف وي. د هغې نه علاوه چه كوم په سماع سره پيژندلې شي لكه حسن، صعب، ظريف او د خپل فعل په شان عمل كوي مطلقاً. او عمل د صفت مشبه لپاره اعتماد شرط ده

**تشريح** دا نهم فصل ده پدي فصل كې د صفت مشبه تعريف او قواعد ذكر كوي پس دا تعريف دا هغه اسم ده چې مشتق وي د فعل لازمي نه د پاره د دې چې دلالت اوكې په يو ذات داسې ذات چې قائمه او دائمه وي معنى مصدري په دغه ذات باندي **وجه تسميه** صفت مشبه ورته ځكه وايې چې دا په يو څو اُمورو كې پشان دا اسم فاعل ده لكه څنګه چې اسم فاعل مذكر مؤنث تثنيه او جمع واقع كيږي دغه شان صفت مشبه هم واقع كيږي ليكن فرق په كې دا ده چې په اسم فاعل كې صفت عارضي وي لكه ضارب چې چاته او ويلې شي نو دا د ضرب صفت عارضي صادر شو د فاعل د پاره نو بطور د دوام او استمرار او صفت مشبه كې ثبوت د صفت دائمي او لازمي وي لكه حسن چې ديو حسين او جميل او ښائسته ذات د پاره صفت او ګرزي نو دا به هر وخت دائم او قائم او لازم وي د دغه ذات سره او عاشقان به واره ستې كوي

**قيودات** اسم مشتق الخ پدي سره احترازراغې د جامدنه په من فعل لازم سره احترازراغی دا سم فاعل ، اسم مفعول او د افعل التفضيل نه ځكه چې دا د فعل متعدي نه مشتق كيږي . په على من قام به الفعل سره احترازراغی دا سم زمان اسم مكان او دا سم آلې نه . بمعنى الثبوت چې د قام سره متعلق شې نو په دي سره هغه اسم فاعل او اسم تفضيل خارج شول كوم چې مشتق وي د فعل لازم نه لكه فاضل او افضل

**اوزان د صفت مشبه** اوزان يعني صيغې د صفت مشبه په خلاف د اسم فاعل او اسم مفعول دي . د دي مطلب دا دي چې صيغې د صفت مشبه سماعي دي او صيغې د اسم فاعل او اسم مفعول قياسي دي ليكن دا مذهب د جمهورو نحاتو دي او د ابن مالكؒ په نزد صيغې د صفت مشبه په

وزن داسم فاعل راځي لکه شاحطٌ په معنی دشحيط ای بعيد . اود ابر سبيل قلت مستعملیږي يعني مختاره مذهب دنحاتودي . **وهي تعمل الخ** صفت مشبه به عمل دفعل لازمی کوي قطع نظر دزمانونه په طريقې دثبوت دوام او استمرار سره نه په طريقې دحدوث سره يعني په زمانه حاليه استقباليه دواړو کې به معنی دصفت مشبه قائمه او دائمه وي په ثبوت استمراري سره.

وَمَسَائِلُهَا ثَمَانِيَةَ عَشَرَ لِاَنَّ الصِّفَةَ اِمَّا بِاللَّامِ اَوْ مُجَرَّدَةٌ عَنْهَا وَمَعْمُوْلُ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا اِمَّا مُضَافٌ اَوْ بِاللَّامِ اَوْ مُجَرَّدٌ عَنْهُمَا فَهٰذِهٖ سِتَّةٌ وَمَعْمُوْلُ كُلٍّ مِّنْهُمَا اِمَّا مَرْفُوْعٌ اَوْ مَنْصُوْبٌ اَوْ مَجْرُوْرٌ فَذٰلِكَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ وَتَفْصِيْلُهَا نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدُنِ الْحَسَنُ وَجْهُهٗ ثَلٰثَةٌ لِوَجْهٍ وَكَذٰلِكَ الْحَسَنُ الْوَجْهِ وَالْحَسَنُ وَجْهٍ وَحَسَنٌ وَجْهُهٗ وَحَسَنُ الْوَجْهِ وَحَسَنٌ وَجْهٍ وَهِيَ عَلٰى خَمْسَةِ اَقْسَامٍ مِّنْهَا مُمْتَنِعٌ اَلْحَسَنُ وَجْهِهٖ وَالْحَسَنُ وَجْهٍ وَمُخْتَلِفٌ فِيْهِ حَسَنُ وَجْهِهٖ وَالْبَوَاقِيْ اَحْسَنُ اِنْ كَانَ فِيْهِ ضَمِيْرٌ وَاحِدٌ وَحَسَنٌ اِنْ كَانَ فِيْهِ ضَمِيْرَانِ وَقَبِيْحٌ اِنْ لَّمْ يَكُنْ فِيْهِ ضَمِيْرٌ.

**ترجمه** او د دې اتلس مسائل دي. ځکه چه صفت به يا لام سره وي يا به نه وي، او معمول دده کښې دوه احتماله دی اول احتمال دا دي چه مضاف به وي او دويم احتمال دا دي چه ملتبس به وي په الف لام باندې، پس دا تول شپږ صورتونه شول په بيا يدې شپږ اقسامو کښې د هر واحد معمول به يا مرفوع وي يا به منصوب وي يا به مجرور وي بس دا تول اتلس صورتونه شول لکه جَاءَنِيْ زَيْدُنِ الْحَسَنُ وَجْهُهٗ دا دري صورتونه شول. همدغه رنګې الحسن الوجه او الحسن وجه او حسن وجهه او حسن الوجه او حسن وجهه. او دا صفت مشبه به څيل کور کښې به پنځه قسمه دي، يدي کښې بعض ممتنع دي لکه الحسن وجه او الحسنُ وجهه. او بعض صورتونه مختلف فيه دی لکه حسنُ وجهه او بعض صورتونه احسن دی، کچرته يدي کښې يو ضمير وي او حسن دي کچرته يدي کښې دوه ضميرونه وي او قبيح ده کچرته يدي کښې ضمير نه وي

**تشريح** په صفت مشبه کې اتلس احتماله دي وجه دحصر يې داده چې صفت مشبه به خالي نه وي يابه معرفه باللام وي يابه مجرده وي دالف لام نه او بيا به معمول د هر واحد خالي نه وي يابه معرفه بالاضافت وي يامعرفه باللام وي او يابه مجرد وي ددي دواړونه بس دا شپږ احتماله شول او بيا هر واحد دا احتمالاتو ستونه به درې دري احتمالات مشتمل دي بايه معمول د هر واحد مرفوع وي يا به منصوب وي او يابه مجرور وي پس مجموعه يې اتلس احتماله جوړ شول ـ پس کچرې معمول دصفت مشبه مرفوع وي نو دابه بنابر فاعليت وي ځکه کل فاعل مرفوع

اوکچري معمول دصفت مشبه معرفه وي نوبيابه منصوب بنء برتشبيه بالمفعوليت وي خکه چې صفت مشبه نه بعد مفعول به نه راځي پس دامشابه دمفعول سره وي خکه به منصوب وي اوکچري معمول دصفت مشبه نکره وي نومنصوب بـه وي بنابرتمیز اوکه معمول يې مجرورويٍ نودابه بنابراضافت وي ـ پس زده کړه داخبره چې مذکوره اتلس احتماله په پنځه قسمه دي (۱) ممتنع (۲) مختلف فيه (۳) احسن (۴) حسن (۵) قبيح پس ممتنع په کې فقط دوه صورته دي يو الحسن وجهه دي اودويم الحسن وجهُهُ دي ددې دامتناع وجه داده چې اول قسم اضافت لفظي دي او داضافت فائده تخفيف في اللفظ وي حالانکه دلته هيڅ قسم تخفيف نشته بلکه تنوين دالف لام دوجې نه حذف شوي دي پس داخکه دوي ممتنع گرزولي دي اومثال ثاني خکه ممتنع دي چې دامعرفه بالاضافت ده حالانکه دلته هم تخفيف نشته يعني ضميربه کې باقي دي ـ مختلف فيه په ثمانية عشره احتمالاتو کې فقط يو قسم دي او په دي کې اختلاف دي خکه ورته مختلف فيه وايي هغه صورت دادي حسن وجهه مجرور بنابراضافت دي او دااضافت لفظي دي مفيد دتخفيف دپاره دي حالانکه دلته فائده کامله نه ده راغلې خکه چې تنوين دمضاف نه حذف شوي دي ليکن ضمير دمضاف اليه نه دي حذف شوي پس دسيبويه اونحات بصره په نزد دا قبيح دی البته دضرورت شعريه مقام کې جائزده، خکه چې تخفيف کامل په کې نه ده راغلی اواعلی درجې دتخفيف قدرت لرلو باوجود په ادنی تخفيف اکتفاء کول قبيح دي ـ نحاة کوفه وايي چې داجائزاوصحيح دي خکه چې في الجمله تخفيف نه دي ليکن بياهم نون دوجې داضافت نه حذف شوي دي اواعلی درجې تخفيف دلته ناممکن دي پس داعلی درجې اکتفاء به ادنی درجې سره اوکړې شوه ـ باقي ينځلس احتماله دي په دي کې ضابطه داده چې په کوم قسم کې ضمير يو وي برابره خبره ده که په صفت کې وي اوکه په معمول کې وي پس دابه احسن وي اودانقريباً نهه اقسام دي په بقيه پنځلسو کې ـ داخکه احسن دي چې دموصوف سره دربط دپاره يو ضمير کافي دي بغير د زيادت او نقصان نه ـ هغه اقسام چې په هغې کې دوه ضميرين وي يو په صفت کې اويل په معمول کې پس دابه حسن وي اودافقط دوه قسمين دي حسن بدي اعتبار سره دي چې دابه ضمير محتاج اليه باندي مشتمل دي اوهغه ضمير صفت دي چې کـدل بې دمانبل دپاره ضروري دي اوداغير احسن خکه دي چې دابه ضمير زائد على الحاجت باندي مشتمل ده اوهغه ضمير به معمول کې ده ـ هرهغه قسم چې هغې کې ضميرنوي دېته قبيح وايي اوداخلورقسمين دي دقباحت وجه يې داده چې دضمير محتاج اليه کيدلو دوجې نه دموصوف سره ربط باتي نه شي ـ

وَالضَّابِطَةُ أَنَّكَ مَتٰى رَفَعْتَ بِهَا مَعْمُوْلَهَا فَلَا ضَمِيْرَ فِي الصِّفَةِ وَمَتٰى نَصَبْتَ أَوْ جَرَرْتَ فِيْهَا ضَمِيْرُ الْمَوْصُوْفِ نَحْوُ زَيْدٌ حَسَنٌ وَجْهُهٗ:

**ترجمه** او د ضمير ببزندلو طريقه داده. چكله د صفت مشبه معمول ته رفع ورکړى شي نو پدې وخت كښ به صفت مشبه كښ به ضمير نه وى. او چه كله د صفت مشبه معمول ته نصب يا جر وركړي شي نو پدې كښ به يو ضمير وى او هغه به راجع وى موصوف ته لكه زَيْدٌ حَسَنٌ وَجْهُهٗ

**تشريح** پدې ضابطه كې مصنفؒ د ضمير د پيژندلو طريقه خايي. ضابطه داده چې هركله تاسو د صفت مشبه معمول ته رفع وركړي نو په هغه وخت كې به په صفت مشبه كې هيڅ قسم ضمير نه وي ځكه چې په دې وخت كې معمول پخپله د صفت مشبه فاعل وي. او چې هركله تاسو معمول د صفت مشبه ته نصب يا جرور كړي نو به دې وخت كې به په صفت مشبه كې يو ضمير وي او راجع به وي موصوف ته او وي به دغه ضمير فاعل د صفت مشبه او په دې وخت كې به د صفت تذكير. تانيث. تثنيت او جمعيت د موصوف سره مطابق وي ځكه چې د ضمير دخيل د مرجع سره مطابقت ضروري وي.

## فصل اسم التفضيل

فَصْلٌ: اِسْمُ التَّفْضِيْلِ اسْمٌ مُشْتَقٌّ مِنْ فِعْلٍ لِيَدُلَّ عَلَى الْمَوْصُوْفِ بِزِيَادَةٍ عَلٰى غَيْرِهٖ:

**ترجمه** اسم تفضيل هغه اسم ده چه مشتق وى د فعل نه لپاره ددې چه دلالت وكرى به موصوف باندې چه دا موصوف به زيادت وى په غير باندې.

**تشريح** اسم تفضيل هغه اسم ده چې مشتق وي د مصدر يا د فعل نه د پاره ددې چې دلالت اوكې په يو ذات د اسې ذات چې دخپل غير نه په معنى مصدرى كې زيات متصف وي. مصنفؒ ليدل على الموصوف الخ او ويل ځكه چې تعريف شامل شي دواړه قسمونو د اسم تفضيل ته يعني د فاعل تفضيل او د مفعول تفضيل لكه (اضرب) ډير وهونكي د فاعل تفضيل دي او اشهر ډير مشهور د اد مفعول تفضيل دي. **قيودات**. په على امر موصوف سره اسماء زمان مكان او آله خارج شول. بزيادت على غير الخ پدې سره اسم فاعل اسم مفعول او صفت مشبه خارج شول او هغه اسم فاعل هم خارج شو كوم چې د مبالغى د پاره وضع شوي ده لكه ضراب او ضروب ډير وهلو والا دا اگرچې په زيادت دلالت كوي ليكن په دې كې د زيادت على الغير لحاظ نشته.

وَصِيْغَةُ اَفْعَلَ فَلَا يُبْنٰى اِلَّا مِنَ الثُّلَاثِيِّ الْمُجَرَّدِ الَّذِيْ لَيْسَ بِلَوْنٍ وَّلَا عَيْبٍ نَحْوُ زَيْدٌ اَفْضَلُ النَّاسِ.

**ترجمه**: صیغه د اسم تفضیل هغه اَفْعَلُ ده، پس دا نه جوړیږي مګر د ثلاثي مجرد نه چه په کومه کښې دلون او د عیب معنی نه وي پرته لکه اَفْضَلُ النَّاسِ

**تشریح** د اسم تفضیل صیغه افعل مذکر د پاره ده او فعلی د مؤنث د پاره ده بدې کې لفظ دخیر اوشر داخل دي ځکه چې دراصل اَخْيَرُ اَشْيَرُ وو او داصیغې به فقط د ثلاثي مجرد نه راځي او نه به راځي د ثلاثي مزید او رباعی نه ځکه چې د اسم تفضیل په دې وزن صیغه راتلل ممکن دي ولې چې که حروف کم کړی شي نو بیا به لفظاً او معنیً فعل لازمیږي او که چرې حروف زیات کړی شي نو بیا به د افعل نه زیات شي. د ثلاثي مجرد د پاره شرط دا دې چې په معنی دلون او عیب نوې ځکه چې دالوانو او عیوبو معنی د غیر تفضیل د پاره افعل د صفت صیغه راځي پس که چرې افعل د تفضیل هم د دې نه جوړ کړی شي نو بیا به دا فعل صفتي سره التباس راځي لکه اسود، تور رنګ والا سړی، د عیب نه مراد عیب ظاهري دي نه باطني. لکه اجهل، زیات جهالت والا، دا دجهل نه مشتق دي او بدې کې عیب باطني دي پس دا اسم تفضیل ده.

فَاِنْ كَانَ زَائِدًا عَلَى الثُّلَاثِيِّ اَوْ كَانَ لَوْنًا اَوْ عَيْبًا يَجِبُ اَنْ يُّبْنٰى اَفْعَلُ مِنْ ثُلَاثِيٍّ مُّجَرَّدٍ لِيَدُلَّ عَلٰى مُبَالَغَةٍ وَّشِدَّةٍ وَّكَثْرَةٍ ثُمَّ يُذْكَرُ بَعْدَهٗ مَصْدَرُ ذٰلِكَ الْفِعْلِ مَنْصُوْبًا عَلَى التَّمْيِيْزِ كَمَا تَقُوْلُ هُوَ اَشَدُّ اِسْتِخْرَاجًا وَّاَقْوٰى حُمْرَةً وَّاَقْبَحُ عَرَجًا وَّقِيَاسُهٗ اَنْ يَّكُوْنَ لِلْفَاعِلِ كَمَا مَرَّ وَقَدْ جَاءَ لِلْمَفْعُوْلِ قَلِيْلًا نَحْوُ اَعْذَرُ وَاَشْغَلُ وَاَشْهَرُ

**ترجمه**: که چیرې فعل د ثلاثي نه زائد وي یا لون یا عیب په معنی سره وي، نو د دې وزن د ثلاثي مجرد نه دا فعل په وزن سره راوړل واجب دي. لپاره د دې چه دلالت وکړی په مبالغه، شدت، او کثرت باندې پس له دینه به د دې فعل مصدر به ذکر کولی شي منصوب به وي بناء بر تمیز لکه هُوَ اَشَدُّ اِسْتِخْرَاجًا وَّاَقْوٰى حُمْرَةً وَّاَقْبَحُ عَرَجًا، او د قیاس تقاضا داده چه دا د فاعل لپاره وي لکه څرنګه چه مخکښې تیر شو. او کله مفعول لپاره راځي قلیلاً لکه اَعْذَرُ، اَشْغَلُ، اَشْهَرُ

**تشریح** د دې عبارت خلاصه داده که چرې صیغه د اسم تفضیل د ثلاثي مجرد د وزن نه زیات کړی شي، دیعني ثلاثي مزید یا رباعي مجرد یا رباعي مزید، او یا ثلاثي مجرد وي لیکن معنی په کې دعیب او لون وي نو بیا به دې وخت کې واجبه ده داخیره چې په وزن د افعلُ باندې د ثلاثي مجرد نه د لفظ د شدت یا کثرت یا قوت یا ضعف یا قباحت او یا احسن وغیره نه چې کوم مقصود وي نو موافق صیغه

دي جوړه کړی شي دپاره د دي چي دلالت اوکړي په مبالغه ـ شدت او کثرت باندي او بيا به مصدر د دغه فعل، چي د کوم نه اسم تفضيل ممتنع وي؛ منصوب کړی شي بنا بر تميز لکه هو اشد منه استخراجاً هغه د د منه په ويستلو او خروج کي ډير محنت دي دامثال د ثلاثي مزيد دي هي اقوی حمرة هغه د د د نه په سور والي کي ډيره قوي ده ـ دامثال د ثلاثي مجرد دي او معنی د لون او عيب په کي پرنه ده.

وَالْاِسْتِعْمَالُ عَلٰى ثَلَاثَةِ اَوْجُهٍ اِمَّا مُضَافٌ كَزَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ اَوْ مُعَرَّفٌ بِاللَّامِ نَحْوُ زَيْدُنِ الْاَفْضَلُ اَوْ بِمِنْ نَحْوُ زَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو:

**ترجمه**: د اسم تفضيل استعمال په د طريقو سره ده، (۱) يا به مضاف وي لکه زَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ (۲) يا به معرف باللام وي لکه زَيْدُنِ الْاَفْضَلُ (۳) يا به لفظ مِنْ سره وي لکه زَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو

**تشريح**: اسم تفضيل به مستعمليږي په يو د طرقو ثلاثو سره يا به اسم تفضيل مضاف وي لکه زيد افضل الناس يا به اسم تفضيل معرف باللام (عهد خارجي) وي لکه زيدُنِ الافضل يا به اسم تفضيل د مِنْ سره مستعمليږي لکه زيد افضل من عمرو ـ پس په دي طرقو ثلاثو کي اصل استعمال د مِن دي او دويم نمبر اصل استعمال د اضافت دي او دريم د لام دي او خالي کيدل د اسم تفضيل غير جائز دي د طرقو ثلاثو نه لکه زيد افضل فقط بدون الطريقة احدٌ من الطرق الثلثة ناجائز دي ـ البته که چيری مفصل عليه قرائن موجود وي نو بيا فقط د مِن تقدير جائز دي لکه الله اکبر اي اکبر من کل شئ او په دي وخت کي استعمال د اسم تفضيل بغير د طرقو ثلاثو نه جائز دي لکه مثال مزکور و اي اکبر کل شيئ بغير د مِن نه او بغير د اضافت او لام نه مستعمل ده ـ زده کړه د اخبره چي جمع کيدل د دوه طريقو په استعمال د اسم تفضيل کي ناجائز دي لکه زيدُنِ الافضل من عمرو دا غير جائز دي.

وَيَجُوْزُ فِي الْاَوَّلِ الْاِفْرَادُ وَمُطَابَقَةُ اِسْمِ التَّفْضِيْلِ لِلْمَوْصُوْفِ نَحْوُ زَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَالزَّيْدَانِ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَاَفْضَلَا الْقَوْمِ وَالزَّيْدُوْنَ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَاَفْضَلُوْا الْقَوْمِ وَفِي الثَّانِيْ يَجِبُ الْمُطَابَقَةُ نَحْوُ زَيْدُنِ الْاَفْضَلُ وَالزَّيْدَانِ الْاَفْضَلَانِ وَالزَّيْدُوْنَ الْاَفْضَلُوْنَ وَفِي الثَّالِثِ يَجِبُ كَوْنُهُ مُفْرَدًا مُذَكَّرًا اَبَدًا نَحْوُ زَيْدٌ وَهِنْدٌ وَالزَّيْدَانِ وَالْهِنْدَانِ وَالزَّيْدُوْنَ وَالْهِنْدَاتُ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو:

**ترجمه**: په اول قسم کښ اسم تفضيل مفرد راوړل جائز دی، او د موصوف مطابق راوړل هم جائز دی لکه زَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَالزَّيْدَانِ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَاَفْضَلَا الْقَوْمِ وَالزَّيْدُوْنَ اَفْضَلُ الْقَوْمِ وَاَفْضَلُوْا الْقَوْمِ په دويم قسم کښ مطابقت واجب دي لکه زَيْدُنِ الْاَفْضَلُ وَالزَّيْدَانِ الْاَفْضَلَانِ وَالزَّيْدُوْنَ الْاَفْضَلُوْنَ او دريم قسم کښ د اسم

تفضل مفرد مزکر راورل واجب دي لکه زَيْدُوَهِنْدٌوَالزَّيْدَانِ وَالْهِنْدَانِ وَالزَّيْدُوْنَ وَالْهِنْدَاتُ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو

**تشریح** هرکله چې اسم تفضيل مضاف وي نو بيدي صورت کې داسم تفضيل انفراديت هم جائزده او مطابقت دموصوف سره هم جائزده دجوازدافرادد باره وجه داده چې دامشابه دي په ذکرد مفضل عليه کې داستعمال دمن سره په اسم تفضيل کې او په استعمال دمن کې افرادواجب دي نوګويادا ئله مسئله دجوازراغله کچري افرادالله واجب شي نوبيا به مطابقت ختم شي اومطابقت هم جائزدي خکه چې داقسم استعمال داسم تفضيل به حقيقت کې صفت او موصوف دي امثله مذکورفي المتن الکتاب هرکله چې اسم تفضيل معرف باالام وي نوبيدي صورت کې مطابقت ضروري اوواجب دي خکه چې داموصوف اوصفت دي اودلته دتطابق دپاره هيڅ مانع نشته ددي وجې نه مطابقت واجب ده هرکله چې اسم تفضل مستعمل وي دمن سره نوپدي صورت کې به اسم تفضيل هميشه دپ ره مفردمذکرذکرکيږي وجوبا . ددي دپاره وجه داده که چيرې علامت دتانيث اوعلامت دجمعې په دي قسم داخل شي نودوه صورتونه دي يابه قبل ازمن وي يابه بعدازمن وي پس قبل ازمن ادخال غيرجائزدي خکه چې من دشدت الاتصال دوجې نه په مثل دجزء دکلمې دي نوعلامت دتانيث اوجمعې انفصال راولي اودامحال دي کچري بعدازمن واقع شي نوداهم غيرجائزدي خکه چې من په حقيقت کې دوېمه کلمه ده بس کچري علامت دتانيث اوجمعې بعدازمن واقع شي نوادخال به ديوې کلمې په بلې کلمې باندې لازم شي اوداقباحت اظهرمن الشمس ده.

وَعَلٰى الْاَوْجُهِ الثَّلٰثَةِ يُضْمَرُ فِيْهِ الْفَاعِلُ وَهُوَيَعْمَلُ فِيْ ذٰلِكَ الْمُضْمَرِ وَلَايَعْمَلُ فِي الْمُظْهَرِ اَصْلًا اِلَّافِيْ مِثْلِ قَوْلِهِمْ مَارَاَيْتُ رَجُلًا اَحْسَنَ فِيْ عَيْنِهِ الْكُحْلُ مِنْهُ فِيْ عَيْنِ زَيْدٍ فَاِنَّ الْكُحْلَ فَاعِلٌ لِاَحْسَنَ وَهٰهُنَا بَحْثٌ:

**توجمه**: په د دي واړه صورتونو کښې ضمير مستتر وی او پدې ضمير کښې عمل کوی او مظهر کښې بالکل عمل نه کوی مګر په داسې قول کښې رأيت رجلا احسن فی عينه الکحل منه فی عين زيد . پس الکحل د احسن فاعل دي او دلته کښې يو بحث دی

**تشریح** داقاعده ده چې اسم تفضيل به عمل په ضمير مستتر کې کوي ابدااوداغه ضميربه فاعل وي دپاره داسم تفضيل اوبه اسم ظ هرکې به عمل نه کوي مګربه وجوددشروطوسره اومفعول داسم تفضيل دپاره معمول بالکل نه شي جوړيدې خواه که مضمروي اوکه مظهروي داخکه چې داسم تفضيل مفعول دمفضول عليه نه سواهيڅ نه شي کيدې اوکه مفضول عليه

مذکوروي نو دا به مجروروي په واسطې د حرف جر سره او کجري حال یا تمیز یا ظرف وي نو بیا به بغیر د شرط نه عمل کولی شي لکه زید احسن منك الیوم راکبا الیوم ظرف ده او راکبا حال ده پس خلاصه دا شوه چې اسم تفضیل به عمل کوي په ضمیر مستتر کې غیر مشروط به وي دا عمل او په اسم ظاهر کې به عمل کوي مګر په څو شروطو سره او شروط دا دي چې معلوم شوي دي د مصنف د قول نه چې الآ فی مثل قولهم مارایت رجلاً احسن فی عینه الکحل منه فی عین زید. یو شرط دا دي چې اسم تفضیل په اعتبار د لفظ سره صفت دیو شي وي او په اعتبار د معنی به صفت د هغه شي د متعلق د پاره وي دویم شرط دا دي چې د دغه متعلق شي دا سې وي چې هغه د هغه شي د اعتبار نه مفضل وي او د دویم شي د اعتبار نه مفضل علیه وي پس د دوه حیثیتونه شو یو په اعتبار د مفضل او بل په اعتبار د مفضل علیه دي دریم شرط دا دي چې اسم تفضیل منفي وي پس دا خبره زده کړه چې متعلق دي د دغه شي د اعتبار نه مفضل کیدل او د بل شي د اعتبار نه مفضل علیه کیدل د نفي نه مخکې دي پس د نفي دا دخال نه بعد به معنی برعکس وي په مثال مذکور کې اول معنی د اثبات را واخله چې معنی د کلام ظاهره شي او بعد به معنی سره د نفي را واخلې چې تفصیلاً معنی معلومه شي پس احسن اسم تفضیل دي او دا په اعتبار د لفظ دیو شي د پاره صفت دي چې هغه شي رجل دي او دغه شي (ای رجل) په اعتبار د معنی د متعلق د پاره صفت دي چې کحل دي او کحل مشترك دي په سترګو د زید او رجل کې او دا کحل په اعتبار د عین د رجل مفضل دي او په اعتبار د عین د زید مفضل علیه دي پس معنی به داسې شي چې ما اولیدیو سړی چې په سترګو د هغه کې رانجه د سترګو د زید د رنجو نه زیات خوند کوي. په دې کې د نفي نه سوا تول شروط ظاهر شو ـ پس چې هر کله پرې نفي داخله شي نو اسم تفضیل په معنی د ضعیف سره شي او شروط به ظاهر شي پس په دې صورت کې به کحل په اعتبار د عین د رجل مفضل علیه وي او په اعتبار د عین د زید به مفضل وي ـ پس په صورت د منفیت کې به معنی د فضیلت عین د زید له ثابتیږي او ما نافیه ده او رجلاً مفعول به د رایت د پاره دي او احسن اسم تفضیل به عمل په الکحل کې کوي او الکحل اسم ظاهر دي او فاعل دا حسن د پاره دي او عمل په دې صورت کې متعین شو چې صفت د تفضیل نفي اصل فعل ته معنی ګرزي ځکه چې تفضیل په معنی د زیادت بمنزله قید دي او نفي چې کله به مقید باندي داخله شي نو د قید طرف رجوع کوي په معنی کې بس دا منفي په صورت د عمل دا سم تفضیل وجه ذکر شوه.

**وههنا بحث:** یعني په مسئله مذکوره کې بحث دي او هغه بحث دا دي چې په عبارت کې

د پاره د اختصار احسن فی عینه الکحل من عین زید هم جائز دي يعني من عين زيد قائم مقام د منه فی عين زيد د پاره جائز دي او لفظ د عين د اختصار د پاره مقدم هم جائز دي لکه داسې اُویلي شي چې ما رایت کعین زید احسن فی الکحل يعني پدې وخت کې به معنی کې هیڅ قسم خلل او نقصان نه واقع کېږي . بلکه مقصد د معنی هم هغه بیانیږي چې ما او نه ندي توري ليمی پښتن دليمود

# القسم الثانی فی الفعل

وَقَدْ سَبَقَ تَعْرِيفُهُ وَاَقْسَامُهُ ثَلٰثَةٌ مَاضٍ وَمُضَارِعٌ وَاَمْرٌ

**ترجمه** قسم ثاني په بيان د فعل کښې ده او د دې تعریف مخکښې تیر شوی دي . او د فعل درې اقسام دري دي ماضي . مضارع . امر

**تشریح** هر کله چې مصنفؒ فارغ شو د قسم اول نه پس شروع یې او کړه په قسم ثاني کې چې مشتمل دي په ابحاثو د فعل باندې پس مصنفؒ علیه الرحمت د اول کړی ده چې وقد سبق تعریفه پدې سره د دفعه د اعتراض پوره نه شوی ده معنی خوار سائل نه ده نو هم او شک شبه راتله چې تقسیم د شي فرع د تعریف د شي ده نو بوهه شي چې تعریف د فعل به صفحه ۲۲ ، ذکر شوي دي تفصيلاً . پس زده کړه د اخبره چې فعل منقسم دي اقسامو ثلاثو ته او وجه د حصر بې داده چې د افعل به خالي نه وي یابه انشايي وي یابه اخباروي که انشايي وي دیته امر وايي که اخباروي د به بياخالي نه وي یا مشتمل بأحد حرفي ثين حروف اتين في الاول وي یابه نه وي اول نه مضارع وايي او ثاني ته ماضي وايي . پس داجمال نه تفصيل د هر واحد دادي .

اَلْاَوَّلُ اَلْمَاضِیْ وَهُوَ فِعْلٌ دَلَّ عَلٰی زَمَانٍ قَبْلَ زَمَانِكَ وَهُوَ مَبْنِیٌّ عَلَی الْفَتْحِ اِنْ لَّمْ يَكُنْ مَعَهُ ضَمِيْرٌ مَرْفُوْعٌ مُتَحَرِّكٌ وَلَا وَاوٌ كَضَرَبَ وَمَعَ الضَّمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ الْمُتَحَرِّكِ عَلَی السُّكُوْنِ كَضَرَبْتَ وَعَلَی الضَّمِّ مَعَ الْوَاوِ كَضَرَبُوْا

**ترجمه** اول ماضي ده ، دا هغه فعل ده چه په داسې زماني باندې دلالت کوي چه کومه تا نه مخکښې تیره شوې وي او هغه مبني بر فتحه وي کچرته د سره ضمير مرفوع متحرك نه وي او نه واو ورسره وي لکه ضَرَبَ او ضمير مرفوع متحرك سره به مبني بر سکون وي لکه ضَرَبْتَ او واو سره مبني برضمه وي لکه ضَرَبُوْا

**تشریح** وجه د تقديم الماضی به اقسام دیگر باندې د ده چې ماضي اصل ده په نسبت سره مضارع او امر ته پدې شان سره چې ماضي مخکې مشتق کېږي د مصدر نه او مضارع سادصيغو د فعل

ماضی نه جوړیږي او امر د صیغو د مضارع نه جوړیږي نو ګو یا ماضی اصل ده او بیا مضارع اصل او ګرزیده په نسبت سره امر ته. بله وجه داده چې ماضي وضع شوي ده د پاره د زماني تیري شوي او زمانه تیره شوي مقدمه ده په زمانه راتلونکي باندي. ځکه مقدمه ده.

## حکم او قاعده دفعل ماضی

**حکم او قاعده دفعل ماضی داده** فعل ماضی اصل ده یعني مبني الاصل ده په یو څو حرکاتو سره کله کله مبني په فتحی سره وي په دي شرط چې خالي وي د ضمیر مرفوع متحرك نه او د واو نه او کله کله مبني بر سکون وي وجه دینه. د فعل ماضي داده چې په دي کي معاني مقتضیه بالاعراب پشان دفاعلیت مفعولیت او داضافت نشته لکه مثلاً فاعلیت چې کله موجود شي نو مقتضی دنصب وي او که مفعولیت موجود شي نو داتقاضا د رفعي کوي پس دا قسمه اقتضائیت په فعل ماضي کي نشته نو ځکه مبنی الاصل او ګرزیده او بیا مبني په فتحی سره ځکه ده چې فتحه اخف الحرکات ده او چې کله مبني په سکون سره وي ځکه چې ضمیر د فاعل بمنزله جز. د فعل ده پس که چیری دغه ضمیر متحرك کړی شي نو لازم به شي توالی اربع حرکات او دا ناجائزده. که چیری د فعل ماضی سره واو ملحق شي نو د مناسبت د واو د وجی نه به مبني علی الضمه وي لکه نَصَرُو وغیره

## د مضارع تعریف

وَالثَّانِیْ اَلْمُضَارِعُ وَهُوَ فِعْلٌ یُشْبِهُ الْاِسْمَ بِاِحْدٰی حُرُوْفِ اَتَیْنَ فِیْ اَوَّلِهٖ لَفْظًا فِیْ اِتِّفَاقِ الْحَرَکَاتِ وَالسَّکَنَاتِ نَحْوُ یَضْرِبُ وَیَسْتَخْرِجُ کَضَارِبٍ وَمُسْتَخْرِجٍ وَفِیْ دُخُوْلِ لَامِ التَّاکِیْدِ فِیْ اَوَّلِهِمَا تَقُوْلُ اِنَّ زَیْدًا لَیَقُوْمُ کَمَا تَقُوْلُ اِنَّ زَیْدًا لَقَائِمٌ وَفِیْ تَسَاوِیْهِمَا فِیْ عَدَدِ الْحُرُوْفِ وَمَعْنًی فِیْ اَنَّهٗ مُشْتَرَكٌ بَیْنَ الْحَالِ وَالْاِسْتِقْبَالِ کَاسْمِ الْفَاعِلِ وَلِذٰلِكَ سَمَّوْهُ مُضَارِعًا وَالسِّیْنُ وَسَوْفَ تُخَصِّصُهٗ بِالْاِسْتِقْبَالِ نَحْوُ سَیَضْرِبُ وَسَوْفَ یَضْرِبُ وَاللَّامُ الْمَفْتُوْحَةُ بِالْحَالِ نَحْوُ لَیَضْرِبُ وَحُرُوْفُ الْمُضَارِعَةِ مَضْمُوْمَةٌ فِی الرُّبَاعِیْ نَحْوُ یُدَحْرِجُ وَیُخْرِجُ لِاَنَّ اَصْلَهٗ یُاَخْرِجُ وَمَفْتُوْحَةٌ فِیْ مَا عَدَاهُ کَیَضْرِبُ وَیَسْتَخْرِجُ وَاِنَّمَا اَعْرَبُوْهُ مَعَ اَنَّ اَصْلَ الْفِعْلِ الْبِنَاءُ لِمُضَارِعَتِهٖ اَیْ لِمُشَابَهَتِهِ الْاِسْمَ فِیْ مَا عَرَفْتَ وَاَصْلُ الْاِسْمِ الْاِعْرَابُ وَذٰلِكَ اِذَا لَمْ یَتَّصِلْ بِهٖ نُوْنُ التَّاکِیْدِ وَلَا نُوْنُ جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ وَاِعْرَابُهٗ ثَلٰثَةُ اَنْوَاعٍ رَفْعٌ وَنَصْبٌ وَجَزْمٌ نَحْوُ هُوَ یَضْرِبُ وَلَنْ یَضْرِبَ وَلَمْ یَضْرِبْ:

**ترجمه**: او دویم قسم فعل مضارع ده. تعریف د مضارع دا هغه فعل ده چه د حروف اتین نه یو حرف ورسره په شروع کښې پیوست وی. اسم سره به مشابه وی. حرکات او سکنات کښې به متفق وی لکه یضربُ او یستخرج او لکه ضاربٌ او مُستخرجٌ. اسم سره به مشابه وی او د داوړو په شروع کښې به لام تاکید داخل وی لکه اِنَّ زَیْدًا لَیَقُوْمُ لکه څرنګه چه ته ان زیدًا لقائم وائی او دا دواړه به د حروفو په تعداد کښې به برابر وی او معنی په حال او استقبال کښې به هم مشترک وی لکه اسم فاعل د وجه نه دېته نې نوم مضارع کېخودلو. او حرف د سین او سوف مضارع لره استقبال سره خاص کوی لکه سیضرب او سوف یضرب او لام مفتوحه ئې حال سره خاص کوی لکه لیضرب. او حروف مضارع به رباعی کښې مضموم وی لکه نه خرّجَ او یخرج څکه چه دا په اصل کښې یُأخرجُ وو. او د نه علاوه به نورو کښې علامت د مضارع به مفتوح وی لکه یضرب او یستخرج او بې شکه علماء نحو مضارع لره معرب جوړ کړی. او اصل په افعالو کښې بناء ده لوجه د مشابهت د اسم فاعل سره په هغه وجوه کښې چه کوم تاپېزندلی دی. او اصل د اسم هغه معرب والی دی او دا په هغه وخت کښې چکله نون تاکید او نون د جمع مؤنث ورسره متصل نه وی او اعراب د فعل مضارع په دری قسمه ده. رفع، نصب، جزم لکه هُوَیَضْرِبُ‌وَلَنْ یَضْرِبَ‌وَلَمْ یَضْرِبْ

**تشریح**: دویم قسم دفعل داقسامونه فعل مضارع ده چونکه فعل مضارع دامرماخذده ددې وجې نه مقدمه ده په امرباندې. مضارع (دویم قول دادی چې مضارع دفرع نه ماخوذده اوفرعه دځاروی تب‌نوته وایی ګویااستقبال اوحال دواړودیوې غولانزی نه پې څکې چې مضارع ده ۱۲) دمضارعت نه ماخوذده به معنی مشابهت سره پس مصنفؒ تعریف دفعل مضارع پدې شان سره کړیدې چې مضارع عبارت ده ددې نه چې مشابه وي داسم فاعل سره په یوحروفواتینوسره اومشابهت دفعل مضارع داسم فاعل سره لفظي هم دي اومعنوي هم دي پس **لفظي مشابهت** په دري خبروکې دی

(۱) اول مشابهت په حرکاتوسکناتوکې دي لکه یَضْرِبُ‌وضَارِبٌ.

(۲) دویم مشابهت یې داسم فاعل سره په دخول دلام تاکیدکې دي یعني څنګه چې په فاعل باندي لام داخلیږي دغه شان په مضارع باندې هم داخلیږي

(۳) دریم اخلورم مشابهت یې دادی چې صفت دنکرې دپاره واقع شي لکه مررت برجلٍ ضاربٍ مررت برجلٍ یضربُ مشابهت په اعدادوحروفوکې دي یعني څومره تعداد دحروفو دفاعل وي هغه شان ای کذالک فعل مضارع لکه یستخرج مستخرج (الزوج‌الزوج)

**مشابهت معنوي** دادي چي فعل مضارع مشترک دی په حال او استقبال کي لکه اسم فاعل نو له همدې وجي ورته دمضارع نوم ورکړل شوی دی . خو سین او سوف مضارع له استقبال سره خاص کوي لکه سیضرب . سوف یضرب. او لام تاکید بیا مضارع له حال سره خاص کوي په مضارع مجهول کي خو حرف مضارعت مضموم وي لکه یُضرب وغیره خو دمضارع معلوم ترتیب بیا داسي دی چي حروف مضارع مضموم وي په رباعي کي لکه یُدحرج یُخرج چي په اصل کي یُاخرج وو

او له رباعي پرته ده یعني دجاچي حرفونه دري وی او یا تر څلورو زیات وي نو بیا علامت مضارع مفتوح وي لکه یضرب . یستخرج یعني حیره ده چي فعل مضارع معرب ده سره له دې چي اصل په فعل کي بناء ده . ځکه چي مضارع له اسم فاعل سره مشابهت لري

**سوال** فعل مضارع څه وخت معرب وي ؟

**جواب** فعل مضارع هغه وخت معرب وي چي کله له هغې سره نون تاکید متصل شوی نه وي او نه هم نون جمع مؤنث ورسره متصل وي . او که ورسره وي نو بیا مبني وي . دمضارع اعراب دري قسمونه لري رفع . نصب . جزم لکه یضربُ. لن یضربَ . لم یضربْ

**فَصْلٌ**: فِيْ أَصْنَافِ إِعْرَابِ الْفِعْلِ وَهِيَ أَرْبَعَةٌ اَلْأَوَّلُ أَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِالضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِالْفَتْحَةِ وَالْجَزْمُ بِالسُّكُوْنِ وَيُخْتَصُّ بِالْمُفْرَدِ الصَّحِيْحِ غَيْرِ الْمُخَاطَبَةِ تَقُوْلُ هُوَيَضْرِبُ وَلَنْ يَضْرِبَ وَلَمْ يَضْرِبْ

**ترجمه** فصل ده په بیان د فعل اعراب په اقسامو کښي ده , او دا په څلور قسمه ده , اول قسم داده چه رفع به ئي په ضمه سره وي او نصب به فتحه سره او جزم په سکون سره أو دا قسم اعراب مفرد صحیح غیره مخاطبه سره خاص ده لکه هُوَيَضْرِبُ وَلَنْ يَضْرِبَ وَلَمْ يَضْرِبْ

**تشریح**: پدي فصل کښي مصنف رحمه الله د فعل مضارع اعراب اقسام بیانوي او دا په څلور قسمه دی اول قسم رفع بالضمه او نصب بالفتحه او جزم بالسکون او دا قسم اعراب مفرد صحیح غیر مخاطبه سره خاص دي، مفرد سره تثنیه او جمع خارج شول، ددي اعراب به مخکښ راځي، صحیح د نحویانو په نزد هغه دي چه دلام کلمي په مقابله کښي حرف علت نه وي، صحیح ونیلو سره ناقص ولو یائي و الفي بعنوان دیگر معتل اللام واوي، یائي، الفي، خارج شول د دي اعراب به هم مخکښ راځي، غیر المخاطبه سره صیغه د واحد مؤنث مخاطبه خارج شوه ددي اعراب به هم مخکښ راځي، د مفرد صحیح غیر مخاطبه صیغي تولي پنځه دي اعراب به ئي دغه رنګي وی، واحد مزکر غائب واحده مؤنثه غائبه، واحد مزکر مخاطب، واحد متکلم، و جمع متکلم لکه هُوَيَضْرِبُ وَلَنْ يَضْرِبَ وَلَمْ يَضْرِبْ

وَالثَّانِيْ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِثُبُوْتِ النُّوْنِ وَالنَّصْبُ وَالْجَزْمُ بِحَذْفِهَا وَيَخْتَصُّ بِالتَّثْنِيَةِ وَجَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَالْمُفْرَدَةِ الْمُخَاطَبَةِ صَحِيْحًا كَانَ اَوْ غَيْرَهُ تَقُوْلُ هُمَا يَفْعَلَانِ وَهُمْ يَفْعَلُوْنَ وَاَنْتِ تَفْعَلِيْنَ وَلَنْ يَّفْعَلَا وَلَنْ يَّفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلِيْ وَلَمْ تَفْعَلَا وَلَمْ تَفْعَلُوْا وَلَمْ تَفْعَلِيْ.

**ترجمه** دویم قسم اعراب دادي چه رفع بشبوت نون سرد. او نصب او جزم سون محذوفه سره به وی. او دا قسم اعراب خاص ده تثنیه او جمع مذکر سره او مفرد مؤنث مخاطب سره که هغه صحیح وی او که غیر صحیح وی لکه هُمَا يَفْعَلَانِ وَهُمْ يَفْعَلُوْنَ وَاَنْتِ تَفْعَلِيْنَ وَلَنْ يَّفْعَلَا وَلَنْ يَّفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلِيْ وَلَمْ تَفْعَلَا وَلَمْ تَفْعَلُوْا وَلَمْ تَفْعَلِيْ

**تشريح** او دویم قسم اعراب خص ده تثنیه سره. که هغه تثنیه مذکر وی یا مؤنث غائب یا حاضر وی او دا قسم اعراب خص ده جمع مذکر سره که هغه مذکر غائب وی یا حاضر یا واحد مؤنث مخاطب وی بې دا تول صحیح وی او که ناقص واوی. یائی. الفي وی او دا تولی اووه صیغی دی. خلور تثنیه . دوه جمع مذکر غائب او حاضر او یو واحد مؤنث مخاطبه او مثالونه ئی واضح دی

وَالثَّالِثُ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِتَقْدِيْرِ الضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِالْفَتْحَةِ لَفْظًا وَالْجَزْمُ بِحَذْفِ اللَّامِ وَيَخْتَصُّ بِالنَّاقِصِ الْيَائِيِّ وَالْوَاوِيِّ غَيْرَ تَثْنِيَةٍ وَجَمْعٍ وَمُخَاطَبَةٍ تَقُوْلُ هُوَ يَرْمِيْ وَيَغْزُوْ وَلَنْ يَّرْمِيَ وَلَمْ يَرْمِ وَلَمْ يَغْزُ.

**ترجمه** او دریم قسم اعراب داده چه رفع به تقدیر د ضمی سره او نصب به فتحه لفظی سره او جزم لام کلمی په حذف سره او دا خاص ده ناقص یائی. واوی سره ندمی حال کښی چه هغه تثنیه او جمع او واحده مؤنثه مخاطبه نه وی لکه هُوَ يَرْمِيْ وَيَغْزُوْ وَلَنْ يَّرْمِيَ وَلَمْ يَرْمِ وَلَمْ يَغْزُ

**تشريح** او دریم قسم اعراب خاص ده ناقص یائی. واوی سره او دا تولی پنځه صیغی دی واحد مذکر غائب واحده مؤنثه غائبه واحد مذکر حاضر واحد متکلم جمع متکلم او مثالونه ئی تیر شوی دی

وَالرَّابِعُ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِتَقْدِيْرِ الضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِتَقْدِيْرِ الْفَتْحَةِ وَالْجَزْمُ بِحَذْفِ اللَّامِ وَيَخْتَصُّ بِالنَّاقِصِ الْاَلِفِيِّ غَيْرَ تَثْنِيَةٍ وَجَمْعٍ وَمُخَاطَبَةٍ نَحْوُ هُوَ يَسْعٰى وَلَنْ يَّسْعٰى وَلَمْ يَسْعَ.

**ترجمه**. او خلورم قسم اعراب داده چه رفع به تقدیر د ضمی سره او نصب به تقدیر د فتحی سره او جزم لام کلمی حذف سره او دا قسم اعراب خاص ده ناقص الفی سره چه هغه ناقص الفی به تثنیه او جمع او واحده مؤنثه مخاطبه به نه وی لکه هُوَ يَسْعٰى وَلَنْ يَّسْعٰى وَلَمْ يَسْعَ

**تشريح**. او خلورم قسم اعراب داده چه رفع به نی به تقدیر د ضمی سره وی او نصب به تقدیر د فتحی سره وی او حالت جزم به نی به حذف د لام سره وی او دا تولې پنځه صیغی دی هُوَ يَسْعٰى وَلَنْ يَّسْعٰى وَلَمْ يَسْعَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## حل السوالات

(۱) **سوال** د نحوي لغوي او اصطلاحي تعريف، مقصد او په اسلامي علومو کښې ددې مقام او دې نه پس د مصنف تعارف اوليکې؟

**جواب د نحوي لغوي معنى** قصد کول

**اصطلاحي معنى** اَلنَّحْوُ عِلْمٌ بِاُصُوْلٍ يُعْرَفُ بِهَا اَحْوَالُ اَوَاخِرِ الْكَلِمِ الثَّلٰثِ مِنْ حَيْثُ الْإِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ وَكَيْفِيَّةُ تَرْكِيْبِ بَعْضِهَا مَعَ بَعْضٍ

**غرض غايت مقصد** صِيَانَةُ الذِّهْنِ عَنِ الْخَطَاءِ اللَّفْظِيِّ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ.

**(مقام و مرتبه د علم نحو)**

علوم په دوه قسم دی (۱) مقصود عاليه (۲) مقصود غير عاليه

علم نحو د غير مقصود: نه ده څکه چه دا د علوم عاليه چه تفسير او حديث ده. د لپاره آله ده په خپله مقصود نه ده. ليکن مقصود لپاره موقوف عليه ده. د وجه نه صاحب مفتاح رحمه الله فرمائي چه: علم نحو حاصلول فرض کفايه ده

**(د حضرت عمررضي الله عنه قول)** تَعَلَّمُوا النَّحْوَ كَمَا تَعَلَّمُوْنَ السُّنَنَ وَالْفَرَائِضَ.

**ترجمه** تاسو علم نحو زده کړئ څرنګه چه سنن او فرائض زده کوئ

**(د ايوب سجستاني رحمه الله قول)** تَعَلَّمُوا النَّحْوَ فَاِنَّهُ جَمَالٌ لِلْوَضِيْعِ وَتَرْكُهُ هُجْنَةٌ لِلشَّرِيْفِ.

**ترجمه** تاسو علم نحو زده کړئ څکه چه دا د ادني سړي لپاره باعث جمال ده

**(د امام کسائي رحمه الله قول)** اَلنَّحْوُ قِيَاسٌ يُتَّبَعُ وَبِهٖ كُلُّ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ.

**ترجمه** علم نحو قسل اتباع قياس ده او په هر علم کښې د دريعې سر فائده احسلي کيږي

د دې عظمت او ضرورت ظاهرولو لپاره د علماء کرامو عجيب او غريب فرمودات دی مثلاً (۱) اَلنَّحْوُ فِي الْكَلَامِ كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ (۲) اَلنَّحْوُ لِلْعُلُوْمِ كَالضَّوْءِ لِلنُّجُوْمِ (۳) اَلنَّحْوُ فِي الْكَلَامِ كَالضَّوْءِ فِي الظَّلَامِ

## (د مصنف تعارف)

د مصنف نوم ،محمداو کنیت ئي ابوحیان،د پلار نوم یوسف

## سلسله نسب

ابوحیان محمد بن یوسف بن علی بن حیان الاندلسی

**ولادت** د اندلس په ښار غرناطه کښې شوال ۶۵۴ هـ کښې پیدا شوی،په ابتدائی عمر کښې حفظ مکمل کړو په علم تجوید و قرات وحدیث کښې مهارت کامله حاصل کړی وو ،علامه سیوطی رحمة الله علیه په علم نحو کښې تصنیف کړي چه د هغې نوم جمع الجوامع دی فرمائی چه پدې کتاب کښې ما څه شی لیکلی هغه مې د ابوحیان د تصانیفونه مې لیکلی،د ابوحیان هم عصر صلاح الدین صفوی رحمه الله فرمائی كَانَ أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي النَّحْوِ.

## اساتذه کرام

ابومحمد عبدالحق رحمة الله علیه نه فن تجوید زده کړی وو

ابوجعفرغرناطی رحمة الله علیه او حافظ ابوعلی حسین بن عبدالعزیز رحمة الله علیه نه د قرات مشق کړي وو

عبدالحلیم رحمة الله علیه فرمائی چه د ابوحیان ۱۴۵۰ استاذان وو

علم الفقه علم الدین عراقی رحمة الله علیه نه حاصل کړي وو

علم منطق او علم کلام د ابوجعفر بن زبیر رحمة الله علیه نه حاصل کړي وو

علم نحو ئې ابوالحسن ابوجعفر بن زبیر ابوجعفر لیلی او ابن صائغ رحمة الله علیه نه حاصل کړو

## شاګردان

ابن عقیل او ابن هشام دا مشهور شاګردان دی

## تصانیف

تقریباً ۶۵ کتابونه په عربی او فارسی کښې لیکلی دی مشهور دادی. تفسیر بحر المحیط،(۲) شرح التسهیل (۳) منهج السالك شرح الفیه ابن مالك (۴) هدایة النحو

- **وفات** تاریخ وفات کښې اختلاف دے یو قول مطابق په ۷۲۳ هـ کښې وفات شوی او دویم قول مطابق په ۷۴۵ هـ کښې وفات شوی

## (۲ سوال)

الکلمة لفظ وضع لمعنی مفرد د کلمه تعریف او لفظ وضع لمعنی او مفرد معنی او ددې جملي ترکیب، فوائد او قیودات اولیکی

## (جواب)

(۱) **د کلمه تعریف** کلمه هر هغه لفظ ده چه وضع کړې شوی وی معنی مفرد لپاره

(۲) **د لفظ لغوی معنی** د لفظ لغوی معنی انداحس لکه محاوره کښې راځی اکلت التمرة ولفظت النواة کهجوره مې وخوړه او هدوکی مې اوغورځولو

**اصطلاحی معنی** ما یتلفظ به الانسان من حرف فصاعد لفظ هغه ده چه انسان په هغې باندې تلفظ وکړی که هغه یو وی او که ډیر وی

(۳) **وضع** داد وضع نه مشتق ده په معنی د نهادن سره راځی

**اصطلاحی معنی** یو شی بل شی سره پداسې طریقې سره خاص کول چه اول شی او ونیلی شی یا ذکر کړې شی نو دویم شی په خپله ذهن کښې راشی لکه لفظ چاقو دسته او میوی لپاره خاص کړې شوی چه کله لفظ چاقو او ونیلی شی نو په خپله دسته او میوه په ذهن کښې راشی

(۴) **معنی** معنی په وزن د فعل سره راځی، پدې کښې درې احتمالات دی

(۱) اسم مکان ده یعنی د قصد کولو ځائې (۲) مصدر میمی ده مګر دلته کښې اسم مفعول (مقصود) په معنی ده (۳) دا صیغه د اسم مفعول ده په اصل کښې معنوی وو په قانون د سید سره معنی جوړ شو

**مفرد** مفرد دا د اسم مفعول صیغه ده د باب افعال نه

**لغوی معنی** جدا کړې شوی

**اصطلاحی معنی** لفظ مفرد هغه لفظ ده چه جز د لفظ په جز د معنی باندې دلالت نه کوی

## د جملې ترکیب

په دې جمله کښې د څلورو ترکیبو احتمالات دی

**اول احتمال الکلمة** مرفوع **لفظاً** مبتدا **لفظ** موصوف **وضع** فعل ماضی مجهول **هو** ضمیر پدې کښې مستتر ده راجع بسوئې لفظ مرفوع محلاً نائب فاعل **لام** حرف جر **معنی** مجرور تقدیراً جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوی متعلق وضع فعل پورې، فعل سره د نائب فاعل او سره د متعلق نه دا

جمله فعلیه خبر ده مبتدا ده شو. مفرد مرفوع لفظاً صفت تابع شو. موصوف سره د دواړو صفتونو نه خبر شولیاره د مبتدا مبتدا سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبریه شوه

**دویم احتمال مفرد** مجرور **لفظاً** معنی لپاره صفت شو موصوف سره د صفت نه دا مجرور شو لپاره د جار، جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوی متعلق وضع پورې، نور مخکښې ترکیب پشان دی.

**دریم احتمال مفردا** منصوب لفظاً حال ده د وضع کښې هُوَ ضمیر مستتر نه. ذوالحال سره د خپل حال نه د نائب فاعل شو وضع لپاره سبقاً ترکیب غوندي ده

**څلورم احتمال معنی** مجرور تقدیرا ذوالحال مفردا منصوب لفظا حال. ذوالحال سره د خپل حال نه دا مجرور شو لپاره د لام جر جار سره د مجرور نه دا ظرف لغوی متعلق وضع فعل پورې سابق ترکیب غوندي ده:

## فوائد قیودات

د کلمه په تعریف کښې لفظ ذکر دی دا په درجه د جنس کښې ده معرف ته هم شامل ده او غیر ته هم شامل ده لکه موضوع، مهمل، مفرد، مرکب ټولو ته شامل ده

او **وُضع** دا لفظ فصل اول او قید اول ده دي نه مهملات لکه جسق وغیره خارج شول او سه پورې الفاظ مفرده او مرکبه او کلام تام او کلام ناقص ټول پکښې داخل دی

**لمعنی** دا دویم فصل ده دي فصل او قید سره حروف هجا خارج شول ځکه چه ددي وضع غرض ترکیب لپاره ده یعنی کلمات پرځاني کولو لپاره دی لکه ض، ر، ب نه ضرب جوړیږی ددي هیڅ معنی نشته

**مفرد** دا دریم فصل ده. د فصل او قید سره مرکب تام او مرکب ناقص خارج شول ځکه چه مرکب ناقص مثلاً غلامُ زیدٍ ددي معنی ده د زید غلام. د یو جز نه ذات د زید او بل جز نه غلام اخلی. همدغه رنګی مرکب تام مثلا زیدٌ قائمٌ کښې لفظ د زید په ذات د زید باندي دلالت کوی او قائمٌ د هغه په ولاړ والی باندي دلالت کوی لهذا دا مفرد نده مرکب ده دي نه به کلام ویلی شی، کلمه نه. او خارج ده اوس د کلمه تعریف جامع مانع شو

## (۳) سوال

د کلمه اقسام، تعریف، وجه تسمیه او علامات سره د مثالونو ذکر کړي

**جواب** کلمه په دري قسم ده: ۱،اسم ۲،فعل ۳،حرف

لکه څرنګه چه وهي منقسمه به مصنف صاحب حصر دعوی کړی ده لولانها الخ نه د دلیل حصر بیان کړی ده

## اسم ، فعل، حرف تعریف

**اسم** اسم هغه کلمه ده چه بذات خود دلالت کوي په خپله معنی باندي یعني بلی کلمی یو خاني کولو ته ضرورت نه وی او ددي معنی یو د دریو زمانو سره پیوست نه وی لکه رَجُلٌ او علم

**فعل** هغه کلمه ده چه په خپله معنی باندي بذات خود دلالت کوی. بو د دریو زمانو نه یوي زمانی پوري پیوست وی لکه ضَرَبَ. یَضرِبُ. اِضرِبْ

**حرف** هغه کلمه ده چه په خپله معنی باندي بذات خود دلالت نه کوی ترسو چه بلي کلمی سره پیوست شوی نه وی لکه مِن او الی

## د هر یو قسم وجه تسمیه

**داسم وجه تسمیه** اسم په اصل کښی سموو و بکسر السین و سکون میم. د سمو معنی اوچت والي. او اسم هم په خپلو دوو اقسامو چه فعل او حرف ده په هغې اوچت دی. د وجه نه اسم نه اسم ونیلی شی

**دفعل وجه تسمیه** فعل په اصل کښی د مصدر نوم وو. چه نحو یانو په نزد دا د فعل اصل ده نو اصل والانو فرع ته ورکري شو

**د حرف وجه تسمیه** د حرف لغوی معنی طرف ده او د طرف معنی د کنار د لکه جلست حرف لوادی ای طرف الوادی. او حرف به نحو کښی هم یو طرف ته واقع کیږی خکه چه دا مقصود نه وی خکه چه مقصود په کلام کښی مسند او مسندالیه وی. او حرف نه مسند وی او نه مسند الیه

## اسم ، فعل، حرف علامات سره د مثالونو

د اسم ۲۸ علامات دی (التحفة العلمیه) مگر صحب کتاب لس علامات ذکر کړی دی

(۱) د خبار عنه صحیح کیدل یعنی مخبر عنه او محکوم علیه جوړیدل صحیح وی لکه زَیدٌ قائمٌ

(۲) مضاف کیدل لکه غُلامُ زَید (۳) لام تعریف داخلیدل لکه اَلرَّجُلُ

(۴) مجرور کیدل یا حرف جر داخلیدل لکه بزید (۵) تنوین داخلیدل برید

(۶) تثنیه کیدل لکه رَجُلانِ (۷) جمع کیدل لکه مسلمون (۸) صفت کیدل لکه رَجُلٌ عَالِمٌ

(۹) مصغر کیدل لکه قریشی (۱۰) منادی کیدل لکه یا عبدالله

## د فعل علامات ۱۱ دی

(۱) اخبر به کیدل یعنی مخبر به او محکوم به جوړیدل صحیح وی لکه ضَرَبَ زَیدٌ

(۲) په شروع کښې حرف قَدْ داخلیدل لکه قَدْ اَفْلَحَ
(۳) په شروع کښې سین داخلیدل لکه سیضرب
(۴) په شروع کښې سَوْفَ داخلیدل لکه سَوْفَ تَعلَمُوْنَ
(۵) مجزوم کیدل یعنې په آخر کښې جزم راوستل لکه لَم یَضرِب
(۶) ماضي او مضارع طرف ته اړول یعنې کلمه ماضي او مضارع طرف ته اړول لکه ضَرَبَ الخ یضرب الخ
(۷) امر کیدل لکه اضرب (۸) نهي کیدل لکه لاتضرب
(۹) ضمیر بارزه مرفوعه متصل کیدل لکه ضربت
(۱۰) تاء تانیث السـاکنه متصل کول لکه ضربت (۱۱) د نون تاکید ثقلیه و خفیفه داخلیدل لکه اضربن اضرب

## د حرف علامات

د حرف علامات دادي چه دا نه مخبر به او نه مخبر عنه کیدل صحیح وي او د اسم او فعل علاماتو نه یوه علامه پکښې نه وي لکه من او الی

## (۴ سوال)

اَلْكَلَامُ لَفْظٌ تَضَمَّنَ كَلِمَتَيْنِ بِالْإِسْنَادِ وَالْإِسْنَادُ نِسْبَةُ اِحْدَى الْكَلِمَتَيْنِ اِلَى الْاُخْرٰى بِحَيْثُ تُفِيْدُ الْمُخَاطَبَ فَائِدَةً تَامَّةً يَصِحُّ السُّكُوْتُ عَلَيْهَا نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ وَقَامَ زَيْدٌ

(۱) اعراب لګول (۲) ترجمه لیکل (۳) په کلام کښې څو مره احتمالات عقلي دي (۴) صحیح احتمالات کوم یو دي

## جواب

**ترجمه**: کلام هغه لفظ ده چه متضمن وي دوو کلمو لره اسناد سره. او دا اسناد به د یوې کلمې بلې کلمې لره په داسې طریقې سره وي چه فائده تامه ورکوي مخاطب لره یعنې د متکلم یا مخاطب په هغې باندې چپ کیدل صحیح وي لکه زَیْدٌ قَائِمٌ و قَامَ زَیْدٌ

## کلام کښې احتمالات عقلي

کلام چونکه د دوو کلمو نه مرکب وي او د کلمه دري اقسام دي اسم، فعل، حرف نو دریو لره په دوو کښې ضرب ورکړی نو شپږ احتمالات جوړیږي، لهذا کلام کښې شپږ احتمالات وي (۱) دوو اسمونو نه مرکب وي (۲) دوو فعلونو نه مرکب وي (۳) دوو حرفونو نه مرکب وي (۴) اسم او فعل نه مرکب وي (۵) اسم او حرف نه مرکب وي (۶) فعل او حرف نه مرکب وي

**صحیح احتمالات**

د کلام په تعریف کښې اسناد معتبر ده او اسناد بغیر د مسند او مسند الیه نه ممکن نه وی نو معلومه شوه چه کلام د دوو اسمونو نه جوړیږی پدې کښې یو مسند وی او بل مسند الیه لکه زَیْدٌ قَائِمٌ کښې زید مسند الیه ده او قائم مسند ده دیته جمله اسمیه ونیلی شی یا فعل او اسم نه جوړ وی فعل مسند او اسم مسند الیه وی لکه قَامَ زَیْدٌ کښې قام فعل او مسند ده او زَیْدٌ اسم او مسند الیه ده دیته جمله فعلیه ونیلی شی ځکه چه اول جزئی فعل ده

**(۵ سوال)**

د اسم معرب تعریف او مثالونه ذکر کړی.؟

**جواب**

**اسم معرب تعریف** هُوَكُلُّ اِسْمٍ رُكِّبَ مَعَ غَيْرِهٖ وَلَا يُشْبِهُ مَبْنِى الاصل كَقَامَ زَيْدٌ

**اسم معرب تعریف** اسم معرب هغه ده چه بل سره مرکب وی او مبنی الاصل سره مشابه نه وی لکه قام زید کښې زید اسم معرب ده ځکه چه غیر سره مرکب ده او مبنی الاصل سره مشابه نه ده

**(۶ سوال)**

د اسم مبنی تعریف، مثالونه، او مبنی الاصل څومره دی؟

**جواب**

د اسم مبنی تعریف، **وَهُوَكُلُّ اِسْمٍ وَقَعَ غَيْرَمُرَكَّبٍ مَعَ غَيْرِهٖ اَوْمُشَابِهٌ بِمَبْنِى الاصل**

**ترجمه.** اسم مبنی **هر** هغه اسم ده چه غیر سره نه وی مرکب او مشابه وی مبنی الاصل سره لکه زَیْدٌ چه کله دا بل چا سره نه وی مرکب نو دا به مبنی وی په سکون سره او هؤلآ، به قام هؤلاء کښې دا مبنی ده سره ددې نه چه دا مرکب ده د غیر سره لیکن مبنی الاصل سره مشابهت د وجه نه مبنی ده

**مبنی الاصل دري دی**

(۱) فعل ماضی (۲) امر حاضر (۳) او ټول حروف

**(۷ سوال)**

اعراب، محل اعراب، معرب، او د عامل تعریف د سره سره د هریو مثال واضح کړی؟

**جواب**

**داعراب تعریف الاعراب مـابه يختلف اخرالمعرب:**

**ترجمه** اعراب هغه حرکت او حرف ده چه د سبب سره آخر د معرب مختلف کیږی

**محل اعراب تعریف** د اسم معرب آخری حرف چه په کوم باندې اعراب راځی

**معرب** هر هغه اسم ده چه بل سره مرکب وی او مبنی الاصل سره مشابه نه وی

**عامل تعریف** العامل ما به رفع ونصب اوجر:

ترجمه عامل هغه ده چه د چاد وجه نه رفع، نصب، جر راشی

## د ټولو مثال

قامَ زَيْدٌ. قامَ عامل ده زَيْدٌ معرب ده ضمه اعراب ده او دال محل اعراب ده

## (۸ سوال)

د اعراب حرکتی تعریف او مثال اولیکی؟

## جواب

اعراب حرکتی هغه اعراب ده چه ضمه، فتحه، کسره وی لکه جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَأَيْتُ زَيْدًا مَرَرْتُ بِزَيْدٍ پدې کښې زید باندې فتحه کسره او ضمه ده دیته اعراب بالحرکت وائی

## (۹ سوال)

اعراب حرفی تعریف او مثال ذکر کړي.

## جواب

اعراب حرفی هغې ته وئیلی شی چه واو، الف یاء سره وی لکه جَاءَنِيْ أَبُوْكَ رَأَيْتُ أَبَاكَ مَرَرْتُ بِأَبِيْكَ أَبُوْكَ کښې واو أَبَاكَ کښې الف بِأَبِيْكَ کښې یء دیته اعراب حرفی وائی

## (۱۰ سوال)

فَصْلٌ فِيْ أَصْنَافِ إِعْرَابِ الْاِسْمِ وَهِيَ تِسْعَةُ أَصْنَافٍ الْأَوَّلُ أَنْ يَكُوْنَ الرَّفْعُ بِالضَّمَّةِ وَالنَّصْبُ بِالْفَتْحَةِ وَالْجَرُّ بِالْكَسْرَةِ وَيَخْتَصُّ بِالْمُفْرَدِ الْمُنْصَرِفِ الصَّحِيْحِ وَهُوَ عِنْدَ النُّحَاةِ مَا لَا يَكُوْنُ فِيْ آخِرِهِ حَرْفُ عِلَّةٍ كَزَيْدٍ وَبِالْجَارِ مَجْرَى الصَّحِيْحِ وَهُوَ مَا يَكُوْنُ فِيْ آخِرِهِ وَاوٌ أَوْ يَاءٌ مَا قَبْلَهَا سَاكِنٌ كَدَلْوٍ وَظَبْيٍ وَبِالْجَمْعِ الْمُكَسَّرِ الْمُنْصَرِفِ كَرِجَالٍ

(۱) مطلوب اشیاء اعراب د اسم، اقسام وضاحت او امثله ذکر کړی (۲) مفرد منصرف صحیح جاری مجری صحیح تعریف (۳) لفظ مفرد په خو معنو کښې استعمالیږی او دلته کومه معنی مراد

(۴) مفرد سره منصرف او جمع سره مکسر قيد ولی اونګولی شو؟

## جواب

(۱): د اسم اعراب ټول په نهه قسمه دی (۱) ضمه په رفع سره او نصب فتحی سره او جر کسری سره دا قسم د اسم معرب دری اقسامو سره خاص ده

(۱) مفرد منصرف صحیح (۲) جاری مجری صحیح (۳) جمع مکسر منصرف

د دریو واړو مثالونه جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَدَلْوٌ وَرِجَالٌ رَأَيْتُ زَيْدًا وَدَلْوًا وَرِجَالًا مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَدَلْوٍ وَرِجَالٍ.

(۲) رفع په ضمې سره نصب او جر په کسری سره دا قسم اعراب جمع مؤنث سالمې سره خاص ده لکه هُنَّ مُسْلِمَاتٌ رَأَيْتُ مُسْلِمَاتٍ مَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ. (۳) رفع ضمې سره، نصب او جر فتحی سره دا قسم اعراب غیر منصرف سره خاص ده لکه جَاءَنِيْ عُمَرُ رَأَيْتُ عُمَرَ مَرَرْتُ بِعُمَرَ

(۴) رفع په واو سره، نصب الف سره او جر یاء سره دا قسم اعراب اسماء سته مکبره سره خاص ده لکه جَاءَنِيْ أَبُوْكَ رَأَيْتُ أَبَاكَ مَرَرْتُ بِأَبِيْكَ

(۵) رفع په الف سره، نصب او جر یا، ما قبل مفتوح سره دا قسم تثنیه او ملحقات د تثنیه سره خاص ده لکه جَاءَنِيْ رَجُلَانِ كِلَاهُمَا وَاثْنَانِ رَأَيْتُ رَجُلَيْنِ كِلَيْهِمَا وَاثْنَيْنِ مَرَرْتُ بِرَجُلَيْنِ كِلَيْهِمَا وَاثْنَيْنِ

(۶) رفع واو ما قبل مضموم سره، نصب او جر ی، ما قبل مکسور سره دا قسم اعراب د جمع او ملحقات د جمع سره خاص ده لکه جاءنی مسلمون واو لومال و عشرون، رایت مسلمین واولی مال و عشرین، مررت بمسلمین واولی مال و عشرین

(۷) رفع په ضمه تقدیری سره، نصب فتحه تقدیری سره او جر کسره تقدیری سره دا قسم اعراب اسم مقصور او هغه اسم سره خاص ده چه کوم جمع مذکر سالم وی او متکلم طرف ته مضاف وی. جاءنی موسیٰ و غلامی، رایت موسیٰ و غلامی. مررت بموسیٰ و غلامی

(۸) رفع په ضمه تقدیری سره، نصب په فتحه لفظی سره او جر په کسره تقدیری سره دا قسم اعراب اسم منقوص سره خاص ده لکه، جاءنی القاضی رایت القاضی مررت بالقاضی

(۹) رفع په واو تقدیری سره، نصب او جر یاء لفظی سره دا قسم اعراب جمع مذکر سالم سره خاص ده چه کله یاء متکلم طرف ته مضاف وی لکه جاءنی مسلمی رایت مسلمی مررت بمسلمی

(۲) **مفرد منصرف صحیح تعریف**

مفرد منصرف صحیح دا هر هغه اسم ده چه لام کلمې په مقابله کښی حرف علت نه وی راغلی

بیا عام ده که د فاء، عین په مقابله کښې حرف علت وی او که نه وی لکه رجل زید وغیره

**جاري مجرى صحيح تعريف**

دا هغه اسم ده چه لام کلمه په مقابله کښې واو یا یاء راغلي وی او ماقبل ساکن وی لکه دلو، ظبی وغیره

**(۳) د لفظ مفرد معنی استعمال**

لفظ مفرد په څو معنو سره راځی

(۱) په مقابله د مرکب کښې وی دا مفرد ده مرکب نه ده

(۲) په مقابله د تثنیه جمع کښې وی دا لفظ مفرد ده یعنی تثنیه، جمع نه ده

(۳) په مقابلې د مضاف او شبه مضاف کښې وی دا لفظ مفرد ده یعنی مضاف شبه مضاف نه ده

(۴) په مقابلې د جملې او شبه جملې کښې وی دا لفظ مفرد ده یعنی جمله یا شبه جمله نه ده

**دقيد وجه**

مفرد سره منصرف قید خکه اولګو چه غیر منصرف خارج شی خکه چه دا اعراب د دي نه دی او جمع سره مکسر قید خکه اولګو چه جمع سالم تري خارج شی خکه چه دا اعراب د دي نه ده

**(۱۱ سوال)**

د غیر منصرف، جمع مذکر سالم، اسماء سته مکبره د دي اعراب سره د مثالونو ذکر کړې؟

**جواب**

**د غير منصرف اعراب** رفع په ضمی سره نصب او جر په فتحی سره لکه جاء نی عمر، رایت عُمَرَ، مررت بعمرَ

**د جمع مذكر سالم اعراب** رفع په واو ماقبل مضموم سره. نصب او جر په یاء ماقبل مکسور سره، لکه جاء نی مسلمون رایت مسلمین مررت بمسلمین

**د جمع مؤنث سالمي اعراب** رفع په ضمی سره، نصب او جر کسری سره لکه هُنّ مسلماتٌ، رایت مسلماتٍ. مررت بمسلماتٍ

**اسمائي سته مكبره** دا دی اب، اخ، حم، هن، فم، ذومال ددي اعراب رفع په واو سره نصب په الف سره او جر په یاء سره لکه جاء نی اخوك، رایت اخاك، مررت باخیك

**(۱۲ سوال)**

لاحول ولاقوة کښې څو وجه جائز دي؟

## جواب

پدې کښې پنځه وجه جائز دی

(۱) دواړه په فتحې سره ونیل لکه لاحولَ ولاقوةَ

(۲) دواړه په رفع سره ونیل لکه لاحولٌ ولاقوةٌ

(۳) اول فتح او ثاني نصب لکه لاحولَ ولاقوةً

(۴) اول په فتحې سره او ثاني په رفع سره لکه لاحولَ ولاقوةٌ

(۵) اول په رفع سره او ثاني په فتحې سره لکه لاحولٌ ولاقوةَ

## (۱۳ سوال)

صحیح ،جاري مجری صحیح ،جمع مکسر ،جمع سالم ،اسم مقصور ،اسم منقوص تعریف سره د مثالونو ذکر کړي

## جواب

صحیح دا هر هغه اسم ده چه لام کلمه په مقابله کښې حرف علت نه وي لکه زید

**جاري مجری صحیح** دا هر هغه اسم ده چه په آخر کښې حرف علت واو یا یاء وي او ماقبل ساکن وي لکه دَلْوٌ ،ظَبْیٌ

**جمع مکسر** چه بناء د واحد په کښې روغه پاتې نه وي لکه رجل جمع رجالٌ

**جمع سالم** دا هغه جمع ده چه بناء د واحد په کښې روغه پتې وي د مذکر مثال لکه مسلمون او د مؤنث مثال لکه مسلمات

**اسم مقصور** دا هغه اسم ده چه آخر کښې الف مقصوره راغلې وي لفظ وي یا تقدیراً لکه موسیٰ او عصا

**اسم منقوص** دا هغه اسم ده چه د لام کلمې په مقابله کښې تعریف علت وي لکه قاضيٌ په اصل کښې قاضیٌ وو

## (۱۴ سوال)

مسمعات ،اعصا ،عمر ،قاضي پدې مذکوره اسمونو کښې حالت رفعي ،نصبي ،جري کښې په کوم اعراب وي

## جواب

مسمعات جمع مونث سالم ده د دې اعراب حالتې رفع په ضمې سره او نصبي او جري په کسرې سره

**عصا** دا اسم مقصور ده، د دې اعراب حالت رفعي په ضمې تقدیري سره نصب په فتحه تقدیري

سره او جر په کسره تقدیری سره

**عمر** دا اسم غیرمنصرف ده ددې اعراب حالت رفعي په ضمې سره او نصب او جرئي په فتحه سره

**قاضي** دا اسم منقوص ده ددې اعراب حالت رفعي په تقدیر دضمې سره او نصب په فتحه لفظي سره او جر په کسره تقدیري سره

## (۱۵ سوال)

اَلرَّابِعُ اَنْ يَّكُوْنَ الرَّفْعُ بِالْوَاوِ وَالنَّصْبُ بِالْاَلِفِ وَالْجَرُّ بِالْيَاءِ وَيَخْتَصُّ بِالْاَسْمَاءِ السِّتَّةِ الْمُكَبَّرَةِ

پدې سوال کښې څلور اشياء مطلوب دي

۱. د اسماء سته مکبره اعراب او اسماء سته مکبره کوم يو دي؟

۲. د اسماء سته مکبره شرائط ذکر کړئ؟

۳. د اب، اخوان، حمی، اخی د دې اعراب ذکر کړئ؟

۴. مذکوره متن باندې اعراب ولګوئ؟

## جواب

۱. اسماء سته مکبره تول شپږ دی ۱، أبٌ ۲، أخٌ ۳، حمٌ ۴، هنٌ ۵، فمٌ ۶، ذومال

### د اسماء سته مکبره اعراب

د اسماء سته مکبره اعراب رفع په واو سره نصب په الف سره او جر په یاء سره

### د اسماء سته مکبره لپاره شرائط

د اسماء سته مکبره اعراب لپاره څلور شرائط دي

۱. مکبر به وي مصغر به نه وي ۲. واحد به وي تثنيه او جمع به نه وي ۳. مضاف به وي غير مضاف به نه وي ۴. د ي، متکلم نه علاوه بل اسم طرف ته به مضاف وي

### د اب، اخوان، حمی، اخی اعراب

**اب** چونکه غیر مضاف ده ددې اعراب به مفرد منصرف صحیح والاوي رفع په ضمې سره، نصب په فتحې سره، جر په کسرې سره

**اخوان** مفرد نده بلکه تثنيه ده نو اعراب به هم تثنیه والاوي یعني رفع په الف سره، نصب و جر یاء ماقبل مفتوح سره

**حمی** دا چونکه یاء متکلم طرف ته مضاف ده نو ددې اعراب به غلامي والاوي یعني رفع په ضمه تقدیري سره، نصب په فتحه لفظي سره او جر په کسره تقدیري سره

**اخي** دا مکبر نده بلکه مصغر ده نو ددي اعراب به جاري مجرى صحيح والاوي يعني رفع به ضمې سره، نصب به فتحې سره او جر به کسرې سره

## (۱۶ سوال)

اَلْاِسْمُ الْمُعْرَبُ عَلٰى نَوْعَيْنِ مُنْصَرِفٌ وَهُوَ مَالَيْسَ فِيْهِ سَبَبَانِ اَوْوَاحِدٌ يَقُوْمُ مَقَامَهُمَا مِنَ الْاَسْبَابِ التِّسْعَةِ كَزَيْدٍ.

په دې سوال کښې خلور اشياء مطلوب دي

(۱) اعراب لګول (۲) منصرف او غير منصرف تعريف سره د مثالونو (۳) اسباب تسعه کوم کوم دي (۴) د منصرف او غير منصرف حکم ذکر کول

## جواب

(۱) **د منصرف تعريف:** دا هغه اسم ده چه دي کښې نو سبب قائمقام د دوو سببونو وی او نه دوه سببه په کښې وي او دا اسم منصرف نه لکه زيد وغيره

(۲) **غير منصرف تعريف:** د هغه اسم ده چه دي کښې دوو سببه يا يو سبب قائمقام د دوو سببونو وي دا اسم غير منصرف ده لکه عمر، زفر په دي کښې عدل او علم ده او حمراء کښې تانيث بالالف الممدوده ده چه قائمقام د دوو سببونو ده

(۳) **اسباب تسعه** اسباب تسعه سره د مثالونو او دا پول نهه دي

(۱) عدل لکه عمر، زفر (۲) وصف لکه ثلث، مثلث (۳) تانيث لکه طلحة، زينب، حمراء وغيره (۴) معرفه لکه فاطمه (۵) عجمه لکه ابراهيم، سفر جل، جور (۶) جمع لکه مساجد، مصابيح (۷) ترکيب لکه بعلبك (۸) الف نون زائدتان لکه عمران (۹) وزن فعل لکه احمر وغيره

### د منصرف او غير منصرف حکم

**د منصرف حکم** دا ده چه په دي باندي دري واړه اعراب سره د تنوين نه داخليږي لکه جاء نی زيد رايت زيداً مررت بزيد

**د غير منصرف حکم** دا ده چه په دي باندي کسره او تنوين نه داخليږي لکه جاء ني عمر رايت عمر مررت بعمر

## (۱۷ سوال)

اَمَّا الْعَدْلُ فَهُوَ تَغْيِيْرُ اللَّفْظِ مِنْ صِيْغَتِهِ الْاَصْلِيَّةِ اِلٰى صِيْغَةٍ اُخْرٰى تَحْقِيْقًا اَوْ تَقْدِيْرًا

**یَجْتَمِعُ مَعَ وَزْنِ الْفِعْلِ أَصْلًا وَیَجْتَمِعُ مَعَ الْعَلَمِیَّةِ کَعُمَرَوَزُفَرَوَمَعَ الْوَصْفِ کَثُلٰثَ وَمَثْلَثَ.**

په دې سوال کښې مذکوره اشیاء مطلوب دی.

(۱) اعراب لګول (۲) ترجمه لیکل (۳) دعدل تعریف او اقسام (۴) عدل سره کوم اسباب جمع کیږی او کوم نه جمع کیږی، عدل په څو معنو سره استعمالیږی

## جواب

**د متن ترجمه** عدل هغې ته وئیلی شي چه د خپل اصل شکل نه بل شکل طرف ته منتقل شی که هغه تحقیقاً وی او که تقدیراً وی. او عدل وزن فعل سره نه جمع کیږی بالکل او عدل د علمیت سره جمع کیږی لکه عُمَر و زفر او د وصف سره جمع کیږی لکه ثلث و مثلث.

## د عدل تعریف او اقسام

**د عدل تعریف** عدل هغې ته وئیلی شي چه د خپل اصل نه بل شکل طرف ته منتقل شی لکه عمر.

## د عدل اقسام

(۱) عدل تحقیقی (۲) عدل تقدیری

**عدل تحقیقی** هغې ته وئیلی شي چه د غیر منصرف کیدلو نه علاوه دویم دلیل هم موجود وی چه داد اصل صیغې نه وتلي ده، یعنی که چیرې د ته غیر منصرف هم او نه وئیلی شی نو بیا هم ددې په معدول والی باندې دلیل موجود وی لکه ثلث او مثلث د دواړو معنی درې درې ده چه دا په اصل کښې ثلثة ثلثة ده

**عدل تقدیری** هغې ته وئیلی شي چه د باندې غیر منصرف والی نه علاوه بل دلیل نه وی موجود چه دا د بلې صیغې نه وتلي دې، لکه عمر، زفر.

## د عدل سره جمع والا اسباب

عدل وزن فعل سره نه جمع کیږی، علمیت او وصف سره جمع کیږی

## د عدل معنی

عدل په پنځو معنو سره راځی (۱) عدل په معنی د میلان سره حه کله صله کښې الی واقع شی لکه عدل الیه ای مال الیه (۲) دویمه په معنی د اعراض سره چه کله صله کښې عن واقع شی لکه فلان عدل نه ای اعرض عنه (۳) په معنی د تغیر او تصرف سره راځی چه کله صله کښې فی راشی لکه فلان عدل فیه ای صرف فیه (۴) څلورم په معنی د بُعد سره راځی چه کله صله کښې مِنْ راشی لکه عدل الجمل من البعیر ای بعد الجمل من العیر (۵) په معنی د استواء سره راځی

چه کله صله کښې بَیْنَ راشی لکه عدل الامرين ذا وكذا ای استوی الامرين ذا وكذا

## (۱۸سوال)

أَمَّا الْوَصْفُ فَلَا يَجْتَمِعُ مَعَ الْعَلَمِيَّةِ أَصْلًا وَشَرْطُهُ أَنْ يَكُوْنَ وَصْفًا فِيْ أَصْلِ الْوَضْعِ فَأَسْوَدُ وَأَرْقَمُ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَإِنْ صَارَا اسْمَيْنِ لِلْحَيَّةِ لِإِصَالَتِهِمَا فِي الْوَصْفِيَّةِ وَأَرْبَعٌ فِيْ مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ أَرْبَعٍ مُنْصَرِفٌ مَعَ أَنَّهُ صِفَةٌ وَوَزْنُ الْفِعْلِ لِعَدَمِ الْإِصَالَةِ فِي الْوَصْفِيَّةِ:

پدې سوال کښې دامذکور اشیء مطلوب دی

(۱) اعراب لګول (۲) ترجمه لیکل (۳) وصف د علمیت سره ولی نه جمع کیږی

## جواب

**ترجمه** وصف د علمیت سره بالکل نه جمع کیږی او دلپاره شرط داده چه په اصل وضع کښې به وصف وی. پس أسْوَد او ارقم غیر منصرف ده اګرچه دا دواړه د مار لپاره نومونه ګرځیدلی دی. ځکه چه دوی اصل دی په وصفیت کښی. او أرْبَع په مَررت بنسوة اربع کښ منصرف ده سره ددې نه چه دا صفت او وزن فعل ده، له وجه د عدم اصالة نه په وصفیت کښی

## د نه جمع والی وجه

وصف د علمیت سره بالکل نه جمع کیږی ځکه چه وصف کښی ابهام وی او علم کښې تعین وی نو دواړه د یو بل ضد دی او د دواړو ضد ینو اجتماع نا جائز ده

## (۱۹سوال)

أَمَّا التَّانِيْثُ بِالتَّاءِ فَشَرْطُهُ أَنْ يَكُوْنَ عَلَمًا كَطَلْحَةَ وَكَذٰلِكَ الْمَعْنَوِيُّ:

دا لاندې مذکور اشیاء مطلوب دی

(۱) اعراب لګول (۲) او تانیث په څو قسمه ده (۳) وكذلك المعنوی کښی د تانیث معنوی د تانیث لفظی سره په کوم امر کښی تشبیه ورکړې ده

## جواب

## د تانیث اقسام

تانیث په څلور قسمه ده

(۱) تانیث بالتاء اللفظی (۲) تانیث معنوی (۳) تانیث بالالف المقصوره (۴) تانیث بالالف الممدوده.

## وكذلك المعنوى كنبي تشبيه

و كذلك المعنوى كنبي د تانيث معنوي د تانيث لفظي سره تشبيه په اشتراط علميت كنبي ده لكه څرنګه چه تانيث لفظي د سبب جوړيدلو لپاره علميت شرط ده نو همدغه رنګي په تانيث معنوى كنبي هم شرط ده. مګر دواړو كنبي فرق داده چه تانيث لفظي كنبي علميت شرط ده و جوباً او تانيث معنوى كنبي علميت شرط ده جوازاً

## (۲۰سوال)

أَمَّا الْمَعْرِفَةُ فَلَا يُعْتَبَرُ فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ مِنْهَا إِلَّا الْعَلَمِيَّةُ وَتُجَامِعُ مَعَ غَيْرِ الْوَصْفِ:

پدې سوال كنبي دا مذكوره اشياء مطلوب دي

(۱) اعراب لګول (۲) ترجمه ليكل (۳) معرفه تعريف (۴) د علميت نه علاوه د معرفې باقي اقسام د غير منصرف نه كيدلو وجه

## جواب

(۱) **ترجمه** هرچه معرفه ده پدې كنبي نده معتبر په منع صرف والي كنبي مګر علميت او دا جمع كيږي د وصف نه علاوه

(۲) **د معرفه تعريف** معرفه دا هغه اسم ده چه ذات معين لپاره وضع كړي شوي وي

(۳) د غير منصرف نه كيدلو وجه د غير منصرف سبب جوړيدلو وجه داده چه دې كنبي بعض اقسام مثلاً مضمرات، اسماء اشارات، اسماء موصولات دا ټول مبني دي او مبني ضد د معرب ده او غير منصرف قسم د اسم معرب ده، نو داټول د غير منصرف ضد دي، يو ضد د بل ضد څرنګه سبب جوړيږي

او بعض اقسام د غير منصرف لره منصرف يا په حكم د منصرف كنبي جوړه وي لكه معرفه بالاضافت او معرفه بالالف واللام لهذا دا هم سبب نه جوړيږي او معرفه بالنداء به حكم د معرف باللام كنبي ده د نحويانو په نزد باندې. لهذا دا هم سبب نشي جوړيدلي. كچرته معرفه بالنداء مفرد معرفه وي نو مبني به وي او دا څرنګه سبب جوړيدلي شي. كچرته مضاف يا شبه مضاف وي نو غير منصرف لره منصر ف يا په حكم د منصرف كنبي جوړه وي. كچرته نكره غير معين وي نو معرفه به نه وي. لهذا معرفه بالنداء سبب د منع صرف والي نه جوړيږي

## (۲۱سوال)

أَمَّا الْعُجْمَةُ فَشَرْطُهَا أَنْ يَكُوْنَ عَلَمًا فِي الْعُجْمَةِ وَزَائِدَةً عَلٰى ثَلٰثَةِ أَحْرُفٍ

**كَـاِبْرَاهِيْمَ اَوْثُلَاثِيًّا مُتَحَرِّكَ الْاَوْسَطِ كَـشَتَرَفَلِجَـامٌ مُنْصَرِفٌ لِعَدَمِ الْعَلَمِيَّةِ وَنُوْحٌ مُنْصَرِفٌ لِسُكُوْنِ الْاَوْسَطِ:**

## جواب

پدي مذكوره سوال كښې لاندېني اشياء مطلوب دي
:(۱) اعراب لګول (۲) د عبارت وضاحت كول (۳) او د علماً فی العجمة مطلب څه شيی ده
د عبارت وضاحت عجمه د غير منصرف جوړېدلو سبب لپاره دوه شرائط دي
(۱) دا لغت به د عجمونه وی او چا دپاره به علم وی (۲) او هغه كلمه به د دريو حروفو نه زياته وی لكه ابراهيم يا درې حرفي وی بيا به متحرك الاوسط وی لكه شتر پس لجام منصرف ده خكه چه دا علم نه ده او نوح هم منصرف ده خكه چه ثلاثي ساكن الاوسط ده (۳) د علماً فی العجمة مطلب داده چه دا كلمه به عجمي لغت والا او علم به وی. كه حقيقتاً علم وی لكه ابراهيم دا عربي لغت طرف ته منتقل كيدونه مخكښې به عجمي لغت كښې علم وو. بغير د څه شي تبديلي نه لغت عربي طرف ته منتقل شو يا حكماً علم وی لكه قانون دا لغت عربي طرف ته منتقل كيدونه مخكښې په عجمي لغت كښې حقيقتاً علم نه وو بلكه اسم جنس وو
هر جيد شي ته قالون وائي. بيا لغت عربي طرف ته منتقل كيدونه بعد په معنى جنسي كښې استعماليدونه مخكښې علم وګرځيده قراء حضراتو كښې يو صاحب قرآن دپاره قاري علم وګرځيده جودت قرأت دوجه نه او هغه لفظ عجمي چه كوم لغت عربي طرف ته منتقل كيدو سره په خپل معنى جنسي كښې استعمال كيدونه مخكښې علم شي نو هغه حكماً علم وی خكه چه دا بغير دتبدل او تغير نه محفوظ كيږي

**(۲۲سوال)**

هغه كوم سببونه دي چه د عجمي د منع صرف والي لپاره شرط دي او ابراهيم، لجام، نوح پدې كښې كوم منصرف ده او كوم غير منصرف ده

## جواب

سبب د عجمي د منع صرف والي لپاره دوه شرائط دي
(۱) علميت (۲) درې حرفونونه به زيات وی يا به ثلاثي متحرك الاوسط وی
دوم ابراهيم غير منصرف ده د علميت او عجم دوجه نه او لجام منصرف ده خكه چه علميت په كښې نشته او نوح منصرف ده خكه چه متحرك الاوسط نه ده

## (۲۳سوال)

**هغه** کوم سببونه دي چه د جمع د غير منصرف جوړيدلو لپاره شرط دي تفصيل سره بيانول. د بعلبك، معديكرب، تغلب، نرجس، حبلى، صياقلة د مثالونو کښې کوم منصرف دي او کوم غير منصرف دي وجه سره اوليکئ

## جواب

**اول** د جمع غيرمنصرف والي لپاره دوه شرائط دي

(۱) چه دا جمع به په وزن د منتهى الجموع سره وي، که چيرې جمع وي خو په وزن د منتهى الجموع سره نه وي نو دا به د غير منصرف والي لپاره سبب نشي جوړيدلی لکه رِجَالٌ، نِسْوَةٌ وغيره

(۲) په آخرکښې به داسې ت، نه وي چه هغه په حالت د وقف کښې هاء سره بدل شي که چيرې داسې نه وي نو دا جمع به دغير منصرف والي لپاره سبب نشي جوړيدلی لکه صَيَاقِلَةٌ د صَيْقَلْ جمع ده او د منتهى الجموع په وزن هم ده مگر په آخر کښې تاء ده لهذا دا به منصرف وي

**دويم** مذکوره مثالونو کښې کوم منصرف دي او کوم غير منصرف دي

بعلبك او معديكرب غير منصرف ده د وجه نه چه دې کښې ترکيب او علميت ده، تغلب او نرجس هم غير منصرف ده دوجه نه چه دې کښې وزن فعل او علميت ده، حُبْلى غير منصرف ده ځکه چه دکښې الف مقصوره دې چه داقائمقام ددوو سببونو ده، صَيَاقِلَةٌ منصرف ده اگرچه دا جمع ده او جمع منتهى الجموع ده مگر په آخر کښې تاء ده په حالت د وقف کښې هاء سره بدليږي

## (۲۴سوال)

أَمَّا التَّرْكِيبُ فَشَرْطُهُ أَنْ يَكُوْنَ عَلَمًا بِلَا إِضَافَةٍ وَلَا إِسْنَادٍ فَعَبْدُ اللّٰهِ مُنْصَرِفٌ وَمَعْدِيْكَرِبَ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَشَابَ قَرْنَاهَا مَبْنِيٌّ:

پدې سوال کښې مذکوره اشياء مطلوب دي

## جواب

(۱) اعراب لګول (۲) ترجمه ليکل (۳) د ترکيب لغوي او اصطلاحي معنى

**ترجمه** ترکيب لپاره شرط داده چه دا به علم وي بغير د اضافت او اوسناد نه لکه

بعلبك، پس عبد الله منصرف ده او معدیکرب منصرف ده او شاب قرناها مبنی ده

**د ترکیب لغوی معنی**: ترکیب مصدر ده د باب تفضیل نه په معنی د یوځائي کولو سره.

**اصطلاحی معنی** د ترکیب اصطلاحی معنی دوه یا دوه نه زیات حروف یوځائي کول

## (۲۵سوال)

**وَاعْلَمْ اَنَّ كُلَّ مَا شُرِطَ فِيْهِ الْعَلَمِيَّةُ اَوْلَمْ يُشْتَرَطْ فِيْهِ ذٰلِكَ وَاجْتَمَعَ مَعَ سَبَبٍ وَاحِدٍ فَقَطْ اِذَا نُكِّرَ صُرِفَ:**

پدي سوال کښې لاندي مذکوره اشیاء مطلوب دي

(۱) اعراب لګول (۲) ماشرط فیه العلمیت اولم یشترط فیه ذلك ددي مصداق کوم اشیاء دي

## جواب

(۱) په متن باندي اعراب لګولي شوي ده

(۲) د ماشرط فیه العلمیت مصداق څلور اشیاء دي

(۱) مؤنث بالتاء اللفظی او مؤنث معنوی (۲) عجمه (۳) ترکیب (۴) هر هغه اسم چه هغې کښې الف او نون زائد تان وی

اولم یشترط فیه ذلك مصداق دوه اشیاء دي (۱) علم عدول (۲) وزن فعل

## (۲۶سوال)

**المقصد الاول فی المرفوعات** (۱) مرفوعات څومره دي او د هر یو مثال اولیکی (۲) مرفوعات د مرفوع جمع ده یا د مرفوعة (۳) مرفوعات په منصوباتو او مجروراتو باندي ولی مقدم کړي شو

## جواب

مرفوعات ۸ دي (۱) فاعل لکه ضَرَبَ زَيْدٌ کښې لفظ زید (۲) مفعول مالم یسم فاعله لکه ضُرِبَ زَيْدٌ کښې لفظ زید (۳) مبتدا لکه زَيْدٌ قَائِمٌ کښې زید (۴) خبر لکه زَيْدٌ قَائِمٌ کښې قائم (۵) خبر دانّ او اخواتو ددی لکه اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ کښې قائم (۶) اسم دکان او اخواتو ددی لکه کَانَ زَيْدٌ قَائِمًا کښې زید (۷) اسم دما ولا مشبهتین بلیس لکه مَا زَيْدٌ بِقَائِمٍ کښې زید (۸) خبر دلائی نفی جنس لکه لَا رَجُلَ قَائِمٌ کښې لفظ قائم

**دویم** مرفوعات د مرفوع یا د مرفوعة جمع ده، دا د مرفوع جمع ده نه دې مرفوعةٌ ځکه چه د

مرفوعات مفرد اسم صفت ده او اسم مذکر ده لهذا ددې صفت هم مذکر راوړل پکار دي

**دویم** مرفوعات په منصوباتو او مجروراتو باندي ولي مقدم کړو. څکه مقدم کړو چه مرفوعات عمده ده او دا اکثر مسند الیه وي او مسند الیه عمده وي نو عمده مقدم کول پکار دي

**سوال** اَمَّا التَّرْكِيْبُ فَشَرْطُهُ اَنْ يَّكُوْنَ عَلَمًا بِلَا اِضَافَةٍ وَّلَا اِسْنَادٍ كَبَعْلَبَكَّ فَعَبْدُ اللّٰهِ مُنْصَرِفٌ وَمَعْدِيْكَرِبُ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَشَابَ قَرْنَاهَا مَبْنِيٌّ.

د مذکوره پورتنی عبارت مطلب بیان کړی او ولیکئ چي مصنف رحمة الله علیه د ترکیب په منع صرف کښې د مؤثر کیدو لپاره د علمیت او بلا اضافة او بلا اسناد شرط ولې راوړی

**جواب** د دې دواړو سوالونو په بوخی کوڅو سره پنځه شیان مطلوب دي

**اول** د عبارت ترجمه لیکن بیا د ترکیب شرط دادې چي هغه علم وي بغیرد اضافت او اسناده لکه بَعْلَبَكّ بیا عبدالله منصرف دې او معدیکرب منصرف دې او شاب قرناها مبني دي

**دویم** د عبارت مطلب په دې عبارت سره سبب منع صرف کښې د ترکیب د سبب جوړیدو لپاره دوه شرطونه دي او د مطابقي او احترازي مثالونه ذکر شوي دي اول شرط دا دې چي هغه مرکب به علم وي دویم شرط دادې چي ترکیب اضافي او اسنادي به وي د مطابقي مثال بَعْلَبَكّ او مَعْدِيكَرِبْ دا دواړه غیر منصرف دي. څکه په دوي کښې دوه سببونه ترکیب او علمیت موجود دي او د ترکیب د مؤثر کیدو شرط هم موجود دې علم هم دې او ترکیب اسنادي او اضافي هم نه دي داحترازي مثال عبدالله دا منصرف دې. څکه په دا مرکب اضافي دې اواحترازي مثال لکه شَابَ قَرْنَاهَا دا مبني دې. څکه په دا مرکب اسنادي دې مرکب اسنادي چي کله علم جوړشي نو مبني کیږي

**دریم** د ترکیب لغوي او اصطلاحي معنی ترکیب مصدر ده دبا به تفصیل نه لغوي معنی جوړه کول او مرکب کیدل او اصطلاحي معنی د دوو یا تر دوو نه زیاتو کلمو بغیر دیو حرف نه جز کیدل یو کیدل

**څلورم** دې مصنف رحمة الله علیه د ذکر کړي شوي بولو اتفاقي او احترازي مثالونو وضاحت مصنف رحمة الله علیه څلور مثالونه ذکر کړی دی بعلبك، او معدیکرب دا اتفاقي مثالونه دی بعل دیوبت نوم ده او بك د باچا نوم ده چاچي بنار جوړ کړی وو دواړه اسمونه سره یوځای شو ددې بنار نوم و گرځید په دې کښې هیڅ جزء حرف عطف نه شامل هم نه دی او ترکیب اسنادي او اضافي هم نشته. څکه نو دا د ترکیب او علمیت په وجه سره غیر منصرف دی او معدیکرب دیو سړي نوم دی مَعْدِي او كَرِبْ دوه اسمونه وو دا دواړه اسمونه سره یو ځای شول

چونکه دا مرکب اضافي هم نه دی او اسنادي هم نه. نو ده خکه دا هم د ترکیب او علمیت په وجه سره غیر منصرف دی او عبدالله او شاب قرنها احترازي مثالونه دي عبدالله منصرف دی که څه هم علم خو دی مگر ددویم شرط لومړی شق چې ترکیب اضافي نه وي په دې کښې نشته.نو ځکه دا مرکب اضافي دی او دا منصرف وگرځیدو او شاب قاناها دا د دویم شرط په قسم ثاني تفریع دی دا مبنی دی. ځکه مرکب اسنادي دی شاب فعل او قرناها مضاف سره له مضاف الیه فاعل دی

**ترجمه** سبین شوې د هغې ښخې گېسوگان نو ددې نوم کېښودل شو شبقرنها اوس که څه هم په ده کښې ترکیب او علمیت دوه سببونه شته مگر څرنگه چې دا مرکب اسنادي دی دا مبنی دی. ځکه نو دا غیر منصرف دی

**پنځم** د علمیت او بلا اضافة ولا اسناد د شرطونو فائده مصنف رحمه الله د ترکیب په منع صرف کښې د مؤثر کیدو لپاره علمیت او بلا اضافة او بلا اسناد شرط ونې لگولی دی د علمیت شرط. ځکه لگول شوی دی چې ترکیب بو عارضي شی دی.ځکه اصل په کلمه کښې دا دی چې هغه مستقله جلا استعمال کړی شی دبل جا محتاجه نه وي مگر دیو عرض په وجه سره دا د بلې کلمې سره جوړه شوه نو معلومه شوه چې دا یو عارضي شی دی او کوم چې عارضي شی وي په هغه زوال راځي .ځکه نو احتمال دی چې ترکیب زائل شي نو د علمیت شرط ځکه ولگیدو چې له زوال څخه محفوظ شي دا د ترکیب د غیر منصرف سبب جوړشي او د بلا اضافة شرط ځکه لگیدلی دی چې اضافت د غیر منصرف منصرف دا په حکم کښې د منصرف گرځوي نو دا څرنگه په غیر منصرف کښې مؤثر کیدلی شي او بلا اسناد شرط ځکه لگول شوی دی چې د ترکیب د سبب جوړیدو لپاره علمیت هم شرط دی اوس ترکیب اسنادي که چیرې وي نو ترکیب اسنادي والامرکب اسنادي چې کله د یو جا علم شي نو هغه مبني کیږي او مبني د غیر منصرف ضد ده، ځکه غیر منصرف د معرب قسم دی، ځکه نوله دې څخه احتراز ضروري دی باقي مرکب توصیفي د اضافي په حکم کښې دی داراز مرکب صوتي، مرکب تعدادي، په مرکب اسنادي کښې داخل دی. ځکه مرکب اسنادي خولکه علم جوړیدو او روسته مبني جوړیږي او مرکب صوتي. تعدادي خوله سره مبني دی او مبني ضد دی د معرب غیر منصرف

**سوال** وَاعْلَمْ اَنَّ كُلَّ مَاشُرِطَ فِيْهِ الْعَلَمِيَّةُ وَهُوَالْمُؤَنَّثُ بِالتَّاءِوَالْمَعْنَوِيُّ وَالْعُجْمَةُ وَالتَّرْكِيْبُ وَالْاِسْمُ الَّذِيْ فِيْهِ الْاَلِفُ وَالنُّوْنُ الزَّائِدَتَانِ اَوْلَمْ تُشْتَرَطْ فِيْهِ ذٰلِكَ وَاجْتَمَعَ مَعَ سَبَبٍ وَاحِدٍ فَقَطْ اِذَا نُكِّرَ صُرِفَ!

په دې عبارت اعراب ولگوئ بیا وښایئ چې دما شرط فیه العلمیة اولم یشترط فیه ذلک د دې

مصداق کوم یو دی له دي وروسته مصنف رحمه الله علیه چی کومه قاعده بیان کړی، ددي تشریح وکړئ.

**جواب** په دې سوال کښی درې شیان مطلوب دی

**اول** په عبارت باندې اعراب ولګوئ

**دویم** د مَا شُرِطَ فِیهِ العَلَمِیَّةُ مصداق خلور شیان دی (۱) مؤنث بالتاء اللفظی او مؤنث معنوی (۲) عجمه (۳) ترکیب (۴) هر هغه اسم په کوم کښی چی الف او نون زائد تان وی او دلم یشترط فیه ذلك مصداق دوه دی (۱) علم معدول (۲) وزن فعل

**دریم** د قاعدې مکمله تشریح په شرح کښی وګوری.

**سوال** مرفوعات څومره او کوم دی د هر یو مثال بیان کړی؟

**سوال** المقصد الاول فی الموفوعات دالاندې جوابونه ولیکلی (۱) مرفوعات څومره دی د هر یو مثال بیان کړئ (۲) مرفوعات د مرفوع جمع ده که د مرفوعة (۳) مصنف رحمه الله علیه د مرفوعاتو بحث ولی په منصوباتو او مجروراتو مخکښی کړو

**جواب** په دې دوارو سوالونو کښی درې شیان مطلوب دی

**اول** مرفوعات توټل اته دی (۱) فاعل لکه په ضَرَبَ زَیْدٌ کښی لفظ زید (۲) مفعول مالم یسم فاعله لکه په ضُرِبَ زَیْدٌ کښی زید (۳) مبتدا لکه په زَیْدٌ قَائِمٌ کښی زید (۴) خبر لکه په زَیْدٌ قَائِمٌ کښی قائم (۵) دانّ او د هغه د اخواتو خبر لکه په اِنَّ زَیْداً قَائِمٌ کښی قائم (۶) د کان او د هغه داخواتو اسم لکه په کَانَ زَیْدٌ قَائِماً کښی زید (۷) دما اولا مشبهتین بلیس اسم لکه په مَا زَیْدٌ قَائِماً کښی زید (۸) دلانفی جنس خبر لکه په لَارَجُلَ قَائِمٌ کښی لفظ د قائم

**دویم** مرفوعات د مرفوع جمع ده که د مرفوعة نو داد مرفوع جمع ده نه د مرفوعة، ځکه مرفوعات مفرد د اسم صفت دی او اسم مذکر وی، نو ځکه د ده صفت هم مذکر کیدل پکار دی.

**سوال** مرفوع مذکر دی او د مذکر جمع سالمه خو په واو او نون سره راځی دلته په الف او تاء سره څرنګه راغلی ده؟

**جواب** اسم مذکر لایعقل دی او ضابطه ده چی د مذکر لایعقل صفت جمع په الف او تاء سره راځی لکه الیوم مذکر غیر عاقل دی د ده صفت الخالی راځی او دالخالی جمع الخالیات په الف او تاء راځی، الایام الخالیات الکوکب مذکر غیر عاقل دی د ده صفت الطالع کیدی شی جمع بی په الف او تاء سره راغلی ده لکه چی ویل کیږی الکواکب الطالعات

دریم مرفوعات په منصوباتو او مجروراتو ولې مقدم شوي دي؛ ځکه چې مرفوعات عمده دي او اکثر مسندالیه وي او مسندالیه په کلام کښې عمده وي

**سوال** اَلْفَاعِلُ كُلُّ اِسْمٍ قَبْلَهٗ فِعْلٌ اَوْصِفَةٌ اُسْنِدَ اِلَيْهِ عَلٰى مَعْنٰى اَنَّهٗ قَامَ بِهٖ لَا وَقَعَ عَلَيْهِ نَحْوُ قَامَ زَيْدٌ وَزَيْدٌ ضَارِبٌ اَبُوْهُ عَمْرًا وَمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا.

په عبارت اعراب ولګوئ د عبارت خلاصه بیان کړئ د خط کشیده قید څه فائده ده

**سوال** د فاعل تعریف د مثالونو په رڼا کښې قلم بند کړئ

**جواب** د دواړو سوالونو په یوځاې کونو سره خلور شپن مطلوب دي **اول** اعراب په سوالیه عبارت کښې وګورئ

**دويم** د عبارت خلاصه ددې عبارت د فعل تعریف سره له مثالونو بیانول دي حاصل دادې چې فاعل هر هغه اسم دی چه دنه مخکښې فعل یا صیغه د صفت وي د کوم چې اسم طرفته نسبت په داسې طریقه شوې وي چې هغه فعل یا صیغه د صفت په دې اسم سره قائم وي نه چې په واقع وي لکه په قام زید کښې زید اسم دی دنه مخکښې قام فعل دی نسبت یې شوي دی زید طرفته په داسې طریقه چې دا ده سره قائم دی په ده واقع نه دی. ځکه نو په زید د فعل تعریف صادق شو دوهم مثال زید ضارب ابوه عمرا په دې مثال کښې ابوه اسم دی د نه مخکښې صیغه د صفت ده د هغې اسناد دې دابوه و طرفته په داسې طریقه چې ضرب له ده سره قائم دی په ده واقع نه دی. ځکه په دې مثال کښې ابوه فاعل دی ضارب صیغه صفت

**دریم** د فاعل تعریف د مثالونو په رڼا کښې دا خبره هم په خلاصه کښې بیان شوې ده د مثالونو وضاحت هم شوی دی

**څلورم** د خط په کش شوي خبر (لَا وَقَعَ عَلَيْهِ) فائده داده چې له دې څخه مفعول ماثم یسم فاعل یعنې نائب فاعل خارجول مقصود دي، ځکه له ده سره فعل یا صیغه د صفت قائم نه ده بلکې پرې واقع دی لکه په ضرب زید کښې زید نائب فاعل دی ضرب پرده واقع دی

**سوال** و ان کان الفاعل مظهر اوحد الفعل ابدانحو ضرب زید و ضرب الزیدان الخ (۱) د فاعل داسم ظاهر او اسم ضمیر کیدو په صورت کښې دفعل دوحدت او تثنیه ضابطه په تفصیل سره بیان کړئ (۲) د هر یوه جزء دلیل او وجه هم بیان کړئ (۳) د فاعل د مؤنث حقیقي او غیر حقیقي په صورت کښې د فعل د تذکیر او تانیث ضابطه هم په لنډه توګه بیان کړئ

**سوال** وَاِنْ كَانَ الْفَاعِلُ مُؤَنَّثًا حَقِيْقِيًّا وَهُوَ مَا بِاِزَائِهٖ ذَكَرٌ مِنَ الْحَيْوَانِ اُنِّثَ الْفِعْلُ اَبَدًا (الف) فعل کله

مؤنث راوړل کيږي تفصيل يې وليکئ (ب) په عبارت اعراب ولګوي ترجمه يې وکړئ او وښايئ چې مؤنث حقيقي څه ته ويل کيږي. ج: په قَامَتْ هِنْدٌ او هِنْدٌ قَامَتْ کښې فعل مؤنث ولې راوړل کيږي

**جواب** د دوارو سوالونو په يو ځاى کولو سره شپږ شيان مطلوب دي

**اول سوال** په عبارت اعراب په سواليه عبارت کښې وګورئ ترجمه او د هغې ترجمه داده چې که چيرې فاعل مؤنث حقيقي وي (او مؤنث حقيقي هغه دي چې د ده په مقابله کښې يو مذکر حيوان راغلى وي) نو فعل همېشه مؤنث راوړل کيږي

**دويم** د فاعل: اسم ظاهر او ضمير کيدو په صورت کښې دفعل دوحدت او تثنيې د ضابطې تفصيل دادى چې فاعل به له دوو حالونو خالي نه وي يا به اسم ظاهر وي يا اسم مضمر که چيرې اسم ظاهر وي نو فعل همېشه مفرد راځي خواه هغه فاعل مفرد وي يا تثنيه وي يا جمع وي، لکه ضَرَبَ زَيْدٌ ضَرَبَ الزَّيْدَانِ، ضَرَبَ الزَّيْدُوْنَ او که چيرې فاعل اسم مضمر وي نو فعل د فاعل مطابق راځي که چيرې فاعل مفرد وي نو فعل به هم مفرد وي که تثنيه وي نو فعل به هم تثنيه وي، که جمع وي نو فعل هم جمع راوړل کيږي لکه زَيْدٌ ضَرَبَ الزَّيْدَانِ ضَرَبَا الزَّيْدُوْنَ ضَرَبُوْا

**دريم**: د هر يو شي دليل او وجه د فاعل د اسم کيدو په صورت کښې که چيرې فعل له فاعل سره مطابق راشي نو د فاعل تکرار راځي مثلاً په ضَرَبَ الزَّيْدَانِ کښې د ضَرَبَ فعل فاعل الف ضمير هم دى او الزَّيْدَانِ هم او د فاعل د اسم ضمير کيدو په صورت کښې ځکه چې د دې ضمير مرجع اسم ظاهر دى که چيرې فعل د فاعل د ضمير مطابق راوړل شي نو د راجع او مرجع په مينځ کښې مطابقت نه راځي

**څلورم**: د فاعل د مؤنث حقيقي او غير حقيقي په صورت کښې تذکير او تانيث ضابطه په اختصار سره داده چې که چيرې فعل فاعل مؤنث حقيقي وي (حقيقي هغه دي چې په مقابله کښې يې مذکر حيوان وي) نو فعل يې همېشه مؤنث راځي که چيرې مؤنث راشي نو د فعل او فاعل په مينځ کښې به فاصله وي لکه قَامَتْ هِنْدٌ (هنده ولاړه ده) او که چيرې فاصله راشي نو تاته اختيار دى په مؤنث او مذکر راوړلو کښې لکه ضَرَبَ الْيَوْمَ هِنْدٌ او که چيرې ته غواړې نو ضَرَبَتْ الْيَوْمَ هِنْدٌ ووايه او دا راز په مؤنث غير حقيقي کښې لکه طَلَعَتْ الشَّمْسُ او که ته غواړې نو طَلَعَ الشَّمْسُ ونيلى شې دا هغه وخت کله چې فعل اسم ظاهر ته مسند وي او که چيرې اسم ضمير ته مسند وي نو همېشه به يې مؤنث راوړې لکه الشَّمْسُ طَلَعَتْ او جمع مکسر د مؤنث غير حقيقي په شان ده نو ويل کيږي قَامَ الرِّجَالُ او که چيرې ته وغواړې نو قَامَتِ الرِّجَالُ قامت ونيلى شې او په دې کښې الرِّجَالُ قَامُوْا ويلى

هم جائز دی

**پنځم** مؤنث په دوه قسمه دی: (۱) حقیقی هغه ده چی په مقابله کښی یې مذکر حیوان وی په دی کښی د مؤنث علامه په لفظ کښی وی لکه امراة چی د رجل په مقابله کښی ده او ناقة (اوښه) چی د اوښ په مقابله کښی ده (۲) مؤنث غیر حقیقی هغه ده چی په مقابله کښی یې مذکر حیوان نه وی، خواه بالکل یې مذکر نه وی لکه عین په معنی د چینی یا یې به مقابله کښی مذکر خو وی مگر حیوان نه وی لکه نخلة په مقابله کښی یې نخل مذکر دی لیکن حیوان نه وی

**شپږم** په قَامَتْ هِنْدٌ او قامت کښی د فعل مؤنث راوړلو وجه دا ده چی ضابطه ده چی کله د فعل فاعل مؤنث حقیقی وی خواه اسم مظهروی یا مضمرنو فعل همیشه مؤنث راوړل کیږی په دې شرط چی د فعل او فاعل په مینځ کښی فاصله نه وی په مذکوره مثالونو کښی همدا صورت دی

**سوال** د مؤنث حقیقی او غیر حقیقی او جمع تکسیر تعریف ولیکئ او وښائی چی که چیری به دې کښی کوم یو فاعل واقع شی نو فعل مذکر راوړل کیږی یا به دواړو کښی اختیار دی دارنګې د فاعل د مظهر یا مضمر کیدو په صورت کښی قانون یو کیږی یا یې فرق شته نو هغه فرق بیان کړئ او هر قانون په مثال سره واضح کړئ

**سوال** (۱) فاعل په کومو حالاتو کښی مذکر یا مؤنث راوړل کیږی (۲) هغه کوم حالات دی په کومو کښی چی تذکیر او تانیث دواړه جائز دی (۳) دارنګې د فاعل فعل په کومو حالاتو کښی واحد، تثنیه او جمع راوړل کیږی

**جواب** د دواړو سوالونو په جمع کولو کښی پنځه شیان مطلوب دی

**اول** د مؤنث حقیقی، غیر حقیقی، او جمع تکسیر تعریف، د مؤنث حقیقی او غیر حقیقی تعریف د مخکښی سوال په جواب کښی وګورئ جمع تکسیره هغه جمع ده په کومه کښی چی د واحد بناء سلامته نه وی لکه رجل جمع مکسره یې رجال ده

**دویم** په دې دریو واړو کښی چی کوم یو فاعل واقع شی نو فعل مذکر یا مؤنث راوړل کیږی یا اختیار دی دارنګې د فاعل د مظهر کیدو په صورت کښی قانون یو دی یا فرق هر قانون په مثال سره واضح کړئ نو په دی سلسله کښی د فاعل د مؤنث حقیقی یا غیر حقیقی کیدو په صورت کښی د فعل حالات په تفصیل سره د مخکښی سوال په جواب کښی تیرشوی دی جمع مکسره که چیری فاعل وی نو له دوو حالتونو به خالی نه وی جمع مکسر به اسم ظاهر وی یا ددی ضمیر که چیری اسم ظاهر وی نو ددی حکم مؤنث غیر حقیقی په شان دی چی د فعل مذکر او مؤنث دواړه

راوړل جائز دی خواه د فعل او فاعل په مینځ کښی فاصله وی یا نه وی لکه قام رجال بغیرد تاء قامت رجال سره له تاء د فاصلی مثال قام الیوم الرجال او قامت الیوم الرجال او که چیری اسم ... وی نو دده حکم د مؤنث غیر حقیقی د ضمیر په شان نه دی مؤنث غیر حقیقی چی کله فاعل ... په فعل کښی تاء تانیث راوړل واجب دی لکه الشمس طلعت لیکن دلته د جمع مکسر ضمیر ... چیری فاعل وی نو بیا کتل کیږی که چیری د مذکر یعقل د جمع مکسر ضمیر وی نو د تاء تانیث راوړل هم جائز دی لکه الرجال قامت په دې وخت کښی جمع په تاویل د جماعت مؤنث جوړیږی خکه نو فعل مؤنث راوړل جائز کیږی او په فعل کښی واو جمع راوړل هم جائز دی یعنی فعل جمع مذکر غائب راوړل هم جائز دی لکه الرجال قامو او که چیری هغه جمع له غیر ذوی العقول څخه وی خواه مذکر وی یا مؤنث یا په ذوی العقول کښی وی مگر مؤنث وی نو تاء د تانیث راوړل هم جائز دی یعنی واحده مؤنثه غائبه صیغه راوړل هم جائز دی او نون د جمع مؤنث یعنی د جمع مؤنث غائبات صیغه راوړل هم جائز دی لکه د مذکر لایعقل په جمع مکسره الایام مضت په تاء تانیث سره ویل هم جائز دی اوالایام مَضَینَ په نون د جمع مؤنث سره هم ویل جائز دی دارنگی د مؤنث لایعقل په جمع مکسره کښی مثلاً العیون جرت (چینی جاری شوی) په تاء تانیث سره اوالعیون جرین په نون د جمع مؤنث سره ویل جائز دی دارنگی په ذوی العقول کښی د مؤنث په جمع مکسر کښی النساء جاءت په تاء سره او النساء جئن په نون د جمع مؤنث سره ویل جائز دی

**دویم**: فاعل په کومو حالاتو کښی مذکر یا مؤنث راوړل کیږی که چیری فاعل اسم ظاهر مؤنث حقیقی وی او د فعل او فاعل په مینځ کښی فاصله نه وی نو فعل مؤنث راوړل کیږی لکه قامت هند او که چیری فاعل مؤنث فاعل وی نو فعل همیشه مؤنث راوړل کیږی خواه د مؤنث حقیقی ضمیر وی یا د غیر حقیقی لکه الشمس طلعت هند جاءت.

**څلورم**: هغه کوم حالات دی په کومو کښی چی تذکیر او تانیث دواړه جائز دی نو له پورته دوو صورتونو نه علاوه نور صورتونه دی چه په کومو کښی دواړه جائز دی (۱) فاعل اسم ظاهر مؤنث حقیقی وی او فاصله وی نو په مذکر او مؤنث کښی اختیار دی لکه ضَرَبَ الیَومَ هندٌ. ضَرَبَت الیَومَ هندٌ (۲) که چیری فاعل مؤنث غیر حقیقی وی فاصله نه وی لکه طَلَعَت الشَّمسُ طَلَعَ الشَّمسُ، طَلَعَت الیَومَ شَمسٌ. طَلَعَ الیَومَ شَمسٌ (۳) که چیری فاعل جمع مکسر خواه اسم ظاهر وی یا د جمع مکسر ضمیر وی د فعل او فاعل ترمینځ فاصله وی یا نه لکه قَامَ الرِّجَالُ. قَامَتِ الرِّجَالُ. قَامَ الیَومَ رِجَالٌ. قَامَت الیَومَ رِجَالٌ، قَامَت الرِّجَالُ قَامُوا

**پنځم**: د فاعل فعل په کومو حالاتو کښی واحد، تثنیه او جمع راوړل کیږی (۱) که چیری فاعل اسم ...

ظاهروی نو فعل همیشه واحد راځي لکه ضَرَبَ زَیْدٌ ضَرَبَ الزَّیْدَانِ، ضَرَبَ الزَّیْدُوْنَ (۲) که چیري فاعل اسم مضمر وي نو فعل د فاعل مطابق راځي لکه زَیْدٌ ضَرَبَ الزَّیْدَانِ ضَرَبَا الزَّیْدُوْنَ ضَرَبُوْا په دې مسئله کښې د مذکر او مؤنث هیڅ فرق نشته

**سوال: هٰذَا اِذَاکَانَ الْفِعْلُ مُسْنَدًا اِلَی الْمُظْهَرِ وَاِنْ کَانَ مُسْنَدًا اِلَی الْمُضْمَرِ اُنِّثَ اَبَدًا نَحْوُ اَلشَّمْسُ طَلَعَتْ**

(۱) اعراب ورکړئ وښایئ چې د فعل د مؤنث راوړلو لپاره څومره او کوم شرطونه دي په کومو صورتونو کښې مؤنث راوړل ضروري دي او په کومو کښې جائز دي

**جواب:** په دې سوال کښې درې شیان مطلوب دي

**اول:** په عبارت باندې اعراب په سوالیه عبارت کښې یې وګورئ.

**دویم:** د فعل د مؤنث راوړلو لپاره څومره او کوم شرطونه دي نو ټول شپږ شرطونه دي (۱) فعل فاعل مؤنث حقیقي مظهر کیدل (۲) فاعل د مؤنث حقیقي ضمیر کیدل (۳) فاعل د مؤنث غیر حقیقي مظهر وي (۴) فاعل د مؤنث غیر حقیقي ضمیر وي (۵) فاعل جمع مکسر مظهر وي (۶) فاعل د جمع مکسر ضمیر وي.

**فائده:** په دې ذکر شویو پورته صورتونو کښې په بعضو کښې مؤنث راوړل واجب دي او په بعضو کښې جائز تفصیل یې را روان دي

**دریم:** په کومو صورتونو کښې مؤنث راوړل واجب دي او په کومو کښې جائز دي نو په درو صورتونو کښې واجب (۱) فاعل مؤنث حقیقي مظهر وي او د فعل او فاعل په مینځ کښې فاصله نه وي لکه قامت هند (۲) فاعل د مؤنث حقیقي ضمیر وي لکه هند قامت (۳) فاعل د مؤنث غیر حقیقي ضمیر وي لکه الشمس کورت په شپږو صورتونو کښې جائز دي فاعل مؤنث حقیقي مظهر او د فعل او فاعل په مینځ کښې فاصله وي لکه ضرب الیوم هند، ضربت الیوم هند (۲) فاعل مؤنث غیر حقیقي مظهر او فاصله وي لکه طلع الیوم الشمس وطلعت الیوم شمس (۳) فاعل مؤنث حقیقي مظهر وي او فاصله نه وي لکه طلع الشمس او طلعت الشمس (۴) فاعل د جمع مکسر ضمیر وي لکه الرجال قامت او الرجال قاموا (۵) فاعل جمع مکسر مظهر او فاصله وي لکه قام الیوم رجال او قامت الیوم رجال (۶) فاعل جمع مکسر مظهر وي او فاصله نه وي لکه قام الرجال او قامت الرجال

**سوال:** د جمع التکسیر کالمؤنث الغیر الحقیقي مطلب ولیکئ او د مثال په ذریعه سره یې راوښیئ چې جمع تکسیر که فاعل وي نو فعل په کومه طریقه سره راځي مؤنث غیر حقیقي چاته ویل کیږي مثال یې ولیکئ د فاعل په مفعول مقدم کیدل کله ضروري دي او کله نه مثالونه ولیکئ

**جواب** په دې سوال کښې څلور شيان مطلوب دي

**اول** د د جمع التکسير کالمؤنث الغير حقيقي الخ مطلب د دې خبره د مخکښې سوال په جواب کښې تير شوی دی

**دويم** جمع تکسير که فاعل وی نو چې فاعل څرنګه استعمال شوی وی د دې مثال او وضاحت یې هم د مخکښې سوال په جواب کښې تير شوی دی

**دريم** د مؤنث غير حقيقي تعريف او مثل مؤنث غير حقيقي هغه دی د کوم په مقابله کښې چې مذکر نه وی خواه بالکل نه وی لکه عين بابې په مقابله کښې مذکر خو وی مګر حيوان نه وی لکه دنخلة په مقابله کښې نخل دی

**څلورم** د فاعل په مفعول مخکښې کيدل هغه وخت ضروری دی کله چې فاعل او مفعول به دواړه اسم مقصور وی او دالتباس خطره وی حاصل دا چې کله اعراب لفظي په دواړو کښې نه وی او يو داسې قرينه هم نه وی کومه چې د فاعل په فاعليت دلالت وکړي نو په دې وخت کښې د فاعل په مفعول باندې مخکښې کيدل واجب دی کنې التباس راځی نه معلوميږی چې فاعل کوم يو دی او مفعول کوم يو دی لکه ضَرَبَ مُوسٰی عِيسٰی، شَتَمَتْ سُعْدٰی سَلْمٰی (په کنځل کړی سعدی سلمی ته) او که چيرې د التباس خطره نه وی نو د مفعول په فاعل مخکښې کيدل جائز دی خطره هغه وخت نه وی کله چې قرينه لفظي يعنې اعراب لفظي وی لکه ضرب عمرا زيد يا قرينه معنوی وی لکه اکل الکمثری يحيی په يحيی کښې د فاعل جوړيدو صلاحيت او په کمثری کښې د فاعل جوړيدو صلاحيت نشته. ځکه نو د قرينه معنوی له وجې د مفعول تقديم جائز دی

**تمت بالخير**